اَلصَّرْفُ اُمُّ الْعُلُوْمِ وَالنَّحْوُ اَبُوْهَا

# درس کافیه

د علم نحو مشهور درسي کتاب (کافیه) آسانه او مفصله پښتو شرح

﴿لومړی ټوک﴾


**تالیف**

**مولانا سید عبد الرشید بن مقصود هاشمي**

**تقریظ**

**مولانا ولي خان المظفر صاحب**

**مترجم**

**مولوي سفر محمد عابد**



**الناشر**

**مکتبه اسلامیه**

کاسي روډ نزد حاجي غیبي چوک کوئټه

النور کتب مارکیټ نزد ګوالمنډي چوک کوئټه

محمود: ۰۳۲۱۸۱۲۸۵۸۴ محمد طیب: ۰۳۲۱۸۱۱۸۹۸۲

## د کتاب پېژندنه:

د کتاب نوم ............ درس کافيه
مؤلف .............. مولانا سيد عبد الرشيد بن مقصود هاشمي
تقريظ.............. مولانا ولي خان المظفر صاحب
مترجم .............. مولوي سفر محمد عابد
ناشر ..............مکتبه اسلاميه

**مکتبه اسلاميه**

کاسي روډ نزد حاجي غيبي چوک کوئټه
النور کتب مارکيټ نزد ګوالمنډي چوک کوئټه
محمود: ۰۳۲۱۸۱۲۸۵۸۴ محمد طيب: ۰۳۲۱۸۱۱۸۹۸۲

بسم الله الرحمن الرحیم

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ وَالصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى اَفْضَلِ الْمُرْسَلِيْنَ مُحَمَّدٍ وَعَلٰى آلِهٖ وَ اَصْحَابِهِ الطَّيِّبِيْنَ وَبَعْدُ!

# لومړی (۱) درس

## په بسم الله سره د شروع کېدو وجه او دالف لام قسمونه

اَلْكَلِمَةُ:

**تشریح**: د نن په سبقه کي درې خبرې دي ①: د کتاب په (بسم الله) سره د شروع کېدو وجه، ②: د کلمې پر کلام د مخکي کېدو وجه، ③: د الف لام قسمونه.

**لومړی خبره**: د کتاب په (بسم الله) سره د شروع کېدو وجه د کتاب مصنف (علامه ابن حاجب) رحمة الله عليه د خپل کتاب شروع په (بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمَانِ الرَّحِيْم) په ځو وجو وکړه ①: په قرآنکریم پسې اقتداء، یعني د قرآنکریم په متابعت کولو سره، چي د قرآنکریم شروع هم په (بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمَانِ الرَّحِيْم) سوې ده.

**دوهمه** ②: اقتداء په نبوي حدیث شریف پسې، لکه چي په حدیث شریف کي نبي کریم ﷺ وایې: كُلُّ اَمْرٍ ذِیْ بَالٍ لَمْ يُبْدَأُ فِيْهِ بِبِسْمِ اللّٰهِ، فَهُوَ اَبْتَر (او كماقال ﷺ)، نو په دې حدیث د عمل کولو له وجې یې د کتاب شروع په بسم الله وکړه، او پخپله نبي عليه السلام هم چي به کله ځه لیکل، یا به یې چاته لیکل، نو مبارک عادت یې و، چي د هغه شروع به یې په (بسم الله) کوله، لکه چي د حدیبې د صلحې له مکتوبه (ژمن لیک) ښخه دا خبره ثابتېږي.

③: په پخوانیو صالحینو پسې د اقتداء له کبله، لکه چي ویل کېږي: الخبر مع اکابرکم، نو پخوانیو صالحینو چي ځومره کتابونه لیکلي، د هغو شروع په (بسم الله) سوې ده، له همدې وجې مصنف رحمة الله عليه هم د خپل کتاب شروع په (بسم الله) وکړه.

**سوال**: پاتې سوه دا خبره، چي مصنف رحمة الله عليه چي متابعت کاوه، نو ولي یې پوره متابعت نه دی کړی؟، یعني تر (بسم الله) وروسته به یې (الحمدلله) هم راوړه،

ځکه په قرآنکریم کي هم تر (بسم الله) وروسته (الحمد لله) راغلې ده او په حدیث شریف کي چي چيري كُلُّ اَمْرٍ ذِیْ بَالٍ لَمْ يُبْدَأْ فِیْهِ بِبِسْمِ اللهِ، فَهُوَ اَبْتَر راغلي، هلته كُلُّ اَمْرٍ ذِیْ بَالٍ لَمْ يُبْدَأْ فِیْهِ بِحَمْدِ اللهِ، فَهُوَ اَبْتَر هم راغلي دي؟

جواب: چي مصنف رحمه الله علیه د قرآنکریم د ابتدائي نزول متابعت کړی دی او د نزول په اعتبار په شروع کي (بسم الله) نه ده راغلی، او د حدیث حکم عام دی، که عمل قولًا (د وینا) په ډول په وسي او که قراءةً عمل په وسي، یا فعلًا عمل په وسي، نو مصنف رحمه الله علیه که څه هم فعلًا متابعت نه دی کړی، خو قولًا او قراءةً یې هرومرو متابعت کړی دی.

**دوهمه خبره:** د کلمې پر کلام د مخکي کېدو وجه:

علامه ابن حاجب رحمه الله علیه خپل دغه په نړۍ کي نوموتی کتاب په ډېره مختصره توګه لیکلی دی، لکه چي هغه پخپله د دې لحاظ کړی، نو ځکه د کتاب مصنف رحمه الله علیه له اختصار څخه کار اخستی، بیله کوم تمهید څخه یې د نحوي په موضوع، یعني کلمه او کلام شروع کړې او څرنګه چي کلمه په منزله د مفرد او کلام په منزله د مرکب وي او مفرد پر مرکب مخکي کول مشهور دي، ځکه یې نو هلته کلمه پر کلام مخکي کړه.

**درېیمه خبره:** د الف قسمونه:

لومړی الف پر دوه قسمه دی: ①: اسمي، ②: حرفي.

الف لام اسمي هغه ته وایې، کوم چي د اسم فاعل او اسم مفعول پر صیغو داخل وي، لکه: الضارب والمضروب (لکه چي مونږ په نحومیر کي درس کړی دي)، دېته اسمي ځکه وایې، چي دا د (الذی) اسم موصول په حکم کي وي.

او له الف لام اسمي پرته الف لام حرفي دی، بیا حرفي پر دوه قسمه دی: ①: زائد، ②: غیر زائد.

زائد هغه دی، چي د حذف کولو له وجې یې د مقصود کلام په معنی کي هیڅ کمی نه راځي، لکه د علي په یوه شعر کي چي راځي:

وَ لَقَدْ اَمُرُّ عَلَی اللَّئِيمِ يَسُبُّنِی
فَمَضَيْتُ ثَمَّه وَ قُلْتُ لَا يُعْنِيْنِی

يعني زه پر داسي سړي راغلم، چي ماته يې ښکنځل کول، نو زه له هماغه ځخه سيده ولاړم او په زړه کي مې وويل، چي دا ښکنځل يې ماته نه دي کړي.

دلته پر (اللَّئِيم) الف لام زائد دی، ځکه چي صفت يې (يسبنی) د جمله فعليه په صورت راغلی دی او جمله فعليه من حيث الجمله د نکره په حکم کي وي، نو که چيري د (اللئيم) الف لام زائد ونه منل سي، نو معرفه به بلل کېږي، که معرفه و ګڼل سي، نو بيا د صفت او موصوف تر مينځ مطابقت نه راغی.

او غير زائده الف لام هغه دی، چي د حذف کولو له وجې يې په مقصودي معنا کي خرابي لازمېږي، لکه (الرجل قَائِمٌ) دا دواړه په خپل مينځ کي مبتداء او خبر دي، له دې ځخه که چېري الف لام حذف سي، نو د يوه د نکره مبتداء کېدل لازمېږي، کوم چي صحيح نه دی، ځکه په دې صورت کي دا مبتداء او خبر نه پاتېږي، بلکي موصوف او صفت ځيني جوړېږي.

بيا غير زائد پر څلور قسمه دی: ①: الف لام جنسي، دا هغه الف لام دی، د کوم له مدخول نه چي افراد مراد نه وي، بلکي د افرادو ماهيت او صفات مراد وي، لکه: په الرجل خير من المرأة کي د (الرجل) او (المرأة) الف لام.

②: الف لام استغراقي دا هغه الف لام دی، چي له مدخول ځخه يې ټول افراد مراد وي، لکه په (وَالْعَصْرِ اِنَّ الْاِنْسَانَ لَفِیْ خُسْرٍ) کي د (الانسان) الف لام.

③: الف لام عهد ذهني، دا هغه الف لام دی، چي له مدخول ځخه يې ځيني افراد مراد وي، کوم چي دمتکلم په ذهن کي معلوم وي، ليکن د سامع په ذهن کي متعين نه وي، لکه په (اِنِّیْ اَخَافُ اَنْ يَّاْكُلَهُ الذِّئْبُ) کي د (الذِئب) الف لام.

④: الف لام عهد خارجي، دا هغه الف لام دی، د کوم له مدخول ځخه چي بعض متعين افراد مراد وي، يعني متکلم او سامع دواړو ته معلوم وي، لکه په (فَعَصَیٰ فِرْعَوْنُ الرَّسُوْلَ) کي د (الرسول) الف لام، ځکه چي هر چاته معلوم دي، چي فرعون ملعون د کوم رسول مخالفت او سرغړونه کړې وه.

د ټول درس خلاصه داسوه، چي له دريو وجونه يې د خپل كتاب شروع په (بسم الله) كړې او كلمه يې پر كلام ځكه مخكي كړې، چي كلمه د مفرد په منزله ده او كلام د مركب په منزله دی، تر هغه وروسته الف لام دوه قسمه يعني اسمي او حرفي راځي، بيا حرف پر دوه قسمه زائد او غير زائد راتلی، او بيا په اخيري كي غير زائد پر څلور قسمه راځي.

## دوهم ② درس

### كلمه او په هغې كي دالف لام څېړنه

الكلمة:

**تشريح**: د نن په سبق كي دوې خبرې دي: ①: په الكلمة كي د الف لام تعيين، ②: د كلمه د لفظ تحقيق.

### په الكلمة كي دالف لام تعيين:

**لومړۍ خبره**: په الكلمة كي د الف لام تعيين:

په مخكني درس كي د الف لام قسمونه زموږ په مخكي واضح كړل سو، د نن په درس كي دا راښيي، چي په (الكلمة) كي الف كوم قسم دی؟

نو ددې په هكله عرض دادی، چي په (الكلمة) كي الف لام اسمي خو نسي كېدای، ځكه چي (الكلمة) نه خو د اسم فاعل صيغه ده او نه د اسم مفعول.

او الف زائد هم نسي كېدل، ځكه الف لام زائده هغه وي، د كوم چي د دخول او نه دخول له كبله د كلمې د تنكير او تعريف تر مينځ هېڅ فرق نه راځي، بلكي د ده تر داخلېدو وروسته هم كلمه نكره پاتېږي، حال داچي دلته د الف په داخلېدو (الكلمة) معرفه جوړېږي، لكه چي همدلته معرفه واقع سوې ده او په حذف كېدو يې نكره جوړېږي، نو دا خبره معتين سوه، چي په (الكلمة) كي الف لام زائد نه دی، بلكي غير زائد دی، لېكن غير زائد هم پر څلور قسمه دی (كمافی الدرس السابق) نو په هغو كي كوم قسم دی؟

د دې جواب دادی، چي دا الف لام جنسي هم جوړېدای سي، مراد ځيني ټولې نحويه كلمې دي، په دې صورت كي د (الكلمة) تاء كه څه هم د وحدت لپاره ده

(کوم چي په ظاهره له جنس سره منافي او متعارض ده)، ځکه چي جنس کثرت او عموم غواړي او وحدت د خصوص غوښتونکی دی، خو داخبره په یاد لرئ، چي هره تاء د وحدت له جنس سره منافي نه وي، بلکي وحدت پر څو قسمه دی: ①: وحدت فردي، یا شخصي، لکه زیدٌ او فاطمة، ②: وحدت جنسي، لکه امرأةٌ او رجلٌ، ③: وحدت نوعي، لکه: انسانٌ، په دې قسمونو کي یوازي وحدت فردي له جنس سره منافي دی، ځکه چي دا کثرت او عموم نه غواړي، بلکي پر یوه معلوم ذات دلالت کوي، او دلته په (الکلمة) کي تاء د وحدت فردي نه ده، بلکي د وحدت جنسي ده.

او الف عهد خارجي هم مراد کېدای سي، په دې صورت کي هم له دې څخه مراد معهود فی الذهن وي، په دې ډول، چي زموږ بحث له نحوې څخه دی، نو له دې کلمې څخه هم نحوي کلمه مراد ده، نه چي منطقي او لغوي کلمه.

الف استغراقي نسي کېدای، ځکه چي موږ پخپله وویل، چي له (الکلمة) څخه مراد صرف کلمه نحوي ده او عهد ذهني هم نسي کېدای، ځکه چي د هغه په داخلېدو اسم معرفه نه جوړېږي، حال داچي دلته په واضح ډول معلومه ده، چي (الکلمة) په ترکیب کي مبتداء واقع سوې ده او مبتداء همېشه معرفه وي.

د (الکلمة) د لفظ تحقیق او څېړنه:

**دوهمه خبره:** د (الکلمة) د لفظ تحقیق او څېړنه:

د کلمه په هکله درې بحثونه دي: ①: (الکلمة) اسم مشتق ده، یا جامد، (②: کلمٌ جمع ده، یا اسم جنس ده، (③: د دې په اخېر کي د تاءِ وحدت وضاحت.

لومړی بحث (کلمه) مشتق ده، که جامد:

د کلمه په مشتق او جامد کیدو کي د نحوي د علماؤ دوه مذهبه دي: ①: د ځیني نحوي علماؤ په نزد اسم مشتق ده، ځکه چي دا له کَلْمٌ (زخمي کېدو په معنی) څخه جوړه سوې ده او دلته د اسم مشتق او مشتق منه ترمینځ مناسبت په معنوي او لفظي دواړه ډوله ستهٔ، لفظي خو دادی، چي د (کلم او کلمه) دواړو ماده یوه ده او معنوي مناسبت یې دادی، چي دواړه د زخمي کېدو په معنی دي، لکه چي علي ﷺ ویلي دي:

جَرَاحَاتُ السِّنَانِ لَهَا الْتِيَامُ
وَ لَا يَلْتَامُ مَـــا جَرَحَ اللِّسَانُ

یعني د توري زخم جوړېږي، خو د ژبې زخم کله هم نسي جوړېدای.
او یو پښتون شاعر د دې شعر په لاندي ډول ترجمه کړې ده:

په درمل خو د نېزې زخم جوړېږي
جوړ به نشي په دارو پرهـر د ژبې

او یوه بل شاعر بیا داسې ترجمه کړې ده:

زخم د توري به مې جــوړ شي
جوړ به نشي ستا د ژبې پرهرونه

②: د نحوي د جمهورو علماؤ په نزد دا اسم جامد دی، د اسم مشتق منلو په صورت کي د لیري مناسبت ارتکاب لازمېږي (کما مرّ بیانه فی مذهب بعض العلماء).

**(كَلِمٌ) جمع ده، یا اسم جنس:**

دوهم بحث چي (كَلِمٌ) جمع ده، یا اسم جنس:
د (كَلِمٌ) په هکله اختلاف دی، چي دا جمع ده، که اسم جنس، نو د نحوي ځیني علماء (یعني د لباب او صحاح مصنف علامه جوهري او د ده ملاتړي) وایې، چي دا جمع ده، دلیل یې دادی، چي که چېري جمع نسي، نو د ده اطلاق به پر یوه او تر یوه پرپورته هم کېدای، حال دا چي د ده اطلاق صرف تر دوو پر زیاتو کېږي.
او د نحوې جهمور علماء وایې: چي داسي نه ده، دا اسم جنس ده، کوم چي پر قلیل او کثیر دواړو صادقېږي، دوی پر خپله دغه دعوه دوه دلیلونه وایې: لومړی دلیل یې دادی، چي په قرآنکریم کي الله جل جلاله وایې: اِلَيْهِ يَصْعَدُ الْكَلِمُ الطيبِ وَالْعَمَلُ الصَّالِحِ، غوره وکړئ، چي (الكلم) که چېري اسم جنس نه سي، نو آیت به داسي کېږي (اليه يصعدالكلم الطّيبة)، یعني یو خو د فعل واحده مؤنثه په صیغه سره را ځي.

او بل دا چې (الطيبة) کوم چې د الكلم صفت دی هغه به (الطيبة)، یا (الطيبات) مفرد مؤنث یا جمع مؤنث راځي، ځکه قاعده ده، چې د لا یعقل جمع د واحده مؤنثه په حکم کې وي.
دوهم دلیل دادی، چې (كَلِمٌ) د (فَعِلٌ) پر وزن دی او د جمع په ټولو وزنونو کې دا وزن نسته، نو دا خبره معلومه سوه، چې (كلِم) اسم جنس دی، نه جمع.
او د صاحب اللباب او صحاح د راوړل سوي دلیل جواب دادی، چې اعتبار د اصل وضع کېږي، د استعمال اعتبار نه کېږي او د (كلمٌ) وضع د واحد، تثنیه او جمعې ټولو لپاره راغلې وه، خو تردوو په زیاتو کې یې د کثرت استعمال له کبله داسي سو، لکه چې تردوو له زیاتو سره خاص وي.
د جمهورو د دلیل جواب صاحب اللباب والصحاح داسي کړی، چې په ایت مبارکه کې تر (الكلم) مضاف اليه مخکې لفظ د (بعض) مضاف محذوف دی، نو ګواکي معنا یې داسي سوه، چې (اليه يصعد بعض الكلم الطيب)، نو د (يصعد) فاعل هم لفظ د (بعض) دی، کوم چې واحد مذکر دی او (الطيب) هم د دغه (بعض) لفظ صفت دی، نو د جمهورو ذکرسوې خرابي هم نه لازمېږي.
خو جمهورو نحاتو د دې جواب داسي کړی، چې دلته د (بعض) لفظ مقدر منل صحیح نه دي، ځکه چې په آیت مبارکه کې د بعضیت معنی له مخکې لا موجوده ده، هغه په دې ډول، چې الله پاک ته ټولې خبرې نه پورته کېږي، بلکي یوازي پاکي خبرې پورته کېږي، نو ګواکي د بعضیت معنی له مخکې نه لا موجوده ده.

## درېیم بحث: په الكلمة کې د (تاء) لفظ وضاحت:

د (الكلمة) په اخیر کې چې کومه د کړی، په ډول تاء راغلې ده، هغه د وحدت ده، پر دې هغه مشهور سوال واقع کېږي، چې تاء د وحدت لپاره څرنګه صحیح کېږي، حال دا چې الف لام جنسي دی، لکه چې تېر سو، نو بیا یې په اخیر کې د وحدت تاء څرنګه راغلې ده؟، نو د دې جواب مخکې تېر سو، د الف د تعیین په بحث کې یې وګورئ.

نو چي كله دا خبره روښانه سوه، چي د دوى دواړو تر مينځ منافات نسته، نو اوس د (الكلمة) معنى داسي كېږي، چي د نحوي دعلماؤ په نزد جنس كلمه او ددې ماهيت دادى، چي (لفظٌ وُضِعَ لِمَعْنًى مفرد).

د ټول سبقه خلاصه دا سوه، چي په (الكلمة) كي الف لام جنسي هم كېداى سي او عهد خارجي هم او (كلِمٌ) اسم مشتق دى، په معنا د زخمي كولو او دا د جمهورو په نزد اسم جنس او د ځيني علماؤ په نزد د جمع صيغه ده او په اخيري كي (تاء) دوحدت جنسي ده، كوم چي له الف لام جنسي سره منافي او معارض نه دى.

## درېيم ③: درس

### د لفظٌ وُضِعَ لِمَعْنًى تحقيق

لفظٌ وُضِعَ لِمَعْنًى مفردٌ:

**تشريح**: د نن په سبق كي دوې خبرې دي:

①: د لفظ لغوي او اصطلاحي تعريف، ②: د وُضِعَ او لِمَعْنًى تحقيق.

لومړۍ خبره د لفظ لغوي او اصطلاحي تعريف:

**لفظ**: په لغت كي رمى (ويشتلو) ته وايي، لكه چي عربو به ويل: اَكَلْتُ التَّمْرَةَ وَ لَفَظْتُ النَّوَاةَ (يعني ما خورما وخوړه او مندكه مي وغورزوله) او لفظت الرَّحَى، الدقيق (يعني ژرندې اوړه وغورزول).

او د نحويينو په اصطلاح كي د لفظ تعريف په دې ډول دى (مَا يَتَلَفَّظُ بِهِ الْاِنْسَانُ قليلا كَانَ او كثيرًا، موضوعًا كانَ او مهملا، حقيقتًا كان او حكمًا، مفردًا كان او مركبًا) يعني لفظ هغه كلمه ده، په كومه چي انسان تلفظ وكړي، هغه كه لږ وي، كه ډېر، كه وضع سوى لفظ وي، كه مهمل (بې معنى) او كه حقيقتًا وي، كه حكمًا او كه مفرد وي، كه مركب.

په (مَايَتَلَفَّظُ بِهِ الْاِنْسَان) سره دومره ښكاره سوه، چي د ملائكه وو او پېريانانو كلام د لفظ له تعريف څخه ووتل، خو د (قليلا او كثيرًا (كه لږ وي، كه ډېر) په قيد دا دواړه داخل سو، يا دا چي په تعريف كي د بالقوة قيد محذوف دى، لكه

چي دې طرفته موږ د ترجمې کولو په مهال اشاره کړې، یعني هر هغه کلام پر کوم چي انسان د تلفظ قدرت لري، لکه د فرښتو دا قول:

ان فی الجنة نهرًا من لبن
لعلی وحسین و حسن

**او د پېریانانو دا کلام:**

قبر حرب بمكان قفر
و لیس قرب قبر حرب قبر

په دغو که څه هم انسان تلفظ هم نسي کولای، خو د تلفظ قدرت یې لري، نو دا د کلمې په تعریف کي داخل سو.

دا راز د (موضوعًا کان او مهملا) قید له وجې مهملات او موضوعات ټول پکي شاملېږي.

او د (حقیقتًا او حکمًا) په قید سره په دغه تعریف کي هغه ضمائر هم داخل سو، کوم چي په بعض کلماتو کي مستتر (پټ) وي، لکه په قرأ کي (هو) او اقرأ کي (انت)،په دغو ضمیرونو که څه هم حقیقتًا تلفظ نه کېږي، خو حکمًا هرومرو تلفظ په کېږي.

د (مفردًا او مرکبًا) په قید سره په دغه تعریف کي له مفرداتو سره مرکبات هم شامل سوه.

**الكلمة**: دا مبتداء ده او مؤنث ده او (لفظ) یې خبر دی، کوم چي مذکر دی، حال دا چي د مبتداء او خبر ترمینځ په تذکیر او تانیث کي مطابقت لازمي دی، د دې جواب دادی، چي د مطابقت دا شرط د اسماء مشتقه وو لپاره دی او (لفظ) خو اسم مصدر دی او مصدر کله مذکر وي، او کله مؤنث، نو دلته ګواکي مؤنث دی، نو د دواړو ترمینځ په حکمي ډول مطابقت راغی.

**دوهمه خبره: دوَضعَ او لِمَعْنی تحقیق:**

وُضِعَ: دا د فَتَحَ یَفتَح له باب څخه ده، د ماضي مجهولې صیغه ده او (وضع) له مصدر څخه مشتق ده، لغوی معنا یې ده (ښودل او متعین کول).

او په اصطلاح کې وضع (تخصیص الشئ بالشئ بحیث متی، اطلق او احسّ الشئ الاول فُهم منه الثانی) ته وایې، یعني یو شی له بل شی سره په داسي ډول خاص کول، چي کله لومړی شی وویل سي، یا محسوس کړل سي، نو له وجې یې دوهم شی پخپله په پوهه کې راځي، لکه چي دود ولېدل سي، نو د اور موجود کېدل بخپله په ذهن او پوهه کې راځي (کما فی تیسیر المنطق).

لِمَعْنًی، په لغت کې (مایُقصد بشئ ای المقصود من الشئ) ته وایې، یعني هغه شی، کوم چي د بل شی په ذریعه مراد ېږي او د نحوي په اصطلاح کې دا له (عَنَی یَعْنِیْ ضرب یضربُ) څخه، یا د اسم مفعول صیغه ده، یا مصدر میمي دی، یا اسم ظرف دی، که چېري د اسم مفعول صیغه سي، نو اصل یې له رَمی، یرمی څخه د (مرمویٌ) په ډول (معنُوْیٌ) کېږي، د (سَیِّدٌ) په قانون سره (واو) (یاء) کړل سو او یاء په یاء کې مدغمه سوه، نو (معنًی) ځیني جوړ سو، بیا د (دِعِیٌّ) په قانون سره د یاء د ماقبل ضمه په کسره بدله سوه، نو (مَعْنِیٌّ) سو، تر دې وروسته د (قال، باع) په قانون یاء په الف بدله سوه، نو (معنانٌ) ځیني جوړ سو، بیا د التقاء ساکنین په قانون لومړی ساکن حذف کړل سو، نو (مَعْنًی) ځیني جوړ سو، دا راز په دې کې تو تل شپږ قوانین جاري کېږي.

او که چیري معنًی اسم ظرف، یا مصدر میمي سي، نو په دواړو صورتونو کې یې معنی غلطېږي، مثلا د اسم ظرف په صورت کې یې معنا داسي کېږي، چي کلمه هغه لفظ ده، کوم چي د مکان د قصد کولو لپاره وضع سوی وي او د مصدر میمي په صورت کې یې هم معنا غلطېږي، هغه داسي، چي کلمه هغه لفظ ده، کوم چي د نفس قصد او ارادې لپاره وضع سوې وي، نو په دې دواړو صورتونو کې یې د اسم مفعول معنا کېږي، ځکه چي قاعده ده، چي چیري هم اسم ظرف، یا مصدر واقع سي، او پر خپله حقیقي معنی نسي حمل کېدای، نو هلته د اسم مفعول په معنی اخستل کېږي.

## څلورم ④ درس

### د مفرد د لفظ تحقیق او اعرابي صورتونه یې:

مفردٌ :

**تشریح**: د نن په درس کي صرف دوې خبرې دي:

①: د مفرد تحقیق او اعرابي صورتونه یې، ②: د کلمي په تعریف کي د قیدونو فائدي:

**لومړۍ خبر**: د مفرد تحقیق او اعرابي صورتونه:

**مفردٌ**: دا د افعال له باب څخه د اسم مفعول صیغه ده، په لغت کي یوازي سوې ته وایې او د نحوي په اصطلاح کي یې معنا ده: مَا لَا یدلّ جزءُ لفظِهِ علیٰ جزء معناه(یعني مفرد هغه لفظ دی، چي اجزاء یې د معنا پر اجزاء دلالتَ نه کوي)، مثلا (کراسةٌ) یو مفرد لفظ دی، معنا یې ده (کاپی)، خو په دې کي داسې نسي کېدای، چي د (کراسة) له کاف څخه د کاپی جلد مراد واخستل سي او له (راء) څخه یې پاڼې او له الف او سین وغیره څخه لیکي مراد واخستل سي، دا راز د زید له (زاء) څخه د زید سر او له (یاء) څخه یې نس او ملا او له (دال) څخه یې کوم بل اندام مراد سي، بلکي د ټولو الفاظو مجموعه پر خپله معنا دلالت کوي، لیکن دده اجزاء د معنا پر اجزاؤ دلالت نه کوي.

**مفردٌ**: مفرد په ترکیبي اعتبار پر درېو طریقو ویل روا دي:

①: مفردٍ د مجرور ویلو په صورت کی د (لمعنی) مجرور لپاره صفت واقع کېږی، لکه چي په دې صورت کي یې مطلب دادی، چي کلمه داسي لفظ ده، کوم چي د مفردي معنی لپاره وضع کړل سوی وي.

②: مفردً د منصوب ویلو په صورت کي پکي دوه احتماله دي، یو دا چي دا د (وُضِعَ) له ضمیر څخه (کوم چي فاعل حکمي دی، خو صاحب مفصل علامه ابن یعیش نحوي رحمة الله علیه دا هم فاعل حقیقي ګڼلی دی) حال واقع کېږي، نو مطلب یې داسو، چي کلمه داسي لفظ ده، کوم چي وضع کړل سوی وي، په داسي حال کي چي مفرد وي.

**فائده:** ① : له قاعدې سره سم د حال او ذوالحال ترمینځ فاصله نه راځي، خو دا قاعده هلته وي، چیرې چې له بلې کلمې څخه د حال واقع کېدو التباس لازمېږي، لیکن دلته د (وُضِعَ) له ضمیر څخه د حال واقع کېدو په صورت کې له کوم بل چا سره التباس نه لازمېږي، ځکه نو دلته د حال او ذوالحال ترمینځ فاصله جائزه ده.

دوهم احتمال دادی، چې دا له (معنًی) څخه حال واقع سوی دی، نو مطلب یې دادی، چې کلمه داسې لفظ ده، کومه چې د معنی لپاره وضع وي په داسې حال کې چې هغه معنی مفرده وي.

**فائده** ② : د حال تعریف په عامه توګه داسې کېږي، چې حال هغه اسم دی، کوم چې د فاعل او مفعول د واړو حالت بیانوي، خو دا د حال پوره تعریف نه دی، بلکې پوره تعریف یې هغه دی، کوم چې علامه ابن مالک نحوي رحمة الله علیه کړی دی، چې حال هغه دی، چې له فاعل، مفعول، مبتداء، خبر او اسم مجرور څخه د یوه حال بیانوي، لکه دلته چې یې د مجرور حال بیان کړی دی.

**فائده** ③ : څرنګه چې موږ په نحومیر کې یوه قاعده ویلې وه، چې ذوالحال په عامه توګه معرفه وي، خو که چیرې نکره وي، نو هلته حال پر ذوالحال مخکې کېږي، چې د دواړو له صفت او موصوف سره التباس لازم نسي، لکه (لقیتُ رَاکِبًا رجلًا)، خو چېرې چې ذوالحال مجرور وي، څرنګه چې هلته د التباس وېره نه وي، نو ځکه هلته له معمول سره سم ذوالحال مخکې او حال وروسته راځي، چې دلته تاسو ورته وګورئ (الکلمة لفظٌ وضع لمعنًی مفردٌ).

③ :مفردٌ د مرفوع ویلو په صورت کې د مخکې (لفظٌ) لپاره صفت ثاني کېږي، مطلب یې داسې کېږي: چې کلمه داسې لفظ دی، کومه چې د معنی لپاره وضع سوې وي، خو په دې صورت کې یو سوال پر کېږي، چې د مصوف او صفت په قواعد کې یوه قاعده دا هم سته، چې کله موصوف یو وي، او صفتونه ډېر وي، نو په داسې وخت کې ځیني صفتونه مفرد وي او ځیني مرکب وي، او مفرده صفتونه به پر مرکبه صفتونو مخکې کېږي، خو دلته خبره پر عکس ده؟

**جواب:** چي دا قاعده کلیه نه ده، بلکي دا قاعده اکثریه ده، که نه نو په قرآنکریم کي نه جاري کېږي؛(هَذَا كِتَابٌ اَنْزَلْنَاهُ مُبَارَكٌ) دلته وګوره (کتاب) موصوف دی، (انزلناه)ټوله جمله یې صفت اول او (مبارک) یې دوهم صفت دی.

**دوهمه خبره:** په مذکوره تعریف کي د قیدونو فائدې:

د کلمې د تعریف کولو لپاره ابن حاجب رحمه الله څلور کلمات ذکر کړي دي ①: لفظٌ، ②: وضع، ③: لمعنی، ④: مفرد، په دوی کي اول (لفظ) د جنس په درجه کي دی، نو په تعریف کي ټول هغه شیان داخل سول، کوم چي موږ په مخکني سبق کي د لفظ په تعریف کي ذکر کړي وه، یعني (که قلیل وي، که کثیروي، مهمل وي، که موضوع، مفرد وي، که مرکب.....الخ)، خو (وُضِعَ) چي فصل اول ده، په دې سره مهملات ټول ووتل، او په (لمعنی) فصل ثاني حروف هجاء (کوم چي د محض ترکیب لپاره وي) ووتل، خو حروف معاني اوس هم داخل پاتې دي، ځکه چي هغه (موضوع للمعنی) وي، او په (مفردٌ) فصل ثالث مرکبات ووتل، ځکه چي پر دوی د کلام تعریف صادقېږي، کوم چي راتلونکی دی او زموږ دا بحث له کلمې څخه دی، له کلام څخه نه دی.

## پنځم ⑤ درس

### د کلمې اقسام او ترمینځ یې وجه دحصر

و هی اسمٌ وَ فِعْلٌ وَ حَرْفٌ، لِاَنَّهَا اِمَّا اَنْ تَدلَّ عَلَی معنًی فِیْ نفسها اولا، الثانی الحرف، والاوّل امّا ان یقترن بأحدالازمنة الثلاثة اولا، الثانی الاسم، والأوّل الفعل، و قد عُلِم بِذالک حَدُّ کُلِّ منها.

**ترجمه:** او (کلمه) اسم، فعل او حرف دي، ځکه چي پر خپله معنا به یا پخپله دلالت کوي، یا نه، دوهم قسم حرف دی او لومړی به یا په یوه له دریو زمانو پوري مقترن وي، یانه، دوهم قسم اسم دی او لومړی فعل او په یقیني توګه (زموږ له دې لنډ عبارت څخه) د کلمې د دریو قسمونو تعریفونه هم معلوم سول.

**تشریح:** د نن په سبقه کي درې خبرې دي:

①: د کلمې د درېو قسمونو دعوی، ②: پر مذکوره دعوی دلیل، ③: د مصنف رحمة الله علیه د هر راز ذهن لرونکو طالبانو مخاطب کول.

**لومړی خبره**: د کلمې د درېو قسمونو دعوی:

په (و هی اسمٌ وَ فعلٌ و حرفٌ) سره مصنف رحمة الله علیه خپله دعوی وړاندې کوي، چې کلمه پر درېو قسمونو ده، نه تر دې کم او نه زیات او دا درې قسمونه اسم، فعل او حرف دي.

په ترکیبي اعتبار (هی) ضمیر مبتداء ده او (اسمٌ و فعلٌ وحرفٌ) یې ټول خبر دي، دلته یو سوال واردېږي، هغه دا چې جناب! د مبتداء او خبر لپاره یوه قاعده ده، چې (الضمیر اذا دار بین المرجع والخبر فرعایة الخبر اولی من المرجع و هکذا حکم خبر اسم الاشارة)، یعني ضمیر چې کله د مرجع او خبر تر مینځ واقع سي، نو د مرجع پر ځای د خبر رعایت کېږي، د هغه مذکر، یا مؤنث راوړل واجب دي، دا راز د اسم اشاره هم د مشارالیه پر ځای د خپل خبر موافق راوړل واجب دي، لکه چې د الله جل جلاله وینا ده: (فَلَمَّا رَأَى الشَّمْسَ بَازِغَةً قَالَ هَذَا رَبِّي) وګوره دلته د (هَذَا) مشارالیه (الشمس) مؤنث دی، لیکن راتلونکی لفظ (ربی) یې خبر مذکر دی له همدې وجې یې اسم اشاره مذکر راوړې ده، نو صاحب کتاب رحمة الله علیه ته هم پکار وه، چې د (هی اسمٌ) پر ځای یې (هواسمٌ) ویلي وای؟

جواب: چې مذکوره قاعده پر خپل ځای بلکل سمه ده، خو دلته د (هی) ضمیر خبر (اسمٌ) نه دی، بلکي دده خبر لفظ د (منقسمةٌ) دی، کوم چې محذوف دی او (اسمٌ) د مبتداء محذوف خبر دی، نو د عبارت تقدیر داسې کېږي (و هی ای: الکلمة منقسمةٌ الی ثلاثة انواع: احدها اسمٌ و ثانیها فعلٌ و ثالثها حرفٌ).

الملاحظة: صاحب کتاب رحمة الله علیه د دعوې کولو په مهال اسم مخکې کړی دی، ځکه چې اسم په کلام کې عمده وي، ځکه اسم مسند هم او مسندالیه هم دواړه جوړېدای سي، او په را روان دلیل او وجه د حصر کې یې حرف مقدم کړی دی، ځکه اسم او فعل د مرکب په درجه کې او حرف د مفرد په درجه کې دی، نو

ګواکي مفرد یې پر مرکب مخکي کړی دی، عرض داچي دلته د اسم مخکي کول صحیح و او هلته د حرف مخکي کول صحیح دي.
پاتې سوه داخبره، چي اسم ته اسم ولي وایې، نو په دې هکله د بصریینو او کوفیینو اختلاف، دا راز د فعل اوحرف د تسمیه وجه په پوره تفصیل سره په هدایة النحو کي تېر سوي دي، هلته یې وګورئ.

**دوهمه خبره:** د مذکوره دعوې دلیل:

لانّها امّا ان تدلّ علیٰ معنًی فی نفسها ....الخ په دې عبارت سره ابن حاجب رحمه الله د خپلې دعوې دلیل او د کلمې په دریو قسمونو کي د حصر وجه بیانوي، چي ما او د نحوي نورو علماؤ چي د کلمې کوم درې قسمونه ښودلې دي، هغه ځکه چي د کلمې له صفاتو څخه دادي، چي هغه به پر خپله معنا پخپله دلالت کوي، یا نه، که یې دلالت نه کاوه، نو داسي قسم ته حرف ویل کېږي، په متن کي چي پر دې ځای د (الثاني) کوم لفظ لیکل سوی دی، هغه د (الکلمة) صفت نه دی، ځکه چي دا مذکر دی، بلکي دا د (القسم) موصوف محذوف صفت دی (کما اشار الیه الناکت رحمه الله) او که یې پر خپله معنا دلالت کاوه، نو هغه به له دوو حالونو څخه خالي نه وي، یا به له خپلې معنا سره، سره په یوه له دریو زمانو پوري پیوست وي، یا به نه وي، که چیري په زمانه پوري پیوست و، هغه ته فعل ویل کېږي، او که نه وو، نو ورته اسم ویل کېږي.
دلته دا سوال واردېږي، چي په (لانها) کي د (ها) ضمیر کوم چي د (انّ) اسم دی، دا کلمې ته د راجع کېدو له کبله ذات دی او (ان تدل علی معنی فی نفسها) په تاویل د مصدر د (انّ) خبر دی، حال دا چي مصدر وصف دی، نو د وصف حمل پر ذات راغی، او دا منع دی؟
د نحوي علماؤ په خاصه توګه فاضل هندي رحمه الله او د غایة التحقیق ملاصاحب او شیخ رضي او میر سید شریف الجرجاني رحمهم الله د دې سوال بېلابېل جوابونه ورکړي دي، خو د جامي ملا صاحب رحمه الله ښه جواب ورکړی دی، هغه دا چي (ان تدل) بېله واسطې د (انّ) خبر نسي کېدای، بلکي دا مبتداء مؤخر ده او (من صفتها) محذوف یې خبر مقدم جوړېږي، مبتداء مؤخر سره له خبر مقدم جمله

اسمیه د (انّ) لپاره خبر جوړېږي، نو د (انّ) د خبر تر جوړېدو مخکې دا جمله سوه، او جمله من حیث الجمله پر ذات مع الوصف دلالت کوي او د ذات مع الوصف حمل پر ذات روا دی فما بقی الاشکال..

**درېیمه خبره:** و هر راز ذهن لرونکو طالبعلمانو ته د مصنف رحمه الله خطاب په (و قد علم بذالک) سره د مصنف رحمه الله پر طالبانو د مهربانۍ اندازه لګېږي، هغه په دې ډول، چې په عامه توګه طالبانو پر درې قسمه وي: ①: زېرک، ②: مینځنی، ③: غبي او کوته ذهنه.

زېرک طالبان د دعوې په ذکر کولو او دلیل یعني د حصر په وجه د اسم، فعل او حرف په تعریفاتو پوهېږي، نو ګواکې مصنف رحمه الله زېرکو طالبانو ته په دعوی او دلیل د حصر خطاب وکړ.

او په (قد عُلم بذالک) سره یې د مینځني ذهن لرونکي طالبان متوجه کړل، چې بچیانو! تاسو پوه سواست، که نه، چې مخکې چې کومه وجه د حصر تېره سوه، په هغې کې د اشارة النص په ډول د اسم، فعل او حرف تعریفونه هم وسول، نو زېرک چې لږ زور وکړي، نو پوهېږي، او د کمزوري ذهن لرونکو طالبانو لپاره یوازې دغه دوې طریقې بسنه نه کوي، بلکې د هغوی لپاره به د اسم، فعل او حرف د هر قسم لپاره مستقل عنوان راوړل کېږي، د هریوه به په پوره ډول وضاحت کېږي، بیا به پر هغه سربېره د هغه علامې هم ورته ذکر کېږي.

د (بذالک) اسم اشاره مشارالیه وجه د حصر ده، که څه هم قریب ده، خو د (ذلک الکتاب لاریب فیه) په ډول یې د ده د شان د لوړېدو لپاره په اسم اشاره بعید سره اشاره ورته وکړه.

## شپږم ⑥ درس

### د کلام تعریف او صورتونه یې

الکلام ما تضمّن کلمتین بالاسناد ولا یتأتّی ذالک الّا فی اسمین او اسمٍ و فعلٍ:

**ترجمه:** کلام هغه لفظ ته وایي، کوم چې دوو کلموته متضمن وي او دا نه حاصلېږي، مګر په دوو اسمونو سره، یا په یوه اسم او فعل سره.

**تشریح**: د نن په سبق کي درې خبرې دي:
①: د کلام لغوي او اصطلاحي تعریف، ②: په ذکر سوي تعریف کي د قیدونو فائدې، ③: د کلام د حاصلېدو صورتونه.

**لومړۍ خبره**: د کلام لغوي او اصطلاحي تعریف:

مصنف رحمة الله علیه چي کله د کلمې له تعریف او تقسیم څخه فارغه سو، نو اوس یې د کلام تعریف پیل کړ، څرنګه چي د کلام لغوي معنی داده، چي (مَا یُتَکَلَّمُ بِهِ قلیلاً کان او کثیرًا) یعني کلام هغه لفظ دی، په کوم چي تکلم او تلفظ کېږي، هغه که لږ وي، که ډېر.

او د نحاتو په اصطلاح کي د کلام تعریف په دې ډول دی: الکلام ما تضمن کلمتین بالاسناد (یعني کلام هغه لفظ دی، چي لږ تر لږه به له دو (حقیقي، یا حکمي) کلمو څخه جوړ سوی وي او ددې دوو کلمو تر مینځ به نسبت اسنادي وي، یعني یوه کلمه به مسند او دوهمه به مسندالیه وي، لکه (قرأ بکرٌ او اِقْرَأ)، دا راز (نَعَمْ) هم پوره کلام دی، په دې شرط، چي دا د هغه سړي په جواب کي وویل سي، چي سوال وکړي، چي (هَلْ زَیْدٌ عَالِمٌ).

**دوهمه خبره**: په ذکر سوي تعریف کي د قیدونو فائدې:

د مصنف رحمة الله علیه په ذکر سوي تعریف کي (الکلام) معرّف دی او (ما تضمن کلمتین بالاسناد) یې تعریف دی، په دې تعریف کي (ما) کلمه جنس ده، کومه چي مهملات، مفردات، مرکبات کلامیه او غیر کلامیه یعني مرکب تام او مرکب ناقص ټولو ته شامل دی (تضمن کلمتین) لومړی فصل دی، په دغه فصل د کلام له تعریف څخه مهملات او مفردات دواړه ووتل، (بالاسناد) دوهم فصل دی، د ده په ذریعه مرکبات غیر کلامیه، یعني مرکبات ناقصه مثلا کتاب، زید وغیره ووتل، ځکه چي د اسناد تعریف په هدایة النحو کي تېر سوی دی، چي (الاسناد نسبة احدی الکلمتین الی الاخری، بحیث تفید المخاطب فائدةً تامة ویصحّ السُّکوتُ علیها) یعني اسناد دېته وایې، چي په دوو کلمو کي د یوې و بلې ته داسي نسبت سوی وي، پر کوم چي مخاطب په پوره ډول فائده واخلي، یعني

مخاطب ته هم په اصلي مقصود ترلاسه کیدو کي کومه سختي نه وي او متکلم ته هم پرده سکوت (چوپتیا) صحیح وي، لکه (زَيْدٌ عالِمٌ) وغیره، نو د (بالاسناد) په قید سره مرکبات ناقصه ووتل.

**درېیمه خبره**: د کلام د حاصلېدو صورتونه:

که په عقلي اعتبارو کتل سي، نو د کلام تولل شپږ صورتونه جوړېږي، مثلا ①: له دوو اسمونو څخه، ②: له دوو فعلونو څخه، ③: له دوو حرفونو څخه، ④: له اسم او فعل څخه، ⑤: له اسم او حرف څخه، ⑥: له فعل او حرف څخه، خو په (ولا یتأتی ذالک) سره مصنف رحمة الله علیه په ډاګه کړه، چي د کلام د جوړولو لپاره صرف دوې طریقې او دوه صورتونه دی، پاتې صورتونه هېڅ اعتبار نلري.

یو دا چي دوه اسمونه سره یو ځای سي، کلام ځیني جوړ کړي، ځکه چي په کلام کي د دوو شیانو کېدل ضروري دي، هغه دوه مسند او مسند الیه، څرنګه چي اسم مسند او مسندالیه دواړه جوړېدای سي، نو په دواړو کي یو مسند او بل مسندالیه جوړ کړه، بیا کلام ځیني جوړ کړه، لکه: (زَيْدٌ تِلْمِيْذٌ).

دوهمه طریقه دا چي یو اسم او یو فعل سره یوځای کړه، کلام ځیني جوړ کړه، هغه په دې ډول، چي فعل مسند او اسم مسندالیه جوړ کړه، لکه: (قرأسعیدٌ)، دا راز (یا زیدُ، یا سعیدُ) هم په دې قسم کي داخل دي، ځکه چي (یا) حرف نداء د (ادعو) فعل پر ځای ولاړه ده او (سعیدٌ) اسم دی، نو له یوه اسم او یوه فعل څخه خو کلام جوړېدای سي.

## اووم (۷) درس

### داسم تعریف او علامې یې

الاسم ما دلّ علی، معنًی فی نفسه غیر مقترن بأحدالازمنة الثلاثة ومن خواصّه: دخول اللام والجرّوالتنوین والاضافة والاسناد الیه.

**ترجمه**: اسم هغه کلمه ده، چي پخپله پر خپله معنی دلالت کوي او په درېو زمانو کي په یوه پوري مقترن نه وي، او له خواصو څخه یې د ①لام او ②حرف جر داخلېدل دي او③ په اخیري کي یې تنوین راوړل له خواصو څخه دي او④

دده د بلې کلمې وطرفته مضاف کېدل او ⑤مسندالیه کېدل یې له خواصو څخه دي.

**تشریح**: په مذکوره عبارت کې څلور خبرې دي:

①: د (ما) دکلمې وضاحت، ②: د اسم تعریف، ③: په تعریف کې د قیدونو فائدې، ④: د اسم علامې.

**لومړۍ خبره**: (دما) کلمې وضاحت:

د اسم په تعریف کې له (ما) کلمه څخه مراد څه دي؟ په دې کې که څه هم مختلف احتمالات سته، خو تر ټولو صحیح قول دادی، چې له (ما) څخه مراد (کلمه) ده.

بیا دلته یو سوال واردېږي، چې په دې صورت کې د راجع او مرجع تر مینځ مطابقت رانغی، ځکه چې په (دَلّ) کې (هو) ضمیر فاعل دی، کوم چې مذکر دی او د کلمې وطرفته راجع دی، کومه چې مؤنث ده؟

**جواب**: چې په (دلّ) کې ضمیر د کلمې وطرفته راجع نه دی، بلکې د (ما) وطرفته راجع دی، ځکه (ما) د لفظ په اعتبار مذکر ده او د معنا په اعتبار مؤنث ده، او داسې لفظ ته د مؤنث او مذکر دواړو ضمیرونو راجع کېدای سي، نو موږ د (هو) ضمیر د (ما) طرفته راجع کوو، بیا له (ما) څخه (کلمه) مرادوو.

### داسم تعریف

**دوهمه خبره**: داسم تعریف:

لکه څرنګه چې مخکې دا خبره تېره سوه، چې د کافیه ملا صاحب علامه ابن حاجب رحمة الله علیه د نبوت د علومو د طالبانو د دریو قسمونو لپاره د کلمې د اقسامو تعریف دریو مرحلو ته وېشلی و، نو کوم تعریفونه چې یې وکړل هغه د زیرک او متوسط ذهن لرونکو طالبانو لپاره وه، اوس یې دلته دکمزوري ذهن لرونکو طالبانو لپاره په پوره وضاحت سره تعریف وکړ، ځکه یې د اسم تعریف بیان کړ، چې (الاسم مادلّ علیٰ معنًی فی نفسه غیر مقترن باحدالازمنة الثلاثة)، یعني اسم هغه کلمه ده، کوم چې خپله معنا په خپله ښیې، یعني په خپلو معنا ښودلو کې بلې کلمې ته اړتیا نه لري او په دریو زمانو کې په یوه پوري هم مقترن نه وي، لکه (کتابٌ او قلمٌ).

**دريیمه خبره**: د اسم په تعریف کي د قيدونو فائدي:

وګوره! ورور ه د هر شی په تعریف کي څلور شيان اړين وي: ①: معرّف، ②: تعریف، ③: جنس، ④: فصل، نو دلته هم (الاسم) معرّف دی،او له (مادلّ) څخه تر (باحدالازمنة الثلاثة) پوري پوره عبارت يې تعریف دي او په تعریف کي (ما) کلمه جنس ده، کومه چي دريې سره قسمونو (اسم، فعل او حرف) ته شامل دي او (دلّ على معنى فى نفسه) يې لومړی فصل دی، له وجې يې حرف له تعریف څخه ووت، خو فعل تر اوسه هم پاتې و، نو (غير مقترن باحدالازمنة الثلاثة) چي فصل ثاني دی ذکر يې کړ، په دې سره فعل هم ووت، ځکه چي هغه په دريو زمانو کي په يوه پوري مقترن وي، نو دا تعریف يوازي او يوازي د اسم لپاره خاص سو.

د اسم په تعریف کي د (غير) پر لفظ دريې ډوله اعراب راځي، يعني منصوب، مجرور او مرفوع، مرفوع ځکه راځي، چي د (الاسم) خبر ثاني دی، او منصوب ځکه راځي، چي له (معنًى) څخه حال واقع کېږي، يا دا چي له (مادلّ) څخه مستثنی ده او مجرور ويل يې ځکه روا دي، چي دا د معنی صفت واقع کېږي.

**د اسم علامې**

**څلورمه خبره**: د اسم مشهورې علامې:

ومن خواصّه: مصنف رحمه الله عليه د اسم په علامو کي څو مشهورې علامې بيان کړي دي، خو تر دې مخکي د (خواصّ) لفظ لنډې څېړنې ته غوږ سي: (خواص) د (خاصةً) جمع ده او د (خاصةً) لغوي معنا ده (الامر المختص بالشئ) يعني د يو حکم، يا يو شی له يو شی سره خاص کېدل.

او په اصطلاح کي (خاصة) ويل کېږي: (خاصة الشئ ما توجد فيه ولا توجد فى غيره) يعني د يو شی خاصه هغه وي، چي صرف په همدغه شی کي راځي، له ده پرته په بل شی کي نه راځي.

(خواصّ) د منتهى الجموع صيغه ده، کومه چي په جمع کثرت کي شامله ده او د جمع کثرت اطلاق تر لسو پر کم نه کېږي، دلته يې هم (خواصّ) راوړی دی، نو د دې غوښتنه خو داوه، چي مصنف رحمه الله عليه لږ، تر لږه لس علامې بيان کړې وای،

حال داچي دلته يې صرف پنځه علامې بيان کړي دي، نو ددغه سوال د جوابولو لپاره مصنف رحمه الله تر (خواصه) مخکي (مِنْ) تبعيضيه ذکر کړ، په کوم سره چي په ټولو علاموکي د ځينو وطرفته اشاره ده، د کافيه د ملا صاحب رحمه الله د ذکر سويو علامو تفصيل په لاندي ډول دی:

① دخول اللام: يعني پر کومه کلمه چي الف لام داخل وي، هغه د دغې کلمې د اسميت علامه ده.

**فائده**: په عامه کتابونو کي د نحوي علماؤ پر دې ځای (الف لام) دواړه ذکر کړي دي، خو مصنف رحمه الله يوازي (لام) ذکر کړی دی، چي پکي اختلاف دی، چي (الف لام) دواړه حرف تعريف دي، که يوازي (الف، يا لام)؟ نو په دې کي درې مذهبونه دي: ①: د امام سيبويه په نزد يوازي (لام) حرف تعريف دی، خو ابتداء په ساکن محاله وه، نو ځکه يې په پيل کي (الف) راوړی دی، ②: د امام خليل بن احمدالنحوي رحمه الله په نزد (الف لام) دواړه حرف تعريف دي، لکه چي د ده مشهور قول دی: (اَلْ کَهَلْ)، يعني لکه څرنګه چي (هَلْ) دواړه حرف استفهام جوړيږي، دا راز په (اَلْ) کي هم دواړه حروف يوځای حرف تعريف جوړيږي، ③: امام مبرد رحمه الله وايي: حرف تعريف يوازي (الف) دی، خو له همزه استفهام څخه د جلا کېدو لپاره يې ورسره (لام ساکن) راوړی دی.

په مذکوره اقوالو کي د مصنف رحمه الله صرف د (لام) له ذکر کولو څخه معلوميږي، چي د ده په نزد د امام سيبويه قول راجح دی.

②: (وَالجرّ) د اسم دوهمه علامه (جر) ده، يعني د کومي کلمې مجرور کېدل د دغې کلمې اسم کېدل په ګوته کوي، نه فعل او نه حرف کېدل.

اوس وګوره! په کتاب کي (الجرِّ) مرفوع او مجرور دواړه ليکل سوی دی، دا په اصل کي د ترکيبي حالتونو وطرفته اشاره ده، د مجرور کېدو په حال کي دا پر (اللام) عطف کېږي، هغه چونکه مجرور بالمضاف دی، ځکه نو دا هم مجرور سو او د مرفوع ويلو په صورت کي دا پر (دخولُ) عطف کېږي، هغه مرفوع وو، نو دا هم مرفوع سو.

③: (والتنوين) د اسم درېيمه علامه تنوين ده، يعني كوم اسم چي منون وي، پر هغه دا حكم كېږي، چي اسم دی، لكه: وَرَقَةٌ او سبورةٌ.
فائده: تنوين پر پنځه قسمه دی، تاسو حضرات يې په لاندي فارسي شعر كي وواياست:

تنوين پنج قسم است ای يارِ من بگير
اول تمكن است، عوض، ثـالث تنكير
ديگر مقـابله است، تـرنم برادرم
اين پانج قسم ياد كن كه شوی شاه بينظېر

د دې تفصېل په نحومير او هداية النحو كي تېر سوی دی، دلته يې يوازي عرض كړی دی:
**تنوين تمكن** هغه دی، كوم چي د اسم پر منصرف كېدو دلالت كوي، لكه: سعيدٌ او زَيْدٌ.
**تنوين تنكېر** هغه دی، چي د اسم نكره كېدل ښيي، لكه (صَهٍ)، د دې ترجمه په عربي په دغو الفاظو سره كېږي (اُسكت سكوتًا مًّا فِي وقتٍ مًّا) يعني په كومه طرېقه چي هم وي او په هر وخت كي چوپ سه او همدا (صَهٍ) كه چېري بېله تنوين ځخه وه، نو هغه مهال دا نكېره نه بلكې معرفه وي، ځكه بيا يې معنا داسي كېږي (اسكت ا لسكوت الآن) يعني اوس چوپ سه.
**تنوين عوض** هغه دی، كوم چي پر يو مضاف اسم د حذف شوي مضاف اليه په عوض كي راغلی وي، لكه: (يومئذٍ، حِينَئِذٍ) او لكه چي د الله جل جلاله وينا هم ده: (وَجَعَلْنَا بَعضهم فوق بعضٍ) ای: جعلنا بعضهم فوق بعضهم يعني (بعضٍ) د (هم) ضمېر وطرفته مضاف و، دا يې حذف كړل او په عوض كي يې پر (بعضٍ) تنوين عوضي داخل كړ.
**تنوين مقابله** هغه ته وايې، كوم چي د جمع مذكر سالمي د نون په بدل كي د جمع مؤنث سالمي په اخيري كي راغلی وي، لكه: مسلماتٌ او مؤمناتٌ.

**او تنوین ترنم** هغه ته وایې، کوم چې د شعرونو په اخیر کې راځي، که د شعر اخیري کلمه اسم وي، یا فعل وي، یا حرف وي، پر ټولو داخلیږي، لکه جریر بن عطیه چې ویلي دي:

اَقل اللّومَ عاذل والعتابن و قولی اِن اصبتُ لقد اصابنْ

**وګوره!** دلته په اخیري کلمه (اصاب) فعل ماضي ده او تنوین پر داخل سوی دی.

او زیاد بن معاویه المعروف بالنابغة الذیبانی هم ویلي دي:

ازف الرَّحیل غیر انَّ رکابنا لَمَّا نزل برحالنا وکان قدِنْ

**وګوره!** دلته په اخیرکي د (قد) کلمه ده، چې حرف ده او تنوین پر داخل سوی دی.

په مذکوره پنځو قسمونو کي لومړی څلور په اسم پوري خاص دي او پنځم قسم یعني تنوین ترنم عام دی، د اسم، فعل او حرف هریوه په اخیر کي راتلای سي.

④: (والاضافة) د اسم څلورمه علامه د کومې کلمې مضاف، یا مضاف الیه کېدل دي، لکه: کتابُ بکر.

**فائده** ①: په دې هکله د نحوییـنو اختلاف دی، چې مضاف کېدل د اسم علامه دي، یا مضاف الیه کېدل، خو تر ټولو صحیح خبره داده، چې دا دواړه د اسم علامې دي.

دلته سوال کېږي، چې جناب! تا خو مضاف او مضاف الیه دواړه داسم علامې وبلل، حال داچي ډېری وختونه فعل هم مضاف الیه واقع کېږي، لکه په (یَوْمَ یَنْفَعُ الصَّادِقِیْنَ صِدْقُهُمْ) کي (یوم) مضاف ده او (ینفع) جمله فعلیه یې مضاف الیه ده؟

**جواب**: د دې جواب دادی، چې داسي مثالونه ډېر لږ دي او حکم پر اکثر لګېږي، دوهم دا چې (ینفع) که څه هم صورةً فعل ده، خو په حقیقت کي دا په تاویل د مصدر اسم دی، نو د عبارت تقدیر داسې کېږي: (یوم نفع الصادقین صدقهم).

**فائده** ②: د مضاف او مضاف الیه د پېژندګلوی لپاره خو علامې ډېرې دی، خو په هغو کي یو څو علامې په لاندې ډول دي:

①: دوه يا که تر دوه زيات اسمونه وو، په هغو کي اخيري معرف باللام و، او تر ده مخکي بېله الف لام څخه و، نو داسي اسماء په خپلو کي مضاف او مضاف اليه جوړېږي، لکه (کتاب الله، رسول الله).

②: دوه، يا تر دوه زيات اسمونه وو، په هغو کي اخيري اسم علم (يعني د يو چا نوم) و، تر ده مخکي اسم نکره وي، نو داسي اسماء هم په خپلو کي مضاف او مضاف اليه جوړېږي، لکه: کتابُ سعيد او قلم بکرٍ.

③: که دوه، يا تر دوه زيات اسمونه وي، اخيري يې اسم موصول وي او تر ده مخکي اسماء نکره وي، نو داسي اسماء هم په خپلو کي مضاف او مضاف اليه جوړېږي، لکه: (مصدّق الذی).

④که دوه، يا تر دوه زيات اسمونه وي، اخيري يې اسم اشاره وي او تر ده مخکي عام اسماء نکره وي، نو داسي اسماء هم په خپلو مضاف او مضاف اليه جوړېږي. لکه (فليعبدوا رب هذا البيت) او کتاب هذا.

⑤که دوه اسمونه وي، يا تر دوه زيات اسمونه وي، اخيري يې اسم ضمير وي، تر ده مخکي عام اسماء نکره وي، نو داسي اسماء هم په خپلو کي مضاف او مضاف اليه جوړېږي، لکه: قلمکَ او کتابکَ.

⑤: (والاسناد اليه) د اسم پنځمه علامه د ده مسنداليه کېدل دي، لکه په (کتبَ زيدٌ) کي چي د کتابت نسبت د زيد وطرفته سوی دی، نو زيدٌ د مسنداليه کېدو له کبله اسم دی.

**پنځمه خبره:** د پنځو ذکر سويو علامو له اسم سره د تخصيص وجه:

د نحوي علماؤ رحمهم الله چي مذکوره علامې له اسم سره خاص ګڼلې دي، نو د دې لپاره يې ځيني وجې هم بيان کړې دي: مثلا دخول اللام يې ځکه د اسم خاصه بللی، چي د ده له کبله کلمه معرفه ګرزي او معرف ونکره اسم راتلای سي، نه فعل او حرف.

او جر يې ځکه د اسم خاصه بللی، چي جر به يا د حرف جر له وجې راغلی وي، يا به د مضاف له وجې او دا دواړه صرف پر اسم داخلېږي.

او تنوین يې ځکه د اسم خاصه بللی، چي تنوين پر پنځه قسمه دی، څلور خو له اسم سره خاص دي، او يو قسم د کلمه د دريو اقسامو ترمينځ مشترک دی، نو د (وللاكثر حكم الكل) قاعدې ته په کتلو يې دا د اسم خاصه بللي دي.

او اضافت يې ځکه د اسم خاصه بللی، چي مضاف به يا (بتقديراللام) وي، يا به بتقدير (مِنْ) وي او دا دواړه حرف جر دي او د حرف جر له اسم سره خاص کېدل ښکاره دي، لکه (غلام زيد) په اصل کي (غلام لزيد) و او (خاتم فضة) په اصل کي (خاتم مِن فضة) و او دوهمه وجه يې دا هم ده، چي اضافت تعريف، تخصيص، يا تخفيف فائده کوي، او دا درې سره له اسم سره خاص دي.

او مسنداليه کېدل يې ځکه له اسم سره خاص کړي دي، چي د اسم په دواړو قسمو يعني فعل او حرف کي د مسنداليه جوړېدو وړتيا نه وه، نو هرومرو د اسم خاصه سو.

# اتم (۸) درس

## دمعرب اومبني بيان

و هو معربٌ و مبنيٌّ، فالمعرب: المركب الّذى لم يُشْبِهَ مبنىَ الاصلِ.

**ترجمه**: او هغه (اسم) پر دوه قسمه دی ①: معرف او ②: مبني، بیا معرب (له خپل عامل سره) هغه مرکب اسم دی، چي له مبنى الاصل سره مشابهت نه لري.

**تشريح**: د نن په سبق کي درې خبرې دي:

①: د عبارت پر ترکیب سوال او د هغه جواب، ②: د معرب او مبني تعریف او د قيدونو فائدې، ③: د معرب او مبني دواړو د تسميه وجه.

**لومړۍ خبره**: د عبارت پر ترکیب سوال او د هغه جواب:

(وهو معربٌ ومبنىٌ) که څېري د دې ترکیب داسي وي، چي (هو) ضمير مبتداء او (معربٌ و مبنىٌ) معطوف سره له معطوف عليه خبر د مبتداء سي، مبتداء سره له خپل خبره جمله اسميه خبريه سي، نو محترمه! پردې داسوال کېږي، چي (هو) ضمير عام دی، کوم چي د اسم ټولو اقسامو ته شامل دی او معرب و مبني خاص دي او قاعده ده، چي خبر پر مبتداء حمل وي، نو خبر د مبتداء ټولو افرادو ته

شامېږي او معنی يې داسي جوړېږي: چي د اسم ټول افراد معرب هم دي او مبني هم دي، حال دا چي داسي کېدل ښکاره غلط دي؟

**جواب**: جنابه! د (هو) ضمير خبر معرب او مبني نه دي، بلکي د دې خبر (قسمان، يا نوعان) محذوف دي، نو اوس معنی داسي کېږي: چي د اسم ټول افراد پر دوه قسمه دي: احدهما معربٌ و ثانيهما مبنیٌ، نو اوس هېڅ سوال باقي نه پاتېږي.

## د معرب او مبني تعريف

**دوهمه خبره**: د معرب او مبني تعريف:

**معربٌ**: مشتقي اسم دی، کوم چي د افعال له باب څخه د اسم مفعول او ظرف دواړو صيغه کېدای سي.

د اعرب، يُعربُ إعرابًا لغوي معنی ده (اَوضَحَ) يعني واضح کېدل.

او د نحوييونو په اصطلاح کي يې ځيني حضراتو داسي تعريف کړی، چي (هو ما اختلف آخره بدخول العوامل المختلفة عليه) يعني معرب هغه اسم دی، چي اخيريې د عواملو په بدلېدو مختلف کېږي، لکه چي يوه فارسي شاعر ويلي دي:

مبني ان باشد کـه ماند برقرار

معرب آن باشد که گردد بار بار

او د کتاب مصنف علامه ابن حاجب رحمه الله عليه يې په نورو ټکو تعريف کړی دی: المرکب الّذی لم يشبه مبنی الاصل يعني معرب هغه اسم کوم چي له خپل عامل سره مرکب وي او له مبنی الاصل سره مشابهت نلري، لکه په (قَرأ زيدٌ) کي (زيدٌ) معرب دی او او کوم اسم چي له مبنی الاصل سره مشابه وي، هغه مبني وي، لکه په (هؤلآء) کي (هؤلآء) مبني دی، ځکه لکه څرنګه چي حروف په خپله معنا ورکولو کي ضم د ضميمي ته محتاج وي، دا راز (هؤلآء) هم په خپله معنی ورکولو کي خپل مشارٌاليه ته محتاج وي.

د کافيه ملاصاحب رحمه الله عليه ولي له ځانه نوی تعريف غوره کړی، له عامه نحاتو رحمهم الله څخه يې ولي مخالفت کړی دی؟، د دې وجه داده، چي عامه نحاتو

د معرب په تعریف کولو د معرب یو صفت او عارض بیان کړی دی خو مصنف رحمه الله په خپل تعریف کي د معرب ذات ته اشاره کړې ده او د ذات تر صفت افضل کېدل خو تر لمر ښکاره دي.

**دوهمه خبره:** په ذکر سوي تعریف کي د قیدونو فائدې:

**فالمعرب:** المرکب الذی لم یُشبِه مبنیّ الاصل په دې کي (المعرب) معرف او باقي یې تعریف دی، بیا په تعریف کي (المرکب) لومړی فصل دی، چي له کبله یې ټول مفردات مثلا اسماء اصوات، اسماء معدوده، حروف هجاء او زید، عمرو بکر وغیره وزي، (الذی لم یشبه مبنی الاصل) دا دوهم فصل دی، په دې سره هغه مرکبات هم وزي، کوم چي له مبنی الاصل سره مشابهت لري، لکه په (قام هؤلآء) کي (هؤلاء) که څه هم له خپل عامل سره مرکب دی، خو له مبنی الاصل سره مشابهت لري (کمامرآنفًا).

## د معرب او مبني د تسمیه وجه

**درېیمه خبره:** د معرب او مبني د تسمیه وجه:

معرب ته ځکه معرب وایې، چي د افعال له باب یعني له (اعرب یُعرِبُ اِعرابًا) څخه د ده مصدري معنا ده (ښکارول) او (معربٌ) له همدغه باب څخه د اسم مفعول او اسم ظرف صیغه ده، نو معنی یې ده (ښکاره کړل سوی او د ښکارولو ځای)، څرنګه چي پر معرب هم اعراب ښکارېږي، ځکه نو ورته معرب و ویل سو.

او ځیني نحوي علماؤ رحمهم الله یې د تسمیه وجه داسي بیان کړې، چي د افعال د باب همزه د مأخذ د سلب لپاره راځي، په دې اعتبار سره د (عَرِبَ یَعْرَبُ سَمِعَ یسمع) له باب څخه دده معنا سوه (فاسد او خرابېدل)، لکه چي ویل کېږي: (عربتْ معدةُ فُلانٍ) د فلاني سړي معده خرابه سوه، کله چي همدا ماده د افعال له باب څخه راوړل سي، نو بیا یې مصدري معنا داسي کېږي (د فساد او خرابۍ زائلول)، نو د اسم مفعول او اسم ظرف په صورت کي یې معنی داسي کېږي: فساد زائل کړل سوی او د فساد زائلېدو ځای، نو په دې اعتبار معرب ته معرب

ځکه ویل کېږي، چي پر ده د اعراب د ظاهرېدو له وجې د معنی خرابي او فساد زائلېږي.

## نهم (۹): درس

### داسم معرب حکم

**و حکمه**: ان یَختلف آخره باختلاف العوامل لفظًا او تقدیرًا.

**ترجمه**: او د معرب حکم دادی، چي د ده اخیر د عواملو په بدلېدو بدلېږي، هغه که په لفظي توګه وي، یا په تقدیري توګه وي.

**تشریح**: د نن په سبق کي صرف دوې خبرې دي: ①: د معرب حکم او د یوه سوال جواب، ②: د لفظًا او تقدیرًا تحقیق.

**لومړۍ خبره**: د معرب حکم او د یوه سوال جواب:

و حکمه ان یختلف آخره، مصنف رحمة الله علیه د اسم معرب حکم بیان کړی دی، چي د معرب حکم او پر ده مرتب سوی اثر دادی، چي د عواملو په بدلون سره د ده اخیر بدلېږي، هغه بدلېدل که په لفظي ډول وي، لکه (جاءنی ابوک و رأیت اباک و مررت بابیک) او (جَاء نی زیدٌ وَ رأیتُ زیدًا وَ مررتُ بِزَیْدٍ)، که په تقدیري ډول وي، لکه: (جَاءِنیْ مُوسَی، و رأیتُ موسی، و مررت بموسی).

دلته داسي سوال کېږي، (العوامل) د منتهی الجموع صیغه ده، تر کومه لاندي چي لږ تر لږه درې افراد هرومرو وي، ګواکي مطلب یې داسو، چي تر څو پوري پر یو معرب لږترلږه درې عوامل داخل سوي نه وي، تر هغه مهاله د ده اخیر نه بدلېږي، حال داچي موږ وینو، چي په (جَاء نی زیدٌ وَ رأیتُ زیدًا وَ مررتُ بِزَیْدٍ) کي یوازې د یوه عامل له وجې د ده اخیر بدل سوی دی؟

**جواب**: ستاسو خبره بیخي سمه ده، خو پر (العوامل) الف لام جنسي داخل سوی دی او قاعده ده، چي کله پر جمع (الف لام) جنسي داخل سي، نو د دغې جمع جمعیت له مینځه ځي، نو (العوامل) که څه هم منتهی الجموع دی، خو مراد ځیني یو عامل دی.

**فائده**: یادلره، چي د عواملو د بدلېدو مطلب د هغه په عمل کي مختلف کېدل دي، صرف په نوعیت کي د هغه مختلف کېدل مراد نه دي، که نه ډېر عوامل داسي سته، چي نوعیت یې که څه هم مختلف وي خو عمل د ټولو یو وي، لکه (انّ زَیْدًا قَائِمٌ،ضربتُ زَیْدًا او انی ضارب زیدًا) غور وکړه (زیدٌ) معرب دی، پر ده مختلف النوع عوامل بدل سوي دي، خو عمل یې نه دی بدل سوی، نو ځکه دا خبره په یاده لره، چي د عواملو د بدلېدو مطلب دادی، چي د مختلف قسم عمل کوونکي عامل پر ده داخلېږي.

## د لفظًا او تقدیرًا تحقیق

**دوهمه خبره** د لفظًا او تقدیرًا تحقیق:

مصنف رحمة الله علیه لفظًا او تقدیرًا داسي الفاظ راوړي، چي په کوزه کي یې دریاب ځای کړی، یو له مغزنه ډک مضمون یې یوازي په دوو کلمو کي ځای کړی، تشریح یې په دې ډول ده چي د عواملو په بدلېدو سره د معرب اخیري بدلېږي، دا پر دوه قسمه دی: لفظي او تقدیري، لفظي هغه کوم چي په ژبه ویل کېږي او تقدیري هغه دی، چي په ژبه نه ویل کېږي، بلکي صرف عقل د هغه تبدیلي تسلیموي.

بیا لفظي پر دوه قسمه دی: ذاتي او صفتي، ذاتي دا مطلب چي د معرب اخیري حرف په بل حرف بدل کړل سي، بیا دا هم پر دوه قسمه دی: ذاتي حقیقي او ذاتي حکمي.

د ذاتي حقیقي مثال، یعني په کوم کي چي د معرب ذات یعني اخیري حرف په حقیقي ډول بدل سوی وي، لکه د اسماء سته مکبره اعراب، لکه: (جَاءَنی ابوکَ وَرَایت اباکَ و مررت بابیک).

او د ذاتي حکمي مثال یعني په کوم کي چي د معرب ذات یعني اخیري حرف یې په حقیقي ډول نه وي بدل سوی، بلکی په حکمي ډول بدل سوی وي، لکه: د تثنیه اوجمع سره له خپلو اقسامو د حالت نصبي او جري اعراب، لکه: (رأیتُ تلمیذَین واثنین کلَیهما) او د جمع مثال (رأیتُ مسلمِین وعشرین اولیٔ مالٍ).

او صفتي هم پر دوه قسمه دی: صفتي حقيقي او صفتي حکمي، د صفتي حقيقي مثال لکه: د مفرد منصرف صحيح، جاري مجرای صحيح او جمع مکسر اعراب، لکه: (جَاءنی زيدٌ و ظبیٌ و رجالٌ).

او د صفتي حکمي مثال، لکه: د غير منصرف او جمع مؤنث سالمي په حالت نصبي او جري کي اعراب، لکه (رأيتُ عمرَ ومسلماتٍ و مررت بعمرَ ومسلماتٍ).

او د تقديري حقيقي مثال لکه: (جاءنی فتًی و رأيتُ فتًی و مررتُ بفتًی) وګوره د دې اصل (فَتیٌ، فتيًا او فَتيٍ) وو، په دريو سره کي د (قالَ او باع) په قانون سره (ياء) په الف بدله سوه، بيا د (القتاء ساکنين) له وجې (الف) وغورزول سو.

او د تقديري حکمي مثال، لکه: د اسم مقصور اعراب مثلا (جَاءنِیْ مُوسَی، و رايتُ موسی، و مررت بموسی)، نو دا ټول مضمون مصنف رحمه الله صرف په دوو کلمو (لفظًا او تقديرًا) کي بيان کړی دی.

لفظًا او تقديرًا: دا دواړه له څو وجو منصوب دي: ①: يوه خو دا چي د (يختلف) نسبت چي د کوم فاعل وطرفته سوی و په هغه کي ابهام و، چي څرنګه د هغه اخير بدلېږي، نو د هغه ابهام د ليري کېدو لپاره د کافيه ملا صاحب رحمه الله تميېز ذکر کړ، چي (لفظًا او تقديرًا) يعني د دې د بدلېدو مطلب دادی، چي هغه په لفظي، يا تقديري ډول بدلېږي، نو د تميېز کېدو په وجه منصوب سوه (کمامرّ تفضيله آنفًا).

②: د لفظًا او تقديرًا د منصوب کېدو دوهمه وجه داده، چي دا دواړه د (کَان) محذوف خبر دی، نو عبارت داسي کېږي (و حکمه ان يختلف آخره باختلاف العوامل لفظيًا کان ا لاختلاف او تقديريًا).

③: دريېمه وجه دا چي دا د حذف شوي مفعول مطلق لپاره مضاف اليه دي، نو په دې صورت کي د عبارت تقدير داسي کېږي: (و حکمه ان يختلف اختلاف لفظٍ او تقديرٍ آخره باختلاف العوامل)، نو (اختلاف) مصدر حذف سوی دی او مضاف اليه يعني (لفظًا او تقديرًا) يې قائمقام سوه، د مفعول مطلق اعراب يې ورکړ، دېته د نحاتو په اصطلاح کي (المنصوب بنزع الخافض) ويل کېږي.

④: څلورمه وجه يې دا هم کېداى سي، چي دا د محذوف مصدر، يا مفعول مطلق محذوف المضاف لپاره صفت واقع سوي دي، په دې صورت کي نو د عبارت تقدير داسي کېږي: (و حكمه ان يختلف آخره اختلافًا ملفوظًا او مقدرًا) والله اعلم بالصواب وعلم اتم واكمل.

## لسم (۱۰) درس

## اعراب او د عامل تعريف او د اعراب قسمونه

الاعراب ما اختلف آخره به ليدلَّ على المعانى المعتورة عليه.

و انواعه: رفعٌ و نصبٌ و جرٌّ، فالرفع علَم الفاعلية والنصب علَم المفعولية والجرُّ علم الاضافة، والعامل ما به يتقوم المعنى المقتضى للاعراب.

**ترجمه:** اعراب هغه دى چي په ذريعه يې د معرب اخير بدلېږي، د دې لپاره چي پر هغو معناوو دلالت وکړي، کومې چي پر اسم معرب يوه وروسته تر بلې راځي او د دې قسمونه: رفع، نصب او جر دي، رفع د فاعل علامه ده، نصب د مفعول علامه ده او جر د اضافت علامه ده او عامل هغه شى دى، د کوم په ذريعه چي داسي معناوي حاصلېږي، کومې چي د اعراب غوښتنه او تقاضا کوي.

**تشريح:** د نن په سبق کي څلور لنډې خبرې دي:

①: د اعراب تعريف، ②: د اعراب حکمت او وجه، ③: د اعراب قسمونه، ④: د عامل تعريف.

**لومړۍ خبره:** د اعراب تعريف:

کله چي علامه ابن حاجب رحمة الله عليه د معرب له تعريف څخه فارغ سو، نو اوس د اعراب تعريف راته کوي، نو ورته غوږ سه! (الاعراب ما اختلف) يعني اعراب هر هغه حرف، يا حرکت دى، چي له وجې يې د اسم معرب اخير بدلېږي، لکه (جَاءَنِىْ زَيْدٌ و رَأَيْتُ زَيْدًا وَ مَرَرْتُ بِزَيْدٍ)، په دې مثال کي (جَاءَ) عامل دى، او د (زيدٌ) اخيري حرف يعني (دال) د اعراب محل (ځاى) دى او پر ده چي کومه (رفع) راغلې ده، هغه اعراب ده، همدا راز د اعراب حرفي مثال، لکه (جَاءَنِىْ اَبُوْكَ وَ رَأَيْتُ اَبَاكَ وَ مَرَرْتُ بِاَبِيْكَ).

**د اعراب حکمت او وجه یې:**

**دوهمه خبره**: د اعراب حکمت او وجه یې:
د عامل په ذریعه د معرب د اخیر اعراب ولې بدلېږي؟، د دې وجه مصنف رحمة الله علیه بیان کړې ده، چې (لیدلّ علی المعانی المعتورة علیه) یعني د دې لپاره چې دلالت وکړي پر هغو معناګانو (فاعلیت، مفعولیت او اضافت) کومې چې پر اسم معرب یوه په بله پسې راځي.

**فائده**: (المعتورة) دا د افتعال له باب څخه ده، د فعل متعدي د اسم فاعل صیغه ده او په فعل متعدي کي دا قاعده ده، چې په صله کي یې (علیٰ) نه راځي، او دلته راغلې ده؟

**جواب**: د دې جواب دادی، چې دا د صنعت تضمین له وجې راغلې ده، یعني مورږ دا د (الواردة) په معنا اخستې ده او د (الواردة) په صله کي (علیٰ) راتلای سي، نو د (المعتورة) په صله کي هم (علیٰ) راغلې ده.

**د اعراب قسمونه**

**دریمه خبره**: د اعراب قسمونه:
و انواعه رفعٌ و نصبٌ و جرٌّ! مصنف رحمة الله علیه د اعراب قسمونه بیانوي، چې د اعراب درې قسمونه دي: رفع، نصب او جر، په حقیقت کي که وکتل سي، نو د اعراب ټوټل قسمونه څلور جوړېږي: رفع، نصب، جر او جزم، خو دلته یې درې ځکه ویلي، چې دلته د اسم اعراب بیانېږي او د اسم اعراب درې دي، پاتې سو جزم، نو هغه یوازي له فعل سره خاص دی، ځکه یې دلته د هغه ذکر ونکړ.

فائده: د کافیه ملاصاحب رحمة الله علیه دلته په خپل عبارت کي (انواعه) راوړی دی، (اقسامه) یې نه دی راوړی، په دې کي یې یوې اهمې نکتې ته اشاره کول مقصود دي، هغه دا چې په هره نوع کي دننه افراد وي، دلته یې هم د دري سره انواعو د افرادو وطرفته اشاره کړې ده، چې تر (رفع) لاندي درې افراد دي: واو، الف او ضمه او تر (نصب) لاندي څلور افراد دي: یاء، الف، نصب او کسره، او تر (جر) لاندي درې افراد دي: یاء، نصب او جر (کما لا یخفیٰ علیٰ احدٍ منکم).

فالرفع علم الفاعلية مخکي د کافيه ملاصاحب رحمه الله د اسم د اعراب درې قسمونه (رفع، نصب او جر) را وښودل، نو د هغه لپاره د دلېل په ډول وايې، چې ما د اعراب درې قسمونه ځکه در وښودل، چې د اسماؤ هم درې قسمونه دي: مرفوعات، منصوبات، مجرورات، پر دې سربېره کوم بل قسم نسته، نو (رفع) که د حرکت په صورت وي، يا د حرف په صورت وي، دا د مرفوعات علامه ده او (نصب) د منصوبات علامه او (جر) د مجرورات علامه ده.

**فائده:** پر فاعليت او مفعولية دواړو يې (ياء مشدده) راوړې ده، ځکه چې په دوی دواړو کې مصدري معنا پيداکېدل مطلوب وه او په اضافت کې له مخکې لا مصدري معنا وه، ځکه نو هلته د (ياء) راوړلو اړتيا نه وه، هغه يې هماغسې بېله ياء ذکر کړ.

**د مصدر اقسام**

**فائده:** مصدر پر درې قسمه دی:

①: مصدر اصلي: دا هغه مصدر دی، چې پر داسې معنا دلالت کوي، کومه چې له ذات څخه خالي وي، په دې شرط، چې په شروع کې يې مېم نه وي او په اخير کې داسې مشدده ياء زائده هم نه وي، تر کومه وروسته چې تاء تانيث وي، لکه: علمٌ، فضلٌ فهمٌ وغيره.

کله چې مصدر مطلقًا ذکر سي، نو ځيني همدا قسم مراد وي، او د مصدر دغه قسم سماعي دی.

②: **مصدر مېمي:** دا هغه مصدر دی، چې پر داسې معنا دلالت کوي، چې له ذات څخه خالي وي او په شروع کې يې ميم راغلی وي او په اخيري کې يې داسې ياء مشدده زائده نه وي راغلې، چې تر دې وروسته تاء تانيث وي، لکه: مطلبٌ، معدلٌ، مجلبةٌ.

③: **مصدر صناعي:** دا هر هغه مصدر دی، چې په اخير کې يې ياء مشدده زائده راغلې وي، تر هغه وروسته تاء تانيث مربوطه زياده راغلی وي، لکه: له اسدٌ څخه اسديَّةٌ، له فاعلٌ څخه فاعليَّةٌ او له مفعولٌ څخه مفعوليَّةٌ.

د مصدر همدا دوه قسمونه قیاسي دي (درس مقامات).

### د عامل تعریف

**څلورمه خبره**: د عامل تعریف:

د معرب د حکم د بیانولو په ضمن کي د عامل ذکر هم راغلی و، نو د کافیه ملاصاحب رحمه الله د اعراب او دهغه داقسامو تر بیانولو وروسته مناسب (وړ) وګڼل، چي د عامل په پوره ډول تعریف وکړي: (والعامل ما به یتقوم المعنی المقتضی للاعراب) یعني عامل (هغه که لفظي وي، که معنوي) هغه دی، چي په ذریعه یې هغه معنا حاصلیږي، چي اعراب یې تقاضا (غوښتنه) کوي، لکه په (جاءني زَيْدٌ) کي (جَاء) عامل دی او د ده په سبب په (زید) کي د فاعلیت معنا پیداسوه او په اخیر کي یې رفع د فاعلیت علامه ده، دا راز په (رَأَيْتُ زَيْدًا) کي (رَأَيْتُ) عامل دی، له کبله یې په (زیدًا) کي د مفعولیت معنا پیداسوې ده او نصب چي پر چا راغلی دی، هغه د مفعولیت علامه ده (وهکذا تقول فی مررت بزیدٍ).

### یوولسم (۱۱) درس

### د اعراب لومړی قسم

فالمفرد المنصرف والجمع المكسر المنصرف بالضمة رفعًا والفتحة نصبًا والكسرةُ جرًّا.

**ترجمه**: نو د مفرد منصرف او جمع مکسر اعراب دادی، چي دا دواړه په حالت رفعي کي په ضمه سره وي او په حالت نصبي کي په فتح سره او په حالت جري کي په کسره سره وي.

**تشریح**: د نن په سبق کي څلور خبرې دي:

①: د مفرد منصرف صحیح او جمع مکسر تعریفونه، ②: د دوی دواړو اعراب، ③: د دواړو د ذکر سوي اعراب ورکولو وجه، ④: د (رفعًا، نصبًا او جرًّا) اعراب.

### د مفرد منصرف صحیح او جمع مکسر تعریفونه

**لومړۍ خبره**: د مفرد منصرف صحیح او جمع مکسر تعریفونه:

المفرد المنصرف هو الاسم الذی لایکون مثنیً ولامجموعًا ولا غیر منصرف کزیدٍ ورجلٍ.

**ترجمه:** مفرد منصرف صحیح هغه اسم دی، چي تثنیه او جمع هم نه وي او غیر منصرف هم نه وي، لکه: (زیدٌ او رجلٌ)، د کافیه ملاصاحب رحمة الله علیه د نحو د عامو علماؤ رحمهم الله په ډول دلته د (صحیح) قید ځکه ونه لګاوه، چي مفرد منصرف جاری مجرای صحیح یعني (دلوٌ او ظبیٌ) هم پکي داخل سي.

الجمع المکسر المنصرف هو الجمع الذی لم یُسلم فیه بناء الواحد ولا یکون غیر منصرف کرجالٍ و طلبةٍ.

**ترجمه:** جمع مکسر منصرف هغه اسم دی، په کوم کي چي نه د خپل مفرد بناء صحیح او سلامته پاتې وي او نه هم غیر منصرف وي، لکه (رجالٌ او طلبةٌ)، کوم چي د (رجلٌ او طالبٌ) جمع ده.

**دوهمه خبره:** د دې دوارو قسمونو اعراب:

د دې دوارو اعراب د کافیه ملاصاحب رحمة الله علیه بیان کړی، چي (بالضمة رفعًا والفتحة نصبًا والکسرة جرًّا)، یعني په حالت رفعي کي د دوی درې سره وو رفعه په ضمه سره راځي، لکه: (جَاءَنِیْ زیدٌ و رجالٌ و هذا دلوٌ) او په حالت نصبي کي په فتحه سره راځي، لکه (رأیتُ زیدًا ورجالًا ودلوًا) او په حالت جري کي په کسره راځي، لکه (مررت بزیدٍ و رجالٍ و دلوٍ).

**درېیمه خبره:** دې دوارو ته د یاد شوي اعراب د ورکولو وجه:

د اسم متمکن په قسمونو کي یې دغو دوو ته ولې دا اعراب ورکړی دی؟، نو د دې یوه خاص وجه شته، هغه دا چي د اعراب په ټولو صورتونو کي دا صورت (یعني اعراب بالحرکة لفظي غیر تبعي) اصل دی او د اسم متمکن په ټولو قسمونو کي هم دا دواړه قسمونه اصل دي، لکه څنګه چي مفرد د تثنیه او جمعي په مقابله کي اصل دی او منصرف د غیر منصرف په مقابله او صحیح اصل ده د معتل په مقابل کي او جمع مکسر منصرف هم اصل ده د جمع مکسر غیر منصرف

په مقابله کي، نو چي د دغو اصل کېدل ثابت سول، نو ګواکي اصلي ته يې اصلي اعراب ورکړ.

## د(رفعًا نصبًا او جرًّا) اعراب

**څلورمه خبره**: د (رفعًا نصبًا او جرًّا) اعراب:

په ذکر سوي عبارت کي (رفعًا نصبًا او جرًّا) درې سره منصوب دي، د دې څو وجې دي: ①: دا درې سره مفعول فیه دي، په اعتبار د حذف د مضاف، نو ګواکي اصل عبارت داسي دي: (حالة الرفع والنصب والجرّ)، ②: دا درې سره مفعول مطلق دي په اعتبار د موصوف کوم چي محذوف دی، په دې صورت کي عبارت داسي کېږي (تُعرب هذه الأقسام اعرابًا لفظًا)، ③: دا درې سره په ترکیب کي حال واقع سوي دي، هغه داسي، چي (رفعًا ونصبًا و جرًّا) درې سره مصدر په معنا د مفعول دي، ځکه چي قاعده ده، چي مصدر کله د اسم فاعل په معنا وي او کله د اسم مفعول په معنا وي، لکه چي (رفعًا د مرفوعٌ) په معنا دی، نو عبارت داسي کېږي: (يُعربان بالضمة حال كونهما مرفوعين والفتحة منصوبين والكسرة مجرورَين).

## دوولسم (۱۲) درس

## د اعراب دوهم او درېیم قسم

جمعُ المؤنث السَّالم بالضمة والكسرة غيرُ المنصرف بالضمة والفتحة.

**ترجمه**: د جمع مؤنث سالم اعراب دادی، چی په حالت رفعي کي ضمه پر راځي او په نصبي او جري حالت کي ورباندي کسره ا و د غیر منصرف اعراب دادی، چي په حالت رفعي کي په ضمه سره وي او په حالت نصبي او جري کي په فتحه سره وي.

**تشریح**: د نن به سبق کي څلوري خبرې دي:

①: د جمع مؤنث سالم تعریف او اعراب یې، ②: د نصب د جر د تابع کېدو وجه، ③: د غیر منصرف اعراب، ④: په غیر منصرف کي د جر د نصب د تابع کېدو وجه.

## د جمع مؤنث سالم تعریف او اعراب یې

**لومړۍ خبره:** د جمع مؤنث سالم تعريف او اعراب يې:

الذي يكون جمعه بالالف والتاء يعني د نحوييـنو په نزد جمع مؤنث سالمه هغه د جمع صيغه ده، چي په اخير كي يې (الف او تاء) راغلي وي، مفرد كه يې مؤنث وي، لكه چي د (مؤمنةٌ) جمع (مُؤمِنَات) او د (مسلمةٌ) جمع (مسلماتٌ) راغلي دي او كه مفرد مذكر وي، لكه چي د (مرفوعٌ) جمع (مرفوعاتٌ) او د (منصوبٌ) جمع (منصوباتٌ) راغلي دي.

د كافيه ملاصاحب رحمة الله عليه د دې اعراب په ډېرو لنډو ټكو كي بيان كړي دي، له كوم سره چي كه چېري بين السطور كلمات يو ځاى سي، نو په اسانۍ سره سړى په پوهېږي، مثلا چي داسي وويل سي (بالضمة رفعًا والكسرة نصبًا وجرًّا) يعني د جمع مؤنث سالم اعراب دادى، چي په حالت رفعي كي په ضمه سره وى، او په حالت نصبي او جري دواړو كي په كسره سره وي، لكه (جاء ني مسلماتٌ ورأيتُ مسلماتٍ و مررتُ بمسلماتٍ).

## دنصب دجر دتابع كېدووجه

**دوهمه خبره:** د نصب د جر د تابع كېدو وجه:

په جمع مؤنث سالمه كي يې نصب د جر تابع كړى دى، كوم چي اوس تېر سول، چي نصب اوجر دواړه يې په كسره سره وي، نو ددې وجه داده، چي جمع مؤنث سالمه د جمع مذكرسالم فرع ده او په جمع مذكر سالمه كي نصب د جر تابع دى، نو دلته هم داسي سول، د دې لپاره چي د اصل او فرع ترمينځ مطابقت راسي.

دلته يو سوال پيداكېږي، چي دا د جمع مذكر سالمه فرع ده، نو بيا دي دېته هم هماغه ډول اعراب بالحرف وركول سي، حال داچي ده ته خو اعراب بالحركت وركول سوى دى؟

**جواب:** د دې جواب دادى، چي بلكل همداسي پكار وه، خو اعراب بالحرف پر داسي كلمه راځي، چي په اخير كي يې حرف علت وي، حال دا چي د جمع مؤنث سالمه په اخيري كي حرف علت نه وي، ځكه نو جمع مؤنث سالمه ته اعراب بالحركة يعني اعراب بالاصل وركول سو.

## د غیر منصرف اعراب

**درېیمه خبره**: د غیر منصرف اعراب:

د غیر منصرف په اعراب بیانولو کي د کافیه ملا صاحب رحمه الله ویلي دي: چي (غیر المنصرف بالضمة والفتحة) له کوم سره چي بین السطور کلمات او نکتې یو ځای سي، نو عبارت داسي کېږي: (غیر المنصرف بالضمة رفعًا والفتحة نصبًا وجرًّا) یعني د غیر منصرف اعراب دادی، چي په حالت رفعي کي پرده ضمه راځي، لکه (جاءني عمرًا) او په حالت نصبي او جري دواړو کي پرده فتحه راځي، لکه (رأیتُ عمرَ و مررتُ بعمرَ).

### په غیر منصرف کي د جر د نصب د تابع کېدو وجه

**څلورمه خبره**: په غیر منصرف کي د جر د نصب د تابع کېدو وجه:

په غیر منصرف کي یې جر د نصب تابع کړی دی، د دې وجه داده، چي غیر منصرف د فعل فرع دی او پر فعل کسره نسي راتلای، نو د فعل په تابع کي (یعني پر غیر منصرف) هم کسره نسي راتلای، د دې لپاره چي د اصل او فرع تر مینځ مطابقت راسي، د دې پوره تفصېل به انشاء الله تعالی د منصرف په بحث کي راسي.

پاتې سوه داخبره، چي غیر منصرف کله فرع دی، نو ده ته اعراب هم فرع والا ورکول پکار و، یعني اعراب بالحرف ورکول، حال دا چي ده ته اصل اعراب یعني اعراب بالحرکة ورکول سوی دی؟

نو ددې درې وجې دي: یوه دا چي غیر منصرف د فعل فرع دی او د فعل اعراب په عامه توګه په حرکت سره وي، ځکه یې نو ده ته هم اعراب بالحرکة ورکړ، دوهمه وجه داچي چي په ظاهره که څه هم اعراب اصلي پر لګېدلی دی، خو په حقیقت کي دا اعراب اصلي نه دی، بلکي فرعي دی، ځکه چي په درېو سره حالتونو کي صرف پر دوو حالتونو اعراب ظاهر ول که څه هم اعراب بالحرکة دی، بیا هم دا فرعي اعراب شمېرل کېږي، او دلته هم ظاهره ده، چي په دوو حالتونو (نصبي او رفعي) کي که څه هم اعراب ظاهر سوی دی، خو په یوه حالت (جري) کي هېڅ ظاهر سوی نه دی، نو فرع ته اعراب فرعي ورکول سو.

درېيمه وجه داده، چې د غیرمنصرف دوه طرفونه دي، له یوه طرفه د فعل فرع دی او له بل طرف څخه دا د تثنیه او جمع لپاره اصل دي، دا ځکه چې غیر منصرف اکثره وخت مفرد وي او مفرد اصل وي، نو پر ده د کسرې نه راتلو په صورت کي د ده فرعیت یعني د فعل کېدو اعتبار کېږي او د اعرب بالحرکة د ورکول کېدو په صورت کي دده اصلیت یعني د تثنیه او جمع د اصل کېدو اعبتار کېږي، ځکه اعراب بالحرکة اصل ته ورکول کېږي.

## دیارلسم (۱۳)درس

## داعراب څلورم قسم

ابوکَ و حموکِ و هنوکَ و فوکَ و ذومالٍ مضافةً الی غیر یاء المتکلم بالواو والالف والیاءِ.

**ترجمه:** او (ابوکَ اخوک) یعني د اسماء سته مکبره په داسي حال کي چي مضاف وي د غیر یاء متکلم وطرفته (نو د ده اعراب دادی چي) په حالت رفعي کي په واو سره کېږي او په حالت نصبي کي په الف سره او په حالت جري کي په یاء سره.

**تشریح:** د نن په سبق کي درې خبرې دي:

①: د اسماء سته مکبره اعراب، ②: د اسماء ستّه مکبره لفظي او لغوي تحقیق، ③: په اسماء سته مکبره کي د قیدونو فائدې او د هریوه اعراب..

### داسماء سته مکبره اعراب

**لومړۍ خبره:** د اسماء سته مکبره اعراب:

تر دې ځایه پوري د اعراب بالحرکة بیان و اوس له دې ځای نه د اعراب بالحرف بیان کېږي، لکه څرنګه چي په اعراب بالحرکة کي تر ټولو لومړی داعراب بالحرکة غیر تبعي بیان سوی و، دا راز دلته هم تر ټولو لومړی د اعراب بالحرف غیر تبغي بیان کېږي:

څرنګه چي مصنف رحمة الله علیه د اسماء سته مکبره اعراب بیان کړ، چي (بالواووالالف والیاء) دا پوره عبارت سره له نکتو داسي جوړېږي: (بالواو رفعًا والألف نصبًا، والیاء جرًا) یعني دا اسماء په حالت رفعي کي په واو سره وي،

لکه (جاءني اخوکَ وابوکَ...الخ) او په حالت نصبي کي په الف سره کېږي، لکه (رأیتُ اخاک و اباک...الخ) او په حالت جري کي په یاء سره وي، لکه (مررتُ بأخیک وابیک...الخ).

## د اسماء سته مکبره لفظي اولغوي تحقیق

**دوهمه خبره:** د اسماء سته مکبره لفظي او لغوي تحقیق:

په دې اسماؤ کي لومړني (اَبٌ، اخٌ، حمٌ، هنٌ) ناقص واوي دي، ځکه چي په اصل کي دا (ابوٌ، اخوٌ، او هَنَوٌ) پر وزن د (فعلٌ) وو، د دوی پر ناقص واوي کېدو د دوی تثنیه او تصغیر هم دلالت کوي، ځکه چي تثنیه یې (ابوان، اخوان، حموان، هنوان) راغلي دي او تصغیر یې (اُبَیْوٌ، اُخَیْوٌ، حُمَیْوٌ او هُنَیْوٌ) رغلی دی، بیا په دې ټولو کي واو خلاف القیاس حذف کړل سوی دی او اعراب پر عین کلمه جاري سوی نو (ابوٌ، اَخَوٌ، حَمَوٌ او هَنَوٌ) ځیني جوړ سو.

خو کله چي دا کلمات مضاف سي، یا تثنیه ځیني جوړه سي، نو حذف سوی واو بېرته را ګرزي، لکه (ابوکَ و ابوانِ وغیره).

یو سوال او جواب یې:

**دلته سوال** واردېږي، چي کله د (قَالَ او بَاعَ) قانون موږ لرو، چي د دې قانون له مخې واو په الف بدلېږي، بیا د التقاء ساکنین له وجې غورزول کېږي، دا قانون مو ولي پرېښود، چي د خلاف القیاس لاره مو غوره کړې ده؟

**جواب:** دا چي بیا ده ته دغه مذکوره اعراب نه ورکول کېږي، بلکي ده ته بیا د اسم مقصور اعراب ورکول کېږي، ځکه مو نو د خلاف القیاس لاره غوره کړه.

(فَـمٌ) دا اجوف واوي دی، ځکه په اصل کي (فَوَهٌ) وو او جمع یې (افواهٌ) راځي، لکه چي د (ثوبٌ) جمع (اثوابٌ) راځي، (هاء) یې خلاف القیاس حذف کړه، (واو) یې په (میم) بدل کړ، ولې که واو په میم بدل نه کړل سي، نو د اعراب یې پر (واو) د راتلو له وجې (واو) متحرک کېدی، بیا د (قال او باع) په قانون سره په (الف) بدلېدی، نو د التقاء ساکنین په وجه غورزېدی، نو (ف) به ځیني جوړ سوی وای، او د معرب پر یوه حرف پاتېدل نا روا دي.

خو کله چې یې اضافت وسي، یا جمع ځیني جوړه سي، نو حذف سوی (واو) بېرته راګرزي، ځکه چې د بدلېدو علت له مینځه ولاړ، لکه (فوکَ او افواهٌ).
او (ذُو) لفیف مقرون دی، ځکه چې په اصل کې (ذَوَوٌ) پر وزن د (فَعَلٌ) و، دوهم (واو) حذف سو، اعراب یې لومړي (واو) ته ورکړ، نو (ذَوٌ) پر وزن د (يَدٌ او دَمٌ) سو، بیا پکې د اضافت له وجې د (ذَوٌ) تنوین وغورزېد او ضمه د (ذال) وطرفته نقل کړل سوه، واو ساکن پاتې سو، نو (ذُومالٍ) ځیني جوړ سو.
دلته دا سوال کېږي، چې د پورته اسماء ستهٔ مکبره اضافت خو د اسم ضمیر وطرفته کېدی او د (ذو) اضافت د اسم ظاهر او اسم جنس وطرفته وسو، نو دا ولې؟
**جواب:** چې د (ذو) اضافت د اسم ضمیر وطرفته له سره روا نه دی، ځکه چې د (ذو) وضع د دې لپاره راغلې ده، چې تر ده وروسته اسم ظاهر تر ده د مخکي اسم لپاره صفت جوړوي، لکه (زيدٌ ذومالٍ وعَمرٌو ذو علمٍ) یعني زید د مال څښتن او عمر د علم والا دی، کله چې په مخکي پنځو اسماؤ کي دا خبره نه وه، نو ځکه د دوی تر مینځ فرق وسو.

**درېیمه خبره** د قیدونو فائدې او د هریوه اعراب:
په نورو کتابونو کي چې وګورې، نو له اسماء ستهٔ مکبره سره یې قیدونه هم لګولي دي، لهذا مناسبه معلومېده، چې که چېري د دې قیدونو فائدې دلته ذکر کړل سي، نو د عزتمنو طالبانو لپاره به د فائدې لامل او باعث وګرزي، مثلاً د نحومیر ملا صاحب ویلي دي: (الاسماء الستة مكبّرةً موحدةً مضافةً الى غير ياء المتكلم):
①: الاسماء الستة چې یې وویل نو معلومه سوه، چې مذکوره اعراب صرف د مذکوره شپږ اسماؤ لپاره دی، له دوی پرته کوم بل اسم ته دا اعراب نه ورکول کېږي.
②: په مکبره ویلو معلومه سوه، چې دا اسماء چې کله د اسم مکبر په صورت وي، نو یې دا مذکوره اعراب دی، خو که چېري د مصغر په صورت کي وي، نو

بیا یې د جاري مجرای صحیح اعراب دی، لکه: (جَاءَنِیْ اَخِیٌّ، و رایتُ اخیًّا و مررت باخیٍّ).

③: د مؤحدةٌ په ویلو معلومه سوه، چي د مفرد کېدو په صورت کي خو همدا مذکور اعراب دی، لیکن دغه اسماء که چېرې تثنیه راسي، نو اعراب یې د مثنی په ډول وي، لکه چي را روان دی، مثلاً (جَاءَنِیْ اباءٌ و رأیتُ اباءً و مررت باباءٍ) او (جَاءَ نِیْ اِخْوَةٌ و رأیتُ اِخْوَةً و مررت باخوةٍ).

④: د مضافةٌ په ویلو معلومه سوه، چي که چېري دا اسماء مضاف نه وي، نو په دې صورت کي یې هم اعراب د مفرد منصرف صحیح اعراب دی، لکه: جاءنی اخٌ و رأیتُ اخًا و مررت بأخٍ).

⑤: الی غیر یاء المتکلم په ویلو دا معلومه سوه، چي که چېري همدا اسماء د یاء متکلم وطرفته مضاف وي، نو په دې وخت کي یې اعراب د (غلامی) په ډول تقدیري وي، لکه: (جَاءَ نِیْ اَخِیْ وَ رأیتُ اخیْ ومررت بأخیْ).

**څلورمه خبره:** اسماء سته مکبره ته د مذکوره اعراب ورکولو وجه:

اسماء سته مکبره ته یې اعراب بالحروف ځکه ورکړی، چي لږ مخکي به انشاء الله دا خبره معلومه سي، چي تثنیه او جمع ته یې اعراب بالحرف ورکړی، نو په همدې مناسبت سره دلته مفرد ته هم اعراب بالحرف ورکول سو، د دې لپاره چي د مفرد، تثنیه او جمع درې سره وو اعراب یو رنګه سي او په مینځ کي کوم منافرت او بېلوالی پاتې نسي.

دوهم په دې خبره پوهېدل پکار دي، چي دلته یې شپږ اسماء په دې اعراب سره ولې خاص کړل، تر دې په لږو، یا زیاتو یې ولې خاص نکړل؟

**جواب:** د دې د اخوات یعني تثنیه او جمع هم درې، درې قسمونه دي، مثلاً تثنیه درې قسمه ده: تثنیه حقیقي، تثنیه صوري او تثنیه معنوي او جمع هم پر درې قسمه ده: جمع حقیقي، جمع صوري، او جمع معنوي، دا ټوټل شپږ قسمونه جوړېږي، نو کله چي د دې اخوات شپږ قسمونه وو، نو مفرد یې هم شپږ اسماء جوړ کړې، د دې لپاره، چي د مفرد هریو اسم د یوه مستقل قسم قائم مقام سي.

بیا سوال کېږي، چې دا شپږ اسماءیې ولې خاص کړل؟، ولې له دي ماسوی په نورو اسماؤ کي دا وړتیا او صلاحیت نه و؟

**جواب:** هو کې! له دې شپږو پرته هېڅ اسم داسي نه و، چي په اخیر کي یې حرف علت وي او د اعراب بالحروف د قبلېدو صلاحیت دي ولري.

دوهم جواب دا چي دا شپږ اسماء له تثنیه او جمع سره معنًا مشابهت لري، یعني لکه څنګه چي په تثنیه او جمع کي تعدد و، دا راز په دې اسماؤ کي هم تعدد سته، مثلا په (ابٌ) کي پلار او اولاد دواړه راځي، ځکه چي ترڅو پلار نه سي، نو د اولاد کېدل محال دي، او ترڅو چي اولاد نه وي، نو د چا پلار کېدل هم محال دي او په (اخ) کي دوه افراد وي، ځکه ترڅو چي یو سړی د بل ورور، یا خور نه وي، نو تر هغه وخته هغه د چا حقیقي ورور نسي جوړېدای.

**خوږ کی:** که چېري یو څوک ووایې، چي جناب! دا تا څه نوې خبره وکړه، موږ وینو، چي په پوره هېوادونو کي بیخي ډېر اولادونه بېله پلرونو شتون لري؟

نو د دې جواب دادی، چي وروره! زه مسلمان یم او د مسلمانانو خبرې کوو، نو د مسلمانانو په اند د حلال اولاد نسب خو ثابت وي، لیکن د حرامي هېڅ نسب ثابت نه وي، او دداسي اعتراض کوونکو مثال خو بلکل داسي دی، لکه چي یوه مولوي صاحب په بیان کي ویلي وه، چي ګورئ زما ورونو! پرنا پاکه جامو او مردار ځای لمونځ نسي کېدا، نو مخامخ یو روشان خیاله او تهذیب یافته، بلکي تعذیب یافته سړی ولاړ و، ویې ویل: مولوی صاحب څوک وایې، چي نسي کېدای، وګوره! زه یې کوم، څنګه نه کېږي؟، نو د ټولو خلګو په وړاندي د کچرو پر یوه انبار ودرېد، پوره شل رکعت لمونځ یې وکړ، بیا یې وویل: وګورئ یاره! تاریک خیال او انتها پسند مولوي صاحب وایې، چي پر داسي ځای لمونځ نسي کېدای، نو داسي کېږي، که نه؟ (تف او لعنت دي وي پر داسي روشن خیالي).

## څورلسم (۱۴) درس

## داعراب پنځم او شپږم قسم

المثنی و (کلا) مضافًا الی مضمر و اثنان و اثنتان بالالف والیاء، جمع المذکر السالم واولو وعشرون واخواتها بالواو والیاء.

**ترجمه**: او تثنیه او (کلا) چي کله د کوم ضمیر و طرفته مضاف وي او د (اثنان او اثنتان) اعراب دادی، چي حالت رفعي یې په الف سره وي او حالت نصبی او جري (دواړه) یې په یاء (ماقبل مفتوح) سره وي او د جمع مذکر سالم او (اولو او عشرون) او د ده داخواتو اعراب دادی، چي حالت رفعي یې په واو سره وي او حالت نصبي او جري دواړه یې په یاء (ماقبل مکسور) سره وي.

**تشریح**: د نن په سبق کي دوې خبرې دي:

①: د تثنیه، جمع او ددوی د ملحقات تعریفونه، ②: د مذکوره شپږو قسمونو اعراب.

## د تثنیه، جمع او د دوی د ملحقاتو تعریفونه

**لومړی خبره**: د تثنیه، جمع او د دوی د ملحقاتو تعریفونه:

د کافیه ملاصاحب رحمه الله په پورتني عبارت کي د تثنیه او جمع درې، درې قسمونه یوازي په نامه بیان کړل او د هغو اعراب یې په مختصره توګه بیان کړ، نو مناسب معلومېدل، چي د هغه تعریفونه هم (که چیري په پوه سئ)، وکړل سي، نو ګټور به وي.

①: تثنیه حقیقي: تثنیه حقیقي هغه اسم دی، په کوم کي چي درې شیان وي، لومړی دا چي هغه پر دوو افرادو دلالت کوي، دوهم دا چي له همدې مادې څخه د هغه مفرد هم مستعمل سوی وي، درېیم دا چي په دې کي د تثنیه علامه وي، لکه (رجلان، تلمیذان) وغیره.

②: تثنیه صوري: تثنیه صوري (یا ملحق بالمثنی لفظًا) هغه اسم ده، په کومه کي چي له مذکوره خبرو څخه دوې خبرې وي، یوه داچي هغه پر دوو افرادو دلالت کوي، دوهم دا چي په دې کي د تثنیه علامه وي، لکه: (اثنان واثنتان).

③: تثنیه معنوي: تثنیه معنوي (یا ملحق بالمثنی معنًا) هغه اسم دی، په کوم کي چي په مذکوره خبرو کي یوازي یوه خبره راغلي وي او هغه دا چي هغه اسم به پر دوو افرادو دلالت کوي، لکه (کلا او کلتا).

دا راز جمع هم درې قسمونه لري، مثلاً:

جمع حقيقي هغه اسم دی، په کوم کې چې درې خبرې راغلي وي، يوه دا چې هغه به تر دوو پر زياتو افرادو دلالت کوي، دوهمه دا چې له همدې مادې څخه به يې مفرد او تثنيه هم جوړېږي، درېيمه خبره دا چې په دې کې به د جمع علامه راغلې وي، لکه (مسلمون) دا تر دوو پر زياتو افرادو دلالت هم کوي، (مسلم او مسلمان) د دې مفرد او تثنيه هم جوړېږي او په اخيري کې يې (واو او نون) د جمع علامې هم راغلې دي.

په همدې ترتيب سره د جمع د دوو قسمونو (اولو او عشرون تا تسعون) تعريفونه هم پر دې قياس کړئ، يعني په جمع صوري، يا ملحق بالجمع لفظًا کې به دوې خبرې راغلې وي او په جمع معنوي يا ملحق بالجمع معنًا کې به صرف يوه خبره راغلې وي.

**دوهمه خبره:** د مذکوره شپږو قسمونو اعراب:

تثنيه حقيقي او صوري او (کلا چې کله مضاف وي)، نو د دې درېو سره اعراب دادی، چې حالت رفعي يې په (الف) سره وي، لکه: (جاء نی رجلان، اثنان، کلاهما) او حالت نصبي او جري دواړه يې په ياء ماقبل مفتوح سره وي، لکه: (رايتُ رجلين، اثنين، کليهما و مررت برجلين اثنين کليهما).

د کافيه ملاصاحب رحمه الله له (کلا) سره د اعراب لپاره دا شرط لګولی و، چې (مضافًا الی مضمرٍ) يعني کله چې دا مضاف وي د اسم ضمير وطرفته، نو بيا يې دا اعراب وي، دا شرط يې ځکه ولګاوه، چې که چېرې د اسم ظاهر وطرفته مضاف وي، نو بيا يې اعراب په اعراب بالحرکة تقديري سره وي، لکه (جاء نی کِلَا الرَّجلين و رأيتُ كِلَاالرَّجلين ومررتُ بكِلَاالرَّجلين).

دلته د کافيه ملاصاحب يوازې د (کِلا) په ذکر اکتفاء کړې ده، (کلتا) يې نه دی ذکر کړې، ځکه چې کلا اصل ده او قاعده ده، چې (ذکرالاصل يستلزم ذکر الفرع) يعني د يو شي د اصل په ذکر کولو سره د هغه د فرع ذکر پخپله راځي.

پر دې سوال کېږي، چې کله د کلا په ذکر کولو سره د کلتا ذکر پخپله متصور کېدی، نو په (اثنان او اثنتان) کي به يې هم داسي کول، يعني يوازي به يې (اثنان) ذکر کاوه، د (اثنتان) ذکر به يې ضمن پخپله راغلی وای؟

جواب: د دې جواب دادی، چي اسماء عدد اکثره وخت مخالف القياس وي، لکه (ثلاثة رجالٍ) او ثلاث نساء)، يعني د مذکر او مؤنث دواړو معدودو يو له بل سره مخالف وي، نو دا شبه کېده، چي کېدای سي د دوی اعراب به هم يو له بل سره مخالف وي، نو مصنف رحمه الله عليه د دواړو بصراحتًا ذکر کول دې طرفته اشاره ده، چي دلته هېڅ اختلاف نسته، بلکي ددواړو اعراب يو رنګه دی.

په عبارت کي (مضافًا) منصوب دی، ځکه چي دا له (کلا) څخه حال واقع سوی دی او کلا په اصل کي نائب فاعل ده د فعل محذوف لپاره، د عبارت تقدير داسي کېږي: (ويُعرب المثنی وکلا) نو ځکه دا سوال نه کېږي، چي (کلا) خو نه فاعل ده او نه مفعول نو بيا (مضافًا) څرنګه حال ځيني جوړېدای سي.

د جمع مذکر سالم او د دې د ملحقاتو د اعراب بيانولو په مهال يې ويلي وه، چي د دوی اعراب دادی، چي حالت رفعي يې په (واو) سره وي، لکه (جاء نی مسلمون، عشرون، اولو مالٍ) او حالت نصبي او جري دواړه يې په ياء ماقبل مکسور سره وي، لکه (رأيتُ مسلمين، عشرين، اولی مالٍ، و مررتُ بمسلمين، عشرين، اولی مالٍ).

(اولو) د (ذو) جمع ده، ليکن من غير لفظه دی، نو کوم شرط چي موږ په اسماء ستة مکبره کي د (ذو) په اړه ويلی و، هماغه شرط دلته هم د ذو د جمع (اولو) لپاره دی، يعني په دې شرط چي دا به د يو اسم ظاهر وطرفته مضاف وي، د دې وجه هلته تېره سوې ده، ويې ګورئ.

## پنځلسم (۱۵) درس

## داعراب پاته جمله قسمونه

التقدير فيما تعذّر کعصا و غلامي مطلقًا او استثقل کقاضٍ رفعًا وجرًّا و نحو: مسلميَّ رفعًا واللفظی فيما عداه.

**ترجمه**: او تقديري اعراب په هغو صورتونو کي ورکول کېږي، چېري چي د اعراب لفظي ظاهرول يا له سره ممتنع وي، لکه د (عصا او غلامی) په درې سره حالتونو کي، يا ممتنع خو نه وي، ليکن ثقيل بلل سوی وي، لکه په رفعي او جري حالت کي د (قاضٍ) اعراب او دا راز په حالت رفعي کي د جمع مذکر سالم اعراب، لکه (مسلميّ) او له دې صورتونو پرته اعراب لفظي وي، يعني چېري چي اعراب متعذرا و ثقيل نه وي.

**تشريح**: د نن په سبق کي درې خبرې دي:

①: اعراب تقديري او مواقع يې، ②: د څو کلماتو تحقيق، ③: د (واللفظی فيماعداه) وضاحت.

**تمهيد**: مصنف رحمه الله تردې ځايه د اعراب بالحرکة لفظي او اعراب بالحرف لفظي بيان وکړ، په کوم کي چي يې د اعراب شپږ قسمونه او د اسم متمکن دوولس قسمونه بيان کړل، درې قسمونه پاتې سوه، په کومو کي چي به د اسم متمکن پاتې څلور قسمونه درته بيان سي انشاءالله تعالی!

### اعراب تقديري او ځايونه يې

**لومړۍ خبره**: اعراب تقديري او ځايونه يې:

اعراب تقديري دا معنا، چي په لفظ کي خو اعراب نه ليدل کېږي، ليکن دننه او په ترکيبي اعتبار يې اثرات موجود وي، لکه د برېښنا تارونه چي په ظاهره پکي هيڅ شی نه ليدل کېږي، خو چي لاس ورړي، نو د هغه دننه ځواک له وجې کرنټ ورکوي، لکه (جَاءَ نِي مُوْسَیٰ و رأيتُ مُوْسَیٰ و مَرَرت بموسی) دلته په درې سره حالتونو کي اعراب په سترګو نه ليدل کېږي، دننه په ترکيبي اعتبار يې د خپل عامل اثرات موجود دي.

### د اعراب اووم قسم:

وايي، چي (التقدير فيما تعذّر) يعني د اعراب اووم قسم دادی، چي رفع په ضمه تقديري، نصب په فتحه تقديري او جر په کسره تقديري سره وي، د اعراب دا قسم په دوو اسمونو پوري خاص دی: يو اسم مقصور (وهو ما فی آخره الفٌ

مقصورةٌ) یعني اسم مقصور هغه اسم دی، چي په اخیر کي یې الف مقصوره وي، لکه (عصا).

او دوهم له جمع مذکر سالم پرته په هر هغه اسم پوري خاص دی، چي د یاء متکلم وطرفته مضاف وي، لکه (غلامی، کتابي، کرّاسنی وغیره)، نو دغه دواړه اسم معرب د اعراب په درې سره حالتونو کي پر یوه حالت پاتېږي، لکه (هذه عصا و غلامی ورأیتُ عصا وغلامی و مررت بعصا وغلامی).

**د اعراب اتم قسم:**

او استثقل: د اعراب اتم قسم بیانېږي: چي رفع په ضمه تقدیري سره وي، نصب یې په فتحه لفظي، یعني په ښکاره فتحه سره او جریې په کسره تقدیري سره وي.

د اعراب دا قسم په داسي اسم معرب پوري خاص دی، پر کوم چي د لفظي اعراب راتلل که څه هم متعذر خو نه وي، لیکن مشکل هرومرو وي، مثلا اسم منقوص (و هو ما فی آخره یاءٌ ماقبلها مکسور کقاضٍ) یعني اسم منقوص هغه اسم دی، چي په اخیر کي یاء ماقبل مکسور وي، لکه (جاء نی القاضیُ ورأیت القاضیَ و مررت بالقاضیْ) دلته په حالت رفعي او جري دواړو کي اعراب تقدیري دی.

**د اعراب نهم قسم:**

(ونحو مسلمیَّ رفعًا) په دې عبارت کي د کافیه ملاصاحب رحمة الله علیه د اعراب د نهم قسم وطرفته اشاره کوي، چي رفع په واو تقدیري سره وي او نصب وجر دواړه یې په یاء ماقبل مکسور سره وي.

د اعراب دا قسم په جمع مذکر سالمه (چي کله د یاء متکلم وطرفته مضاف وي) پوري خاص دی، لکه: (جاءنی مسلمیّ ورأیتُ مسلمیّ ومررت بمسلمیّ) دلته یوازي په حالت رفعي کي اعراب تقدیري دی.

**دوهمه خبره**: د څو کلماتو تحقیق:

د مذکوره عبارت په بعض کلماتو کي څه تفصیل سته ورته غوږ سئ!

①: تعذّر: دا د تفعّل له باب څخه د ماضي معلوم واحد مذکر غائب صیغه ده، مصدري معنا یې ده: داسي شی چي ورته رسېدل ممکن خو وي، لیکن په مشقت او تکلیف سره وي، لیکن دلته دا د (امتنع) په معنا دی، نو مطلب یې دا سو، چي چېري لفظي اعراب ممتنع وي، هلته تقدیري اعراب راځي.

②: استثقل: دا د استفعال له باب څخه د ماضي مجهول واحد مذکر غائب صیغه ده، مصدري معنا یې ده: د یو شی مشکل او سخت بلل، دلته یې ځیني مراد دادي، چي پر (قاضٍ) لفظي اعراب راتلل ناممکن خو نه دي، لیکن ثقیل او مشکل هرومرو دی.

نو د تعذّر او استثقال تر مینځ فرق دا را ووت، چي په تعذّر کي پر یو کلمه اعراب ویل بلکل ناممکن وي، لکه (عصا) په اخیر کي یې (الف) دی او هغه اعراب نسي زغملای، خو که چیري څوک په زور اعراب پر ولګوي، نو بیا هغه الف الف نه پاتېږي، بلکي همزه ځیني جوړېږي او په استثقال کي پر کومه کلمه د اعراب لفظي راتلل ناممکن نه وي، بلکي د اعراب ورتیا هم لري، خو مشکل هرومرو وي، لکه (غلامی) دلته د میم کسره د یاء نسبتي له وجې ده نو که موږ اعراب لفظي هم ورباندي داخل کړو، نو په یوه وخت به دوه حرکتونه په یوه اسم کي جمع سي، کوم چي نا روا دي.

③: عصا: دا ناقص واوي ده، په معنا د لکړې، دا په اصل کي (عَصَوٌ) وو، واو متحرک ماقبل یې مفتوح وو، د (قال او باع) په قانون سره (الف) ځیني جوړ سو، نو (عَصَانٌ) سو، بیا د التقاء ساکنین له وجې (الف) وغورزېدی، نو (عصا) ځیني جوړ سو، دا که چیري له الف سره وویل سي، نو الف مقصوره په لفظ کي راځي، لکه (العصی) او که الف ورسره نه وي، نو الف مقصوره تقدیري کېږي، لکه: (عصا).

④: مطلقًا: دا د افعال له باب څخه اسم مفعول د مفرد مذکر صېغه ده، په معنا د (خلاص پرېښودل سوي ده، دلته يې معنا ده: په هر حالت کي، يعني د عصا او غلامي دواړو په دري سره حالتونو کي اعراب تقديري دی.
او په ترکيبي اعبتار (مطلقًا) له عصا او غلامي دواړو څخه حال واقع سوی دی، نو مطلب يې داسو، چي د دې دواړو په دري سره حالتونو کي اعراب تقديري وي.
يا دا يوازي له (غلامي) څخه حال واقع سوی دی، په دې صورت کي داسي څرګندېږي، لکه د کافيه مصنف رحمة الله عليه چي پر هغو نحوييونو رد کوي، کوم چي د (غلامي) په حالت جري کي د اعراب لفظي قائلين دي، نو د کافيه ملاصاحب رحمة الله عليه وايې، چي د (غلامی) په اخيرکي چي کومه کسره ده، هغه د کوم عامل له وجې نه ده، بلکي د (ياء) د مناسبت له وجې ده، که چېري دا د عامل له وجې وای، نو د بل عامل په راتلو به بدلېدای، حال دا چي دا د بل عامل راتلو په وخت کي هم پر خپل حال وي.
⑤: قاضٍ: دا اسم منقوص دی او د اسم فاعل صېغه ده، دلته ځيني مراد هغه اسم معرب دی، چي په اخير کي يې (ياء ماقبل مکسور) وي، کله چي دا معرف باللام وي، نو (ياء) ثابته پاتېږي، که نه وو، نو ساقطېږي.
دا په اصل کي (قاضيٌ) و، پر (ياء) ضمه ثقيله وه، هغه يې وغورزوله، بيا د التقاء ساکنين له وجې (ياء) حذف کړل سوه، نو (قاضٍ) ځيني جوړ سو، او اعراب ورباندي راتلل که څه هم ممتنع نه دی، ليکن د ثقيل کېدو له وجې نه دی ورباندي راغلی.
⑥: مسلميّ: دا د افعال له باب څخه د جمع مذکر اسم فاعل صېغه ده، په اصل کي (مسلمون) و، د جمع نون د اضافت له وجې وغورزېدی او (واو) د (سيدٌ) په قانون سره په (ياء) واوښت، بيا د (متجانسين) په قانون سره دواړه (ياءګان) مدغم کړل سوه، نو (مسلميّ) جوړ سو.
**وګورئ!** تر دې اعلال وروسته (واو) باقي نه سو پاته، ځکه نو د کافيه ملاصاحب رحمة الله عليه وويل، چي دده ضمه په واو تقديري سره وي.

دلته له (مسلمیّ) څخه مراد هر هغه جمع مذکر سالمه ده، چي د یاء متکلم وطرفته مضاف وي.

### د (واللفظی فیماعداه) وضاحت

**درېیمه خبره:** د (واللفظی فیماعداه) وضاحت:

واللفظی فیماعداه: په دې عبارت کي مصنف رحمه الله یوه ضابطه بیانوي، چي چېري، چیري اعراب بالحرکة ممتنع وي، لکه په (عصا او غلامی) کي، یا ثقېل وي، لکه په (قاضٍ) کي، دا راز چي چیري اعراب بالحروف ثقېل وي، لکه په (مسلمیّ) کي، نو په دې څلور سره قسمونو اسماؤ کي اعراب تقدیري وي، له دې پرته چي څومره صورتونه دي، کوم چي مخکي تېر سول، په هغو ټولو کي که اعراب بالحرکة وي، یا اعراب بالحروف وي، په ټولو کي لفظي دی.

د (فیماعداه) دْ ضمېر په مرجع کي د نحوي د علماؤ یو څه خبره سته، لیکن صحیح قول هغه دی، کوم چي علامه تاشکندي رحمه الله کړی دی، هغه دا چي د (عداه) ضمېر په مخکي عبارت (فیما تعذّر) کي د (ما) کلمه ته راجع دی.

### شپاړسم (۱۶) درس

### د غیر منصرف بیان

غیر المنصرف ما فیه علّتان من تسع او واحدةٌ منها تقوم مقامهما و هی:

(عَــــدْلٌ وَّوَصْفٌ وَّتَأْنِيْثٌ وَّمَعْرِفَةٌ وَّعُجْمَةٌ ثُمَّ جَمْعٌ، ثُمَّ تَرْكِيْبٌ. وَالنُّوْنُ زَائِدَةٌ مِّــــنْ قَبْــــــلِهَا اَلِــــفٌ وَّوَزْنُ فِـــعْلٍ وَ هَـــذَا الْقَوْلُ تَقْرِيْبٌ).

**مثل:** عمرَ و احمرَ و طلحةَ و زینبَ و ابراهیمَ و مساجدَ و معدیکربَ و عِمْرَانَ و احمدَ.

**ترجمه:** غیرمنصرف هغه (اسم معرب) دی، چي پکي له نهو سببونو څخه دوه سببونه، یا یو سبب، چي د دوو سببونو پر ځای ولاړ وي راغلي وي، هغه نه سببونه دادي: عدل، وصف، تانیث، معرفه، عجمه، جمع، ترکیب، او هغه نون، کوم چي زائد وي، تر ده مخکي الف او وزن فعل وي او دا قول حق ته ډېر نژدې دی، لکه:

عمرَ و احمرَ و طلحةَ و زینبَ و ابراهیمَ و مساجدَ و معدیکربَ و عِمْرَانَ و احمدَ.

**تشريح**: د نن په سبق کي څلور خبرې دي:
①: د غير منصرف لغوي او اصطلاحي معنا او د تسميه وجه يې، ②: د عبارت لنډه تشريح، ③:د والنّون زائدةٌ ترکيبي صورتونه، ④: د وهذا القول تقريبٌ مختلفه توجيهات.

**تمهيد**: کله چي مصنف رحمه الله عليه د اسم د اعراب له تفصيل څخه فارغ سو، د کوم په ضمن کي چي د غير منصرف اعراب هم بيان سو، نو اوس له دې ځايه په باقاعده ډول تفصيل بيانوي، او اسم منصرف يې ځکه بيان نکړ، چي هغه د ډېر استعمالېدو له وجې معروف دی، دوهمه وجه دا چي د غير منصرف په تعريف سره د منصرف تعريف پخپله معلومېږي، لکه چي وايي: (و بضدّها تتبيّن الاشياء).

### د غير منصرف لغوي او اصطلاحي معنا او د تسميه وجه

**لومړۍ خبره**: د غير منصرف لغوي او اصطلاحي معنا او د تسميه وجه:
د غيرمنصرف لغوي معنا داده، چي (هُواسمٌ غير قابل للزّيادة اى الكسرة و التّنوين) يعني غير منصرف هغه اسم معرب دی، چي زياتوب، يعني کسره او تنوين نه قبلوي.
او د نحويينو په اصطلاح کي غير منصرف دېته وايي: (وهو ما فيه علّتان من تسع او واحدةٌ منها تقوم مقامهما) يعني غير منصرف هغه اسم معرب دی، په کوم کي چي د منع صرفې له اسبابو څخه دوه سببونه، يا يو داسي سبب، چي د دوو سببونو پر ځای ولاړ وي.
مو ږ په عبارت کي د (ما) کلمه معنا په اسم معرب وکړه، د دې لپاره، چي څوک په (ضربَتْ) اعتراض ونکړي، چي په دې کي دوه سببونه يعني تانيث او وزن فعل موجود دي، بيا هم غير منصرف نه ده، ځکه چي (ضرَبَت) فعل دی او مبني هم ده، چي دواړه زمونږ له موضوع څخه وتلي دي.
همدا راز په (حضار، قطار او نزال) کي هم که څه هم دوه سببونه يعني علميت او تانيث موجود دي، لېکن د مبني کېدو له وجې دا هم زمونږ له تعريف څخه وتلي دي، ځکه چي زمونږ بحث له معرب څخه دی.

او (نوحٌ) که څه هم معرب هم ده او دوه سببونه یعني علمیت او عجمه هم پکي راغلي دي، خو بیا هم غیرمنصرف ځکه نه دی، چي مخته به دا خبره راسي، چي عجمه د غیر منصرف لپاره سبب مؤنث هغه وخت جوړېږي، کله چي پکي له دوو شرطونو څخه کوم شرط شتون لري، یعني یا خو هغه اسم (زائد علی الثلاثة) وي، یاخو به لږ ترلږه (متحرک الاوسط) هرومرو وي، او دلته له دغو شرطونو څخه یو شرط نسته.

او وجه د تسمیه یې داده، چي د منصرف معنا ده ګرزېدونکی او د غیر منصرف معنا ده نه ګرزېدونکی، نو اسم منصرف هم د عواملو له وجې د مختلفو حالتونو طرفته ګرزي، ځکه نو ورته منصرف وایې او په غیر منصرف کي په ځینې حالاتو کي ګرزېدل نسي راتلای، نو ځکه ورته غیرمنصرف وایې.

دوهمه خبره: د عبارت لنډه تشریح:

د منع صرفې (غیر منصرف کېدو) اسباب نه دي، کوم چي شیخ ابو سعیدعبدالرحمان بن محمد بن عبیدالله الانباري الکوفي رحمة الله علیه په خپلو دوو شعرونو کي جمع کړي دي، تر هغو دوو شعرونو مخکي هم یو شعر دی، کوم چي په کتاب کي محشي صاحب را نقل کړی دی، له هغه سره چي یو ځای سي، نو پوره اشعار په لاندي ډول دي:

موانع الصّرف تسعٌ کلّما اجتمعت
ثنتان منها فما للصّرف تصویب

عدل ووصف و تانیثٌ و معرفة
و عجمةٌ ثم جمعٌ ثم ترکیبٌ

والنّون زائدةٌ من قبلها الفٌ
ووزن الفعل و هذا القول تقریب

په دې شعرونو کې لکه څنګه چې له عدل څخه تر عجمه پورې (واو) د عطف لپاره دی، همدا راز په (ثم جمع ثم ترکیب) کې (ثم) هم د عطف لپاره ده، نه د تراخي لپاره، که داسې نسي، نو په معنا کې خرابي لازمېږي، ځکه چې بیا یې مطلب داسې کېږي: چې په کوم اسم کې جمعیت وي، نو تر جمعیت مخکې به یکې عدل، وصف، تانیث، معرفه او عجمه وي، تر دغو وروسته به جمعیت وي، پاتې سوه داخبره، چې د (ثم) پر ځای یې (واو) ولې نه دی راوړی، نو واو یې ځکه نه دی راوړی، چې د شعر وزن پر قرار پاتې سي.

**دریمه خبره**: د والنون زائدة ترکیبي صورتونه:

په شعر کې (زائدةٌ) منصوب او مرفوع دواړه ویل کېدای سي، که چېرې مرفوع و، نو د (النون) لپاره صفت کېږي، په دې صورت کې د (النون) الف لام یا خو زائد دی، یا عهدذهني دی، ځکه چې په دې دواړو سره هېڅ اسم معرفه نسي کېدای، بلکې نکره پاتېږي، نو د موصوف او صفت تر مینځ په تعریف او تنکیر کې د عدم موافقت سوال نه واردېږي.

او د منصوب کېدو په صورت کې زائدةً له (النون) څخه کوم چې د (تمنع) محذوف فعل لپاره فاعل دی حال واقع کېږي، په دې صورت کې د عبارت تقدیر داسې کېږي: (تمنع النون الصَّرفَ حال کونها زائدةً).

او په (من قبلها) کې دوه احتمالونه دي، یو دا چې دا جار او مجرور متعلق سي د (ثابتٌ یا کائنٌ) په محذوف اسم پورې، په دې صورت کې دا خبر مقدم کېږي او (اَلفٌ) مبتداء مؤخره کېږي، لکه چې په کتاب کې ناکت صاحب لیکلی دی.

دوهم دا چې (من قبلها) متعلق سي په (ثبتَ) فعل محذوف پورې، په دې صورت کې اَلفٌ د (ثبتَ) فعل محذوف لپاره فاعل جوړېږي، په دې صورت کې عبارت داسې کېږي: (تمنع النونُ الصرفَ حالَ کونها زائدةً ثابتةً او تثبت من قبلها الف) دا د احوال مترادفه صورت دی.

او بیا په (من قبلها الفٌ) پوره جمله کې دوه احتمالونه دي، یو دا چې دا هم د (النون) فاعل څخه حال جوړېږي، څرنګه چې په دې صورت کې له یوه ذوالحال څخه دوه حالونه واقع کېږي، ځکه نو ورته احوال مترادفه ویل کېږي.

دوهم دا چي دا پوره جمله د (زائدةً) له مستتر (پټ) ضمیر څخه حال جوړه سي، په دې صورته کي دېته احوال متداخله ويل کېږي، ځکه چي په دې صورت کي يو حال په دوهم حال کي داخلېږي، اوس د عبارت تقدير داسي کېږي: (و تمنع النونُ الصَّرفَ حال کونها زائدةً من قبلها الفٌ).

ليکن په دې دوو صورتونو کي صرف د (نون) زائد کېدل معلومېږي، نه چي د (الف) هم، ځکه دِ هغه صرف ثابت کېدل معلومېږي، نو غوره او ښه ترکيب دادی: چي (الفٌ) د (زائدةٌ) صيغه اسم فاعل لپاره فاعل جوړ سي او (من قبلها) جار و مجرور تر دغه (زائدةٌ) پوري متعلق سي، نو د عبارت تقدير داسي کېږي: (و تمنع النونُ الصَّرفَ حال کون الالف زائدةٌ من قبلها) په دې صورت کي د الف زائد کېدل خو ښکاره دي، پاتې سو د نون زائد کېدل، نو هغه د عربو له يوې محاورې څخه معلومېږي، هغه دا چي کله عرب دا وواييې (جاءَ زَيْدٌ راكبًا من قبله اخوه)، نو د دوی مطلب دا وي، چي د رکوب (سپرتيا) په صفت کي زيد او دده ورور دواړه شريکان دي، خو په راتلو کي د زيد ورور مقدم دی، دا راز دلته هم د زيادت په وصف کي الف او نون دواړه شريکان دي، خو په زائد کېدو کي الف تر نون مقدم دی.

(مثل عمرُ و احمرُ ا لخ) مصنف رحمه الله لکه څرنګه چي په شعر کي د منع صرفی اسباب ذکر کړي دي، د منع صرفی مثالونه يې هم پر هغه ترتيب راوړي دي، د دې زيات وضاحت ضرورت نسته، ځکه چي ناکت بين السطور په هر مثال کي د اسبابو راتلل په ګوته کړي دي.

## دوهذا القول تقريب توجيهات

**څلورمه خبره**: د و هذا القول تقريب توجيهات:

دلته په وهذا القول تقريب کي علامي جامي رحمه الله درې وجې ذکر کړي دي:

①: (تقريب) مصدر په معنا د فاعل دی، نو عبارت داسي کېږي (وهذا القول مقرِّبٌ الى الحفظ)، يعني د منع صرفی اسباب داسي د شعر په صورت کي ډېر اسانه په يادېږي.

②: (تقريب) په اصل كي (تقريبیّ) په معنا د (مجازیّ) ده، د كوم طرفته چي ناكت هم اشاره كړې ده، مجازي يې ځكه ورته ويلي دي، چي په حقيقت كي ټول نه اسباب نه دي، بلكي په دوی كي يې د دوو علتونو مجموعي ته مكمل يو سبب ويلي دي، په دې حساب ورته نه ويل حقيقة نه دي، بلكي د مجاز په ډول دي.

③: مصدر په معنا د مفعول يعني (هذا القول مقرَّبٌ الى الصَّواب) نو مطلب يې داسو، چي د منع صرف د اسبابو په شمېر كي اختلاف دی، د ځينو په نزد نه دي، د ځينو په نزد يوولس دي، او د ځينو په نزد اووه دي، خو په ټولو كي صحيح قول همدا دی، چي نه دي.

## اوولسم (۱۷) درس

## له غير منصرف سره څه تړلې مسئلې

و حكمه: ان لا كسرة ولا تنوين ويجوز صرفه للضرورة او للتناسب، مثل: (سلاسلًا و اغلالًا) و مايقوم مقامهما الجمع والفا التانيث.

**ترجمه**: د غير منصرف حكم دادی، چي پر ده نه كسره راتلای سي، او نه تنوين او روا ده، چي غير منصرف د كوم ضرورت شعري له وجې، يا د مناسبت له وجې منصرف سي، لكه (سلاسلًا و اغلالًا) او هغه اسباب كوم چي (يو وي) پر ځای د دوو سببونو ولاړ وي، هغه جمع منتهی الجموع او د تانيث دوه الفونه دي.

**تشريح**: تر دغه عبارت لاندي موږ څلور خبرې ذكر كوو:

①: د غير منصرف حكم، ②: پر ده د كسرې او تنوين د نه راتلو وجه، ③: د غير منصرف د منصرف جوړېدو ځايونه، ④: هغه اسباب كوم چي ددوو پر ځای ولاړ وي، او دهغوی وضاحت.

### د غير منصرف حكم

**لومړی خبره**: د غير منصرف حكم:

د غير منصرف تر تعريف وروسته مصنف رحمه الله د غير منصرف حكم بيانوي، لكه چي وايې: د غير منصرف حكم دادی، چي پر ده كسره او تنوين نسي راتلای.

**دوهمه خبره**: پر غیر منصرف دکسرې او تنوین نه راتلو وجه؛

پر غیر منصرف ځکه کسره او تنوین ځکه نسي راتلای، چي غیر منصرف له فعل سره په فرعیتینو کي مشابهت لري، یعني لکه څنګه چي فعل د دوو شیانو فرع دی، یو د معنا په اعتبار او دوهم د اشتقاق په اعبتار، یعني په معنا ښیندلو کي فاعل ته محتاج دی او په جوړېدو کي و مصدر ته محتاج دی، نو ګواکي فاعل او مصدر اصل سوه او فعل یې فرع سو، دا راز غیر منصرف هم په غیر منصرف کېدو کي د منع صرفی په اسبابو کي دوو سببونو ته، یا یوه داسي سبب ته چي ددوو سببونو پر ځای ولاړ وي محتاج دی، او دا ظاهره خبره ده، چي په دې اسبابو کي هر یو سبب د یو شی فرع وي، مثلا عدل د معدول عنه فرع دی او وصف د خپل موصوف فرع دی، تانیث د تذکیر، معرفه د نکره، عجمه د عربي، جمع او ترکیب د مفرد، وزن فعل د وزن اسم، الف او نون زائدتان یا خو د (مزیدٌ علیه) فرع دي، یا د الف ممدوده او مقصوره فرع دی(علی اختلاف الاقوال کما سیأتی بیانه بالتفصیل ان شاء الله تعالیٰ).

نو څرنګه چي د غیر منصرف له فعل سره مشابهت ثابت سو، نو د دواړو حکم هم یو سو، یعني لکه څرنګه چي پر فعل کسره او تنوین نسي راتلای، نو پر غیر منصرف هم نسي راتلای او پر فعل ځکه نسي راتلای، چي دا د اسم خاصي دي او قاعده ده چي (خاصة الشئ لا توجد فی غیره) یعني د یو شی خاصه په بل شی کي نسي راتلای.

### له غیر منصرف څخه د منصرف جوړېدو ځایونه

**درېیمه خبره**: له غیر منصرف څخه د منصرف جوړېدو ځایونه:

مصنف رحمه الله د (الضرورات تبیح المحذورات او د یجوز فی الشعر ما لایجوز فی غیره) د قواعدو په مخکي د ښودلو له کبله ویلي دي، چي په دوو ځایونو کي د غیرمنصرف منصرف کېدل روا دي؛

**لومړی ځای**:

د ضرورت شعري له وجې، دا بیا پر درې قسمه دی؛

①: چي د غير منصرف مستعمل کېدو له کبله د شعر وزن خرابېږي، يعني د شعر خپل خاص عروضي اوزان ټوټه، ټوټه کېږي، لکه د فاطمه رضي الله عنها شعر، کوم چي يې د رسول الله ﷺ پر روضه مطهره په داسي حال کي ووايه، چي يو موټ خاورې يې را پورته کړي، په سترګو يې و مښلې:

ما ذا عـــلى مَنْ شَمَّ تُربةَ اَحْمَد
اَنْ لا يَشُمَّ مدّی الزَّمَان غواليا
صُبَّت عليَّ مصائبٌ لـــــو انَّهَا
صُبَّت على الايام صِـــــرنَ لَيَا

**ترجمه**: پر هغه څه واجب دي، کوم چي د قبر شريف خاورې بوی کړي؟ پر هغه واجب دي، چي ټول عمر بله خوشبويي بوی نکړي، پر ما داسي مصيبتونه راغله، که چيري پر ورځو راغلي وای، نو شپې به ګرزېدلي وای.

**وګورئ**! دلته يې (مصائب) له غير منصرف کېدو سره، سره منصرف ويلی دی، ځکه که چيري غير منصرف وويل سي، نو د شعر وزن خرابېږي.

②: وزن قافيه، يعني د شعر د اخيري برخې وزن خرابېږي، لکه د علي رضي الله عنه شعرونه:

سلامٌ علیٰ خير الانام و ســـــيد
حبيب الٰـــــه العالمـــــين محمّدٍ ﷺ
بشيرنذير هـــــــاشميِّ مكرّم
عطوفٍ رؤوفٍ من يسمّى بأحمدِ ﷺ

د دې شعر په اخيرکې يې مبارک نوم احمد ﷺ له غير منصرف کېدو سره، سره د قافيه د برابرېدو لپاره منصرف ويلی دی.

③: له زحاف څخه د ځان ژغورنې له کبله (زحاف په لسو مشهورو ارکانو کي د کوم رکن تبديلۍ ته وايې، چي تفصيل به يې انشاء الله تعالیٰ په علم عروضو کي ووينئ)، لنډه دا چي کومه غير منصرف کلمه که چېري په شعر کي غير منصرف وويل سي، نو وزن شعر خو باقي پاتېږي، ليکن له کبله يې سلاست

(روانګي) له مینځه ځي، لکه څرنګه چي امام شافعي رحمه الله علیه د امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله علیه په ستاینه کي ویلي دي:

هنيئًا لأربابِ النعيم نعيمُهم وللعاشق المسكين ما يتجرَّعُ

اَعِدْ ذكرَ نعمانٍ لنا اِنَّ ذكرَهُ هـــوالمسك اذا كرّرته يضوَّع

**ترجمه**: د نعمتونو څښتنانو ته دي د دوی د نعمتونو مبارک سي، د مسکین عاشق لپاره د جدایي غوړپ، زما په وړاندي د نعمان بن ثابت یادونه په وار، وار وکړه، ځکه چي هغه د مشکو په څېر زیاتېږي، ترڅو چي ته د هغه یادونه کوي.

وګوره! دلته (نعمان) که چېري غیر منصرف یعني (نعمانَ) وویل سي، نو مذکوره خرابي لازمېږي، یعني سلاست او روانګي له مینځه ځي.

**دوهم ځای:**

**او للتناسب**: د غیر منصرف د منصرف جوړېدو دوهمه وجه تناسب دی، د تناسب مطلب دادی، چي په فصیح کلام کي د منصرف اسم تر څنګ یو غیر منصرف هم راغلی وي، نو د غیر منصرف د اسم منصرف په ګاونډ کي د واقع کېدو له وجې (دصحبت صالح تراصالح کند) مصداق جوړېږي منصرف ویل کېږي، مثلاً د الله جل جلاله وینا ده (اِنَّا اَعْتَدْنَا لِلْکَافِرِیْنَ سَلَاسِلًا وَ اَغْلَالًا وَ سَعِیْرًا) وګوره! دلته (سلاسل) پخپله غیر منصرف دی، لیکن له (اغلالًا) سره د مناسبت له وجې منصرف لیکل سوی دی.

د (سلاسلا) له (اغلالًا) سره مناسبت لفظي او معنوي دواړه سته، لفظي خو دا راز دی، چي دا دواړه اکثره وخت یو ځای راځي او معنوي مناسبت یې دادی، چي (سلاسل) په معنی د ځنځېر ده او (اغلالا) په معنا د طوق ده او دا دواړه شیان د مجرم لپاره د سزا په ډول کارېږي.

**څلورمه خبره**: د هغو اسبابو وضاحت، کوم چي د دوو سببونو پر ځای ولاړ وي:

و ما يقوم مقامهما الجمع والفا التانيث :

اوس غواړي چي دا را وښیي چي د منع صرف له اسبابو څخه دوه سببونه داسي دي، چي که چېري له دوی څخه یو سبب هم راسي، نو له وجې یې هغه اسم

غیرمنصرف کېږي، ځکه له دغو دوو څخه هر یو د دوو پر ځای ولاړ دی، یو (تانیث بالالف) یعني الف ممدوده او الف مقصوره، دوهم جمع منتهی الجموع.
تانیث بالالف د دوو سببونو پر ځای ځکه درېږي، چي یو خو په ده کي دننه تانیث دی او دوهم لزوم د تانیث دی، یعني یو خو د ده صرف د تانیث لپاره کېدل او دوهم د ده له تانیث څخه کله هم نه بېلېدل دي، یعني لزوم تانیث، دوهم د یوه مستقل تانیث په حکم کي دی، نو ګواکي په ده کي دوه تانیثه راغله.
او جمع منتهی الجموع هم د دوو سببونو پر ځای ځکه درېږي، چي په دې کي جمع مکرره وي، هغه که حقیقتًا وي، لکه (اکالبُ) جمع د (اکلب) او (اکلب) جمع د (کلب)، دا راز (اساور) جمع د (اِسورة) او (اسورة) جمع د (سوار)، او که حکمًا تکرار وي، یعني په حقیقت کي پکي جمع مکرره نه وي، لیکن د منتهی الجموع پر وزن د راتلو له وجې ورته جمع الجمع ویل سوي وي، لکه (مساجد او مصابیح) وغیره، نو ګواکي، چي په دې کي دننه جمع مکرره ده او هره جمع مستقل د یوه سبب په درجه کي ده، نو ګواکي دوه سببونه پکي راغله.

## اتلسم (۱۸) درس
## عدل او تعریف یې

فالعدل خروجه عن صیغته الاصلیة تحقیقًا کثُلاث و مَثلَث، و اُخَرَ و جُمَعَ او تقدیرا کعُمَرَ و باب قَطَام فی تمیم.

**ترجمه**: نو د عدل معنا داده، چي اسم له خپلې اصلي صیغې څخه را کاږي، هغه که په حقیقي توګه وي، لکه (ثُلاث و مَثلثَ او اُخَر و جُمَع)، یا په فرضي او تقدیري توګه وي، لکه: عُمَر او د (قَطَام) وزن هم د بنو تمیم په لغت کي.

**تشریح**: د نن په سبقه کي څلور خبرې دي:
①: د عدل د تقدیم وجه، ②: د عدل لغوي او اصطلاحي تعریف، ③: د خروجه د ضمیر مرجع او په تعریف کي د قیدونو فائدي، ④: د عدل قسمونه.

**لومړۍ خبره**: د عدل د تقدیم (مخکې کېدو) وجه:

د منع صرف اسباب یې په شعر کې په اجمالي ډول بیان کړي وه، اوس یې په تفصیل کې عدل ځکه مقدم کړ؛ چې هلته په اجمال کې مخکې و، نو د دغه مناسبت له وجې یې دلته هم مخکې کړ.

دوهمه وجه یې داده، لکه څرنګه چې تاسو وویل، چې عدل په منزله د مطلق دی، یعني د غیرمنصرف د سبب جوړېدو لپاره له ده سره کوم قید نسته، حال دا چې له ده پرته ټول اسباب په منزله د مقید دي، ځکه چې له هغو څخه له هریوه سره یو نه یو نه قید او شرط هرومرو وي، نو ګواکې مطلق یې پر مقید مخکې کړ، ځکه قاعده ده چې مطلق پر مقید مقدم کېږي.

## د عدل لغوي او اصطلاحي تعریف

**دوهمه خبره**: د عدل لغوي او اصطلاحي تعریف:

د عدل لغوي معناوې ډېرې دي، چې یو څوئې په لاندې ډول دي:

①: که یې چیرې په صله کې (عَن) راغلی و، نو معنا یې ده اعراض کول، لکه (صَلُحَ زَیْدٌ فعدلَ عن المعاصی).

②: او که یې چیرې صله (الی) راغلې وه، نو معنا یې ده رجوع کول، لکه (المسافر عدل الی بیته).

③: او که یې چیرې صله (مِنْ) راغلې وه، نو معنا یې ده لیرې کېدل، لکه: (عدل الجمّال من البعیر).

④: او که یې چېرې صله (فِیْ) راغلې وه، نو معنا یې ده عدل او انصاف کول، لکه: عدل عمرو فی حکمه.

⑤: او که یې چیرې صله (بَیْنَ) راغلې وه، نو هم یې معنا انصاف او برابري کول دي، لکه (عدل سعیدٌ بین ازواجه) (کما مر فی تقریر الکافیة).

او د عدل اصطلاحي معنا د کافیه ملاصاحب رحمه الله بیان کړې ده، چې (خروجه عن صیغته الاصلیة تحقیقًا کثلاث و مثلث و اُخر وجمع او تقدیرًا کعمر) او د نحوي نورو علماؤ رحمهم الله یې دا راز تعریف کړی، چې (خروجه عن صیغته

الاصلیة الی صیغة اخری تحقیقًا کان او تقدیرًا مع بقاء المادة الاصلیة بلا قاعدة نحویة وقانون صرفی) یعني داسم خپل اصلي صورت پرېښودل، د کوم بل صورت طرفته بېله نحوي او صرفي قاعدې اوښتل کېدل، بیا که دا اوښتل په حقیقي ډول وي، لکه (ثلاث او مثلث او اخر او جمع)، یا په تقدیري و فرضي ډول وي، لکه: (عمر زفر وغیره)، په دې شرط، چي اصلي ماده، یعني حروف اصلي یې پر خپل حال پاتې وي.

**درېیمه خبره:** د خروجه د ضمېر مرجع او په تعرېف کي د قیدونو فائدې:

خروجه: د ضمېر مرجع یې اسم ده، په ماقبل کي اسم که څه هم په لفظ کي مذکور نه دی، لیکن دا بحث او مقام پخپله پر دې خبره دلالت کوي، چي مرجع یې اسم ده، ځکه چي دا بحث دی د اسم.

خروجه عن ضیغته: د کتاب مصنف رحمة الله علیه د عدل په تعرېف کي له (خروجه) سره د (صیغته) قید لګولی دی، له دې څخه معلومه سوه، چي تغېر صرف په صیغه کي وي، له صیغې پرته ماده اوحروف اصلي پر خپل حال پاتې وي، لهذا په دې قید سره هغه اسماء وزي، په کومو کي چي له صیغې سره ماده هم بدلېږي، لکه (یدٌ او دمٌ) چي په اصل کي (یدوٌ او دموٌ) وو.

بیا چي یې کله د (صیغته) اضافت د ضمېر وطرفته وکړ، نو مطلب یې داسو، چي هغه له خپلې صیغې څخه را واوښت، نو په دې سره اسماء مشتقه ووتل، ځکه هغه له خپلو صیغو څخه نه بلکي له اسم مصدر څخه را اوښتي دي.

او د (الاصلیة) په قید سره مغیرات شاذه وزي، لکه (اقوس او انیب) کوم چي د (قوسٌ او نابٌ) جمع دي، حال دا چي له قاعدې سره موافق د دوی اصلي صیغه (اقواسٌ او انیابٌ) کېدل پکار وه، ځکه چي د اجوف لپاره قاعده ده، چي جمع یې د (افعالٌ) پر وزن راځي، لکه له قومٌ څخه اقوامٌ او له قولٌ څخه اقوالٌ.

## د عدل قسمونه

**څلورمه خبره:** د عدل قسمونه:

تحقیقًا.....او تقدیرًا: دلته مصنف رحمة الله علیه اشاره وکړه، چي عدل دوه قسمونه لري: عدل تحقیقي او عدل تقدیري.

عدل تحقیقي هغه ته وایې په کوم کي چي د یو اسم پر معدول عنه له غیر منصرف ویلو پرته کوم خارجي دلیل هم موجود وي، لکه چي د دې لپاره مصنف رحمة الله علیه څلور مثالونه راوړي دي:

(١=٢) ثلث او مثلثُ دا دواړه غیر منصرف دي، ځکه چي وصف او عدل تحقیقي پکي راغلي دي، په دوی کي د عدل کېدل موږ یو خو د دوی د غیر منصرف کېدو له وجې منو او له غیر منصرف کېدو پرته له موږ سره خارجي دلیل هم موجود دی، هغه دا چي د ثلاث او مثلثُ په هره ژبه کي ترجمه وکړي، نو ته به ووینې چي په هغه کي به تکرار راغلی وي، لکه د الله جل جلاله مبارکه وینا (فَانْكِحُوْا مَا طَابَ لَكُمْ مِنَ النِّسَاءِ مَثْنٰى وَ ثُلَاثَ وَرُبَاعَ) نو تاسو له هغو ښځو سره نکاح کوئ، چي ستاسو خوښې وي، له دوو، دوو سره، او له دریو، دریو سره او له څلورو، څلورو سره.

**وګوره!** دلته په الفاظو کي هېڅ تکرار نسته، خو په معنا کي تکرار راغلی دی او قاعده ده، چي (انّ تکرار المعنیٰ یدلّ علیٰ تکرار اللفظ) له دې څخه معلومه سوه، چي مثنی په اصل کي اثنان اثنان او ثلاث په اصل کي ثلاثة ثلاثة او رباع په اصل کي اربعة اربعة وو، نو ګواکي چي د ده له غیر منصرف ویلو پرته هم له موږ سره دلېل پیدا سو.

**فائده:** په یاد لرئ، چي دا ثلاث مثلث رباع وغیره کله په ترکیب کي واقع سي، نو دا یا خو د موصوف لپاره صفت واقع کېږي، یا د ذوالحال لپاره حال، یا د مبتداء لپاره خبر، لکه جَاءَ الْقَوْمُ رُبعَ، ای: اَرْبَعَةً اربعة و ذَهَبُوا اَحَادَ، ای: واحدًا واحدًا، یعني راغی ماته قوم په داسي حال کي چي څلور، څلور یو ځای راغلو، بیا بېرته ولاړو په داسي حال کي چي یو، یو ولاړو.

③: اخَرُ: دا هم د عدل تحقیقي مثال دی، د ده پر معدول عنه په خارج کي له موږ سره دلیل دادی، چي دا د اسم تفضېل صیغه ده، کوم چي د (اخری) اسم تفضېل

مؤنث جمع دہ، لکه چي د (ضُرَبٌ ضُرْبَی او فتحٌ فتحی) جمع ده او دا اسم تفضیل په هکله موږ په نحومیر کي دا قاعده بیان کړې وه، چي پر درې طریقې استعمالیږي: ① : په مِنْ سره، لکه زیدٌ اعلم من عمرو، ② : په الف لام سره، لکه: جَاءَ نِیْ زیْد الأفضل، ③ : په اضافت سره، لکه: مکة والمدینة اشرفا المدن.

لیکن دلته چي کله موږ وګورو، نو په دغو دریو طریقو کي په یوه طریقه هم نه دی مستعمل سوی او بیا هم عربو ویلي دي، چي دا د اسم تفضیل صیغه ده، نو لازمي دہ، چي دا ومنو چي په دغو دریو صورتونو کي له کوم صورت څخه را معدول سوی دی، نو دلته هم له غیرمنصرف پرته دوهم دلیل پیدا سو.

④ : جمعُ: مصنف رحمه الله د عدل تحقیقي دا څلورم مثال وړاندي کړ، لکه چي له موږ سره دده پر معدول عنه په خارج کي دلیل دادی، چي دا د (جمعاء) پر وزن د (فعلاء) جمع ده او (فعلاء) پر دوه قسمه ده: اسمي او صفتي، د اسمي مطلب دا چي د ده پر وزن راتلونکې کلمه به یا اسم جامد وي، یا به د چا نوم وي، لکه (صحراء) او د صتفي مطلب دا چي د ده پر وزن په راتلونکې کلمه کي به د صفت معنا وي، لکه (حمراء) او قاعده داده، چي د (فعلاء) اسمي جمع پر وزن د (فعالی)، یا (فعلاوات) راځي، لکه د (صحراء) جمع چي (صحراواتٌ) او (صَحَارَی) راغلې ده، نو ګواکي د (فعلاء) د جمعې درې وزنونه متعین سول، حال دا چي (جُمَعُ) په دغو دریو کي پر یوه وزن هم نه ده او بیا هم موږ وایو، چي دا د (جمعاء) جمع ده، نو لازمي به موږ دا منو چي دا په (فعالی، فعلاواتٌ او فعلٌ) کي له کوم وزن څخه را معدول سوې ده.

**او تقدیرًا**: دا د عدل دوهم قسم عدل تقدیري دی، د دې تعریف دادی، چي پر معدول عنه کلمه له غیرمنصرف ویلو پرته له موږ سره په خارج کي هیڅ دلیل نه وي، بلکي صرف په فرضي ډول یکي عدل منو، لکه چي له نامه (تقدیري کېدو) څخه یې هم معلومیږي.

د کتاب مصنف رحمه الله د عدل تقدیري مثال (عُمَرُ) راوړی دی، په دې کي تفصیل دادی، چي عرب حضراتو دا غیرمنصرف ویلی و، خو کله چي موږ یکي د

منع صرفی۔ اسباب ولټول، نو له معرفه کېدو پرته مو بل هېڅ سبب پیدانکړ، بیا هم عربو غیرمنصرف وایه، نو موږ مجبور سو، چي یو پکي عدل هم ومنو، هغه په دې ډول چي دا (عمر) له (عامرٌ) څخه را معدول سوی دی.

د تحقیقًا.....او تقدیرًا په ترکیب څو احتمالات سته:

①: د خروجه نسبت کوم چي د ضمېر وطرفته سوی، په هغه کي ابهام و، نو د نسبت اضافیه د ابهام د لیري کېدو لپاره د تمیېزپه ډول راوړل سوی دی.

②: دا دواړه د (کَانَ) محذوف خبرونه دي، په دې صورت کي د عبارت تقدیر داسي کېږي: تحقیقًا کان الخروج او تقدیرًا.

③: دا د محذوف فعل لپاره مفعول مطلق دی، په دې صورت کي د عبارت تقدیر داسي کېږي: حقق العدل تحقیقًا او قدر العدل تقدیرًا.

④: دا له خروجه څخه حال واقع سوی دی.

وباب قطام فی تمیم: قطام د عدل تقدیري دوهم مثال دی، د دې پر اصل هم د (عمرُ) په ډول به خارج کي هېڅ دلیل نه و، نو موږ فرض کړل، چي دا له (قاطمة) څخه را معدول کړل سوی دی.

له قطام سره لفظ د باب راوړل دېته اشاره ده، چي د دې مقصد صرف د (قطام) کلمه نه ده، بلکي له دې څخه مراد هر هغه اسم دی، کوم چي د (فعالِ) پر وزن وَي او په اعیان مؤنثه (په ښځینه وو کي د کوم چا) نوم وي، په دې شرط چي په لام کلمه کي یې (راء) نه وي راغلې، نو د بنو تمیم په نزد د عدل تقدیري او معرفه په وجه دا هم معرب او غیرمنصرف دي.

فائده: په هدایة النحو کي د اسماء افعال په بحث کي تاسو دا خبره ویلې، چي (قطام) د (فعالِ) پر وزن ده او دا د فعال وزن پر څلور قسمه دی:

①: د فَعالِ وزن د امر په معنا هم راځي، لکه (نزالِ) په معنا د (انزِلْ) یعني را کښته شه.

②: د فَعالِ وزن د مصدر معرفه په معنا هم راځي، لکه (فجار) په معنا د (الفجور) یعني ګناه کول.

③: د فَعالِ وزن د مؤنث صفت لپاره هم استعمالېږي، لکه (فساقِ) په معنا د (فاسقة)، يعني سرغړوونکې ښځه).

④: د فَعالِ وزن په ښځينه وو کي د يو ښځې لپاره د نامه په ډول هم کارېږي، لکه: قطام، غلابِ، حضارِ.

## نولسم (۱۹) درس

## د غيرمنصرف د دوهم سبب (وصف) بيان

الوصف شرطه ان يكون فى الاصل، فلا تضره الغلبة، فلذلك صُرِف اربعٌ فى مررتُ بنسوةٍ اربعٍ و امتنع اسودُ و ارقمُ للحية و ادهمُ للقيد، وضعف منع افعىً للحية و اجدلُ للصقر، واخيلُ للطائر.

**ترجمه:** د وصف لپاره شرط دادي چي د اصلي وضع په اعتبار به وصف وي، د اسميت غلبه به ضرر نه ور رسوي، له همدې وجې په (مررت بنسوة اربعٍ) کي (اربع) منصرف دی او (اسود، ارقمُ، ادهم) غيرمنصرف دي او د دغو دريو (افعیٰ واجدل و اخيل) غيرمنصرف کېدل کمزوري دی.

**تشريح:** د نن په سبق کي څلور خبرې دي:

①: د وصف لغوي او اصطلاحي معنا، ②: د وصف د غيرمنصرف لپاره د سبب جوړېدو شرط، ③: د مذکوره شرط وجه، ④: پر مذکوره شرط د تفرېعاتو وضاحت.

## د وصف لغوي او اصطلاحي معنا

**لومړۍ خبره:** د وصف لغوي او اصطلاحي معنا:

د وصف معنا که څه هم د کافيه ملاصاحب رحمة الله عليه نه ده بيان کړې، خو د فائدې د تماميت لپاره دلته څرګندېږي، چي د وصف لغوي معنا داده: (المعنى القائم بالغيرسواءٌ دلّ على كماله او على نقصه، اى: على مدحه او على ذمه.

او د نحويينو په اصطلاح کي وصف دېته ويل کېږي: (كون الاسم دالًا على ذاتٍ مبهمةٍ ماخوذةٍ مع بعض صفاتها، سواء كانت هذه الدّلالة بحسب الوضع او بحسب الاستعمال).

**ترجمه**: د يو اسم د ذات مبهمه پر ځيني صفاتو دلالت كول، دا دلالت كه د اصلي وضع په اعتبار وي، يا په وروسته كي د صفت په معنا كي د استعمالېدو له وجې وي، لكه اسماء مشتقه.

**دوهمه خبره**: د وصف د غيرمنصرف لپاره د سبب جوړېدو شرط:

وصف هم د منع صرف په اسبابو كي يو سبب دى، خو دا هغه مهال مؤثر جوړېږي، كله چي د اصلي وضع په اعتبار د وصف لپاره وضع سوى وي، نو هر هغه اسم كوم چي په اصل وضع كي د صفت لپاره نه وي، په وروسته كي كه څه هم د صفت په ډول استعمال سوى وي، دا كه څه هم وصف خو دى، ليكن د غيرمنصرف لپاره سبب نسي كېداى، خو هغه اسم چي واضع د وصف لپاره وضع كړى وي، په وروسته كي كه څه هم پر ده علميت غالب هم سي او د صفت معنى په ده كي لږ سي، نو بيا هم دا د غير منصرف لپاره سبب جوړېداى سي او دعلميت پر ده غالب كېدل كوم تاوان نه كوي، ځكه چي اعتبار اصل وضع ته وي، لكه (اجمَلُ) دا په اصل كي د وصف يعني (خوبصورتي) لپاره وضع سوى و، ليكن په وروسته كي علميت ورباندي غالب سو، لهذا اوس دا د وصف اصلي او وزن فعل له وجې غيرمنصرف جوړېداى سي، نه چي د وصف او علميت له وجې، ځكه چي تاسو ته په هداية النحو كي دا قاعده ښودل سوې چي وصفيت او علميت سبب مؤثر جوړېداى سي، جمع كېداى نسي (كماسيأتى بعدسطور فى كتابنا هذا ايضًا).

**دريیمه خبره**: د مذكوره شرط وجه:

د وصف لپاره پورتنى شرط ځكه لګول سوى، چي په اسماؤ كي اصل انصراف وي او عدم انصراف فرع وي، نو د دوى له خپل اصل څخه د فرع طرفته د را اوښتلو لپاره ځواكمن سبب ته ضرورت و او وصف هغه مهال ځواكمن سبب جوړېداى سى، كله چي د اصل وضع په اعتبار سره وصف وي، نه چي هغه وخت په ده كي وصف عارضي او الحاقي وي.

**څلورمه خبره**: پر ذكر سوي شرط د تفريعاتو وضاحت:

علامه ابن حاجب رحمة الله علیه د (فلذلک) په پیل کي (فاء) تفریعیه او لام تعلیلیه راوړی دی (شرطه ان یکون فی الاصل او فلاتضره الغلبة) دواړه اصلونه یې د (المذکور) په تأویل سره اخستي دري قسمه تفریعات یې ذکر کړي دي:

①: صُرف اربعٌ: په دې هکله یې ویلې چي دا منصرف دی، ځکه چي موږ شرط لګولی و چي (ان یکون فی الاصل) او د اصل په اعتبار وصف هغه ته وایې، کوم چي پر ذات مبهمه دلالت کوي، حال دا چي (اربع) خو پر یوه معلوم شی، یعني (ما بین الثلاثة والخمسة) شمېر دلالت کوي؛ لهذا دا په (مررت بنسوة اربع) کي که څه هم د وصف لپاره دی، لیکن دا وصف عارضي او الحاقي دی، نو دا د غیرمَنصرف لپاره سبب نسي جوړېدای، ځکه چي اوس په ده کي صرف یو سبب یعني وزن فعل پاتې سو، کوم چي یوازي د دوو پر ځای درېدای هم نسي، نو ځکه (اربع) پر خپل اصل یعني انصراف پاتې سو.

②: و امتنع اسود و ارقم للحیة وادهم للقید: د دې دریو سره په هکله یې ویلې چي په دوی کي هریو د خپل اصل په اعتبار د صفت لپاره وضع سوی دی، یعني د اسود وضع د تور رنګ لپاره او د (ارقم) وضع د برګ (تور او سپین) لپاره او د (ادهم) وضع د تک تور لپاره سوې ده، په وروسته کي که څه هم دا نوم سو او علمیت یې پر وصفي معنا غالبه سوی دی، ځکه چي کله هم د دغو اسماؤ ذکر وسي، نو د اورېدونکې ذهن سمدستي د تور مار او تور رنګ لرونکي ځنځېر وطرفته ځي، خو بیا هم د علمیت پر غالب کېدل مضر نه دي، بلکي څرنګه چي تر علمیت مخکي په ده کي وصفیت سبب جوړېدی، اوس هم سبب جوړېږي، نو دغه درې سره اسماء د وزن فعل او وصف اصلي له وجې غیرمنصرف کېږي، نه چي د علمیت او وزن فعل له وجې.

**فائده**: د علمیت او غلبه علمیت تر مینځ فرق دادی، چي د غلبه علمیت له وجې معنی وصفي بلکل له مینځه نه ځي، او د علمیت له وجې معنی وصفي بلکل ختمېږي، له همدې وجې د هدایة النحو ملاصاحب رحمة الله علیه د وصف په هکله ویلي دي، چي (فلا یجتمع مع العلمیة اصلًا).

③: و ضعف منع افعی للحیة و اجدل للصقر و اخیل للطّائر.

**ترجمه:** د افعی، اجدل او اخیل درېو سره غیرمنصرف کېدل ضعیف دي، ځکه چي د دې درېو سره د اصل وضع په اعتبارسره په وصفیت کي اختلاف دی، دځینو علماؤ په نزد په دوی کي وصف اصلي دی، هغه په دې ډول چي (افعی) له (فعوة) په معنی د هرخبېث شی څخه مشتق ده، بیا په وروسته کي د مار نوم سو او (اجدل) له جدل (په معنی د قوت او ځواک) څخه مشتق ده، بیا په وروسته کي د شکره نومي مرغۍ نوم سو، دا راز (اخیل) له خیلان (په معنا د تور ټکي لرونکي شی) څخه مشتق ده، بیا په وروسته کي د یوې شین رنګي (چي څه دهبه پکي وي) مرغۍ نوم سود دې علماؤ په نزد دا دري سره د وزن فعل او وصفیت له وجې غیرمنصرف دی، حال داچي ځیني نورو علماؤ دغه مذکوره اسماء له اسماؤ څخه مشتق نه دي منلي، نو ددوی په نزد دا ټول منصرف دي.

ځرنګه چي علامه ابن حاجب رحمة الله علیه د دغو دواړو ډلو تر مینځ د درېیمګړي په ډول دا فیصله کړې، ځرنګه چي دا دواړه طرفونه د نحوي د علماؤ اقوال دي او دواړو پر خپل، خپل ځای صحیح ویلي دي، لېکن ځرنګه چي اصل په اسماؤ کي انصراف دی او عدم انصراف فرع دی، نو دوی پر خپل اصل په پرېښودلو د غیرمنصرف منونکو قول ضعیف بللی دی.

**فائده:** له ذکر سویو دري تفرېعاتو څخه په لنډو دومره معلومه سوه، چي هغه اسماء په کومو کي چي د وصفیت معنی موندل کېږي، هغه پر درې قسمه دي:

①: هغه اسماء چي د اصل وضع په اعتبار پکي د وصفیت معنا نه وي، بلکی وروسته پکي راغلې وي، لکه (اربعٌ)، نو داسي اسماء په اتفاق منصرف دي.

②: هغه اسماء چي د اصل وضع په اعتبار پکي د وصفیت معنا وي، لکه (اسود، ارقم او ادهم)، نو داسي اسماء په اتفاق غیرمنصرف دي.

③: هغه اسماء چي پکي اختلاف وي، یعني د ځینو علماؤ په اند د اصل وضع په اعتبار پکي د وصفیت معنا وي، او د ځینو په نزد پکي اصلي نه وي، بلکي عارضي اوالحاقي وي، لکه (افعی، اجدل او اخیل)، نو دداسي اسماؤ غیرمنصرف کېدل ضعیف دي، ځکه چي اصل په اسماؤ کي انصراف وي.

## شلم (۲۰) درس

## د غیرمنصرف د دریم سبب (تانیث) بیان

التانيث بالتاء شرطه العلمية والمعنويِ كذٰلک و شرط تحتم تاثيره الزيادة على الثلاثة او تحرک الاوسط اوالعجمة، فهندٌ يجوز صرفه و زينبُ و سقَر و ماه وجورُ ممتنعٌ، فان سُمِّيَ به مذكر، فشرطه الزيادة على الثلاثة، فقدمٌ منصرفٌ و عقربٌ ممتنعٌ.

**ترجمه:** تانیث په تاء، ددې لپاره شرط علمیت دی او تانیث معنوي هم همدا راز دی او د ده په حتمي او وجوبي ډول د غیرمنصرف سبب جوړېدو لپاره شرط دادی، چې تر دریو حرفونو به زیات وي (که چېري داسي نه و) متحرک الاوسط به وي (که چېري داهم نه وي، نو لږترلږه) عجمه خو به وي، له همدې وجې د (هندٌ) منصرف ویل هم روا دي او (زینب، سقر او ماه او جورُ) ټول غیرمنصرف دي، بیا که چېري د تانیث معنوي په ذریعه د کوم مذکر نوم کېښېښودل سي، نو بیا یې د مؤثر سبب جوړېدو لپاره شرط دادي، چې هغه به زائد على الثلاثه وي، همدا وجه ده، چې (قدمٌ) منصرف دی او عقرب غیرمنصرف دی.

**تشریح:** د نن په سبق کي درې خبرې کېږي:

①: د تانیث قسمونه، ②: د دوارو قسمونو د غیرمنصرف جوړېدو لپاره شرطونه، ③: د شرطونو وجه.

### د تانیث قسمونه

**لومړۍ خبره:** د تانیث قسمونه:

د غیرمنصرف دریم سبب تانیث دی، تانیث پر دوه قسمه دی: ①: تانیث لفظي، ②: او تانیث معنوي.

تانیث لفظي هغه اسم دی، په کوم کي چي د تانیث علامه راغلې وي، لکه (حمراء، حبلیٰ، فاطمة او حمزة) او تانیث معنوي هغه اسم دی، په کوم کي چي د تانیث علامه نه وي راغلې، خو پکي تاء مقدره (په حقیقي، یا حکمي ډول) راغلې وي، لکه (الارض او زینب).

**دوهمه خبره:** د تانیث د دواړو قسمونو لپاره شرطونه:
تانیث الفي یعني د الف ممدوده او مقصوره لپاره کوم شرط نسته، بلکي هغه په هر صورت کي د غیرمنصرف لپاره سبب جوړېږي، لیکن دلته د تانیث بالتاء بیان دی، د هغه لپاره علامه ابن حاجب رحمه الله ویلي دي (شرطه العلمیة والمعنوي کذلک)، چي د تانیث بالتاء په دواړو قسمونو کي که علمیت و، نو د غیرمنصرف لپاره سبب جوړېږي، که نه نه جوړېږي، لېکن د دواړو ترمینځ فرق سته، چي په تانیث لفظي کي که شرط پوره سي، نو غیرمنصرف ویل یې واجب دي، او په تانیث معنوي کي که شرط راسي، نو غیرمنصرف ویل یې واجب نه، بلکي صرف جائز دي، له همدې وجې مصنف رحمه الله د ده لپاره بېل عبارت راوړل (والمعنوي کذلک) یې وویل او (شرطهما العلمیة) یې ونه ویل.
وشرط تحتم تأثیره: وایې، چي د تانیث معنوي د یقیني او وجوبي اثر کوونکي جوړېدو لپاره شرط دادی، چي له علمیت سره، سره به هغه اسم (پر دریو حرفونو زیات) هم وي، لکه (زینب، سعادُ او کلثومُ) او داسي نورو، که چېري (پر دریو حرفونو زیات نه و)، نو (د مینځ حرف به یې حرکت لري) لکه: (سَقَر) کوم چي د جهنم د یوې طبقې نوم دی او که چېري (متحرک الاوسط) هم نه و، نو لږ ترلږه عجمه خو به هرومرو وي، لکه (ماه و جورُ)، کوم چي د دوو ښارونو، یا قلعه گانو نومونه دي.
غرض دا چي له دغو دریو څخه یو شق په (تانېث معنوي) کي راسي، نو په وجوبي ډول د غیرمنصرف سبب جوړېږي، که نه وي، نو صرف په جوازي ډول جوړېږي.
په (هندٌ) کي له دغو دریو شقونو څخه یو هم نسته، نو غیرمنصرف ویل یې صرف جائز دي، واجب او ضروري نه دي.
فإن سُمِّیَ به مذکرٌ، فشرطهُ الزیادةُ علی الثلاثة: ویلي یې دي، چي د تانیث معنوي په ذریعه که چېري د کوم مذکر نوم کړل سي، نو د غیرمنصرف د سبب جوړېدو لپاره یې په مذکوره دریو شرطونو کي یوازي (زیادت علی الثلاثه) کېدل شرط دی، لکه (عقربُ او زینبُ)، که چیري د انسانانو نومونه سي، نو دا

غیرمنصرف کېږي، ځکه څرنګه چې مخکې غیرمنصرف وه، اوس هم مذکوره شرط پکې جاري کېږي، لیکن که چیري (قدمٌ) د ښځو نوم کېښودل سي، نو که څه هم مخکې غیرمنصرف و، ځکه چې په ده کې تانیث له خپل شرط (متحرک الاوسط) سره و، خو اوس دا منصرف کېږي، ځکه چې اوس شرط بیله مشروط (تانیث) پاتې سوی دی.

**درېیمه خبره**: د مذکوره شرطونو وجه:

د تانیث بالتاء لپاره علمیت ځکه شرط سوی، چې په ده کې کومه تاء ده، هغه حرف زائد ده او د زائد حرف د زوال خطره وي، نو له دې خطرې څخه د ځان ساتلو لپاره له ده سره علمیت شرط سو (لان الاعلام تکون محفوظة عن التغیر بقدرالامکان)، یعني اعلام له تغیر او تبدل څخه تر وسه پوري محفوظ دي.

او د تانیث معنوي لپاره پر ذکر سوي شرط سربېره دوهم شرط (زائد علی الثلاثه) ځکه لګول سوی، چې په ده کې څه ثقل او سختي پیدا کېږي، مثلاً په (زائدعلی الثلاثه) اسم کې څلورم حرف د تاء تانیث پر ځای وي، همدا وجه ده، چې د تصغېر را ایستلو په مهال په ده کې تاء نه راځي، لکه چې د (زینبُ) تصغېر (زُوَیْنَبُ) راځي، او هغه اسم کوم چې (زائد علی الثلاثه) نه وي، نو د هغه په تصغېر کې تاء راځي، لکه چې د (قدمٌ) تصغېر (قدیمة) راځي.

او د متحرک الاوسط کېدو شرط ځکه لګول سوی، چې که څه هم دا (زائد علی الثلاثه) خو نه دی، لیکن د ده متحرک الاوسط کېدل ګواکې د څلورم حرف قائمقام دی او د عجمه شرط هم یوازې پکې د ثقل پیداکېدو لپاره لګول سوی دی.

تانیث معنوي چې کله د مذکر نوم کړل سي، نو په ده کې هم د (زائد علی الثلاثه) شرط ځکه لګول سوی، چې د مذکر د نامه د ویلو له وجې که څه هم په ظاهره د ده تانیث ختمېږي، خو د هغه قائمقام (څلورم حرف) موجود وي.

## یویشتم (۲۱) درس

## د غیرمنصرف د څلورم سبب (معرفه) بیان

المعرفة شرطها ان تکون علميةً.

**ترجمه:** معرفه، د معرفه شرط دادی، چي هغه به علميت وي.

**تشريح:** په ذکر سوي مختصر عبارت کي صرف دوې مختصرې خبرې دي:

①: د معرفه لغوي او اصطلاحي معنا، ②: د معرفه د غيرمنصرف لپاره د سبب جوړېدو شرط او وجه يې.

## د معرفه لغوي او اصطلاحي معنی

**لومړۍ خبره:** د معرفه لغوي او اصطلاحي معنی.

د معرفه لغوي معنی ده د حقيقت پېژندل، او په اصطلاح کي يې معنی داده، چي (هی اسمٌ وضع لشئ معين) يعني معرفه هغه اسم ده، چي د يو خاص معلوم شی لپاره وضع سوی وي، هغه معلوم شی که له ذوالعقول څخه وي، لکه (زيد، عمر، بکر) او که له غير ذوالعقول څخه وي، لکه: الکتاب، القلم وغيره.

**دوهمه خبره:** د معرفه د غيرمنصرف لپاره د سبب جوړېدو شرط او وجه يې:

معرفه د غيرمنصرف لپاره مؤثر سبب هغه مهال جوړېږي، کله چي پکي علميت شتون ولري او د معرفه په اوو قسمونو کي يې يوازي علميت ځکه خاص کړ، چي له علميت پرته چي څومره قسمونه دي، هغه غيرمنصرف نسي جوړېدای، مثلا لومړی درې قسمونه: مضمرات، اسماء اشارات او اسماء موصولات خو مبني دي او زموږ بحث له معرب څخه دی، نو دا درې قسمونه ووتل او د معرف باللام او مضاف په وجه خو غيرمنصرف هم منصرف کېږي، د غيرمنصرف لپاره سبب کېدل خو پر لويه لاره پرېږده، که نه دا به د موږ کانو په پشي له ساتلو سره مترادف وي، او معرفه په نداء هم د معرف باللام په حکم کي ده، ځکه د (يارجل) معنی (ياايّهاالرجل) ده، نو صرف اعلام پاتې سو، ځکه مونو خاص کړل.

**سوال:** که څوک ووايې، چي دلته مو د معرفه د سبب جوړېدو لپاره علم شرط کړی، ولي مو د دې پر عکس نه کول؟

**جواب:** دا سوال غلط دی، ځکه که چيري معرفه د علم د سبب جوړېدو لپاره شرط سي، نو هيڅ فائده نه کوي، ځکه چي علم له مخکي نه معرفه دی، بلکي اعرف دی، او که داسوال صحيح هم سي، نو جواب يې دادی، چي د غيرمنصرف

ټول اسباب د فروعاتو له قبیلې څخه دي، لکه څنګه چې مخکې تېر سو، نو د معرفه د سبب جوړېدو په مهال ده ته د نکره فرع ویل زیات مناسب او ظاهر دي، پر ځای د دې چې د علم سبب جوړ سي، او ورته د نکره فرع وویل سي.

**فائده:** معرفه له ټولو سببونو سره یو ځای کېدای سي، پرته له وصف څخه، ځکه چې وصف پر ذات مبهم دلالت کوي او معرفه پر ذات معین.

## دوویشتم (۲۲) درس

## د غیرمنصرف د پنځم سبب (عجمه) بیان

العجمة شرطها ان تكون علميةً فى العجمة وتحرُّك الاوسط اوالزيادة على الثلاثة، فنوحٌ منصرف و شترُ وابراهيم ممتنعٌ.

**ترجمه:** عجمه (د عجمه د غیرمنصرف لپاره د سبب جوړېدو) شرط دادی، چې دا به په عجمي ژبه کې علم وي او متحرک الاوسط، یا زائد (على الثلاثة) به وي، نو له همدې وجې (نوحٌ) منصرف دی او (شتر و ابراهیم) غیرمنصرف دي.

**تشریح:** په مذکوره عبارت کې درې خبرې دي:

①: د عجمه لغوي او اصطلاحي تعریف، ②: د عجمه د غیرمنصرف سبب جوړېدو شرطونه، ③: د شرطونو وجه.

### د عجمه لغوي او اصطلاحي تعریف

**لومړی خبره:** د عجمه لغوي او اصطلاحي تعریف:

په عربي کې د عجمه معنا ده (اللُكنة وعدم افصاح الكلمة) یعني ګونګی او د خبرو په پوره فصاحت د کولو ځواک نه لرل.

او د نحو په اصطلاح کې عجمه (كون اللفظ غير عربي) ته وایې، یعني د یو لفظ له عربي پرته له بلې ژبې نه کېدل.

**دوهمه خبره:** د عجمه د غیرمنصرف لپاره د سبب جوړېدو شرطونه:

د عجمه د غیرمنصرف سبب جوړېدو لومړی شرط دادی، چې هغه په لغت عجمي کې د یو چا نوم وي، دا نوم کېدل که په حقیقي ډول وي، لکه (ابراهیم او اسماعیل)، یا په حکمي ډول وي، لکه (قالون)، دا لغت عجم یعني په رومي ژبه

کي د چا نوم نه و، بلکي اسم جنس و، يعني هر ښه او کره شی ته رومیانو (قالون) ویل، بیا عربي ژبې ته راغی، عربو په اوو قاریانو کي پر نافع (د ده د ښه او کره قراءت ویلو له کبله) نوم کښېښود.
دوهم شرط داچي هغه اسم به زائد علی الثلاثه وي، لکه (ابراهیم) دلته علمیت او عجمه سره له خپل شرطه راغلي دي او که چیري زائد علی الثلاثه نه و، (خو په دې شرط چی هغه متحرک الاوسط) وي، لکه شَتَرُ (د بکر د سیمې د یوې قلعه نوم دی) دلته هم علمیت او عجمه سره له خپله شرطه یعني (متحرک الاوسط) کېدل راغلي دي او په (نوحٌ) کي لومړی شرط سته خو د دوهم شرط په دواړو شقونو کي یو شق نسته، نو ځکه منصرف دی.

**درېیمه خبره:** د مذکوره شرطونو وجه:

په عجمه کي د غیرمنصرف سبب جوړېدو لپاره دا دوه شرطونه ځکه لګول سوي، چي عرب غواړي چي په هره ثقیله کلمه کي هغه که عربي وي، که عجمي وي د هغې د اساني لپاره تغیر او تبدل وکړي، حال دا چي د عجمه د منع صرف لپاره سبب جوړېدل یوازي د دې ثقیل کېدل دي، نو که چیري د عربو تر تغیر او تبدل وروسته د عجمه ثقل ختم سي، نو بیا هغه دسبب جوړېدو لائق نه پاتېږي، ځکه علت ولاړی، لهذا مورږ دا شرطونه ولګول، د دې لپاره چي عجمه پر خپل ثقالت پاته سي او له هر قسم تغیېر او تبدل څخه محفوظ سي.

## دروېشتم (۲۳) درس

## د غیرمنصرف د شپږم سبب (منتهی الجموع) بیان

الجمع شرط صیغة منتهی الجموع بغیرهاء، کمساجد ومصابیح، واما فرازنةٌ فمنصرف و حضاجر علمًا للضَّبع غیرمنصرف لأنّه منقولٌ عن الجمع و سراویل اذا لم یُصرف وهوالاکثر فقد قیل اعجمیٌّ حمل علی موازنة، وقیل عربیٌّ جمع سروالة تقدیرًا واذا صرف، فلا اشکال، ونحو جوارٍ رفعًا وجرًّا کقاضٍ.

**ترجمه:** د جمع (د غیرمنصرف سبب جوړېدو لپاره) شرط دادی، چي هغه به د منتهی الجموع صیغه وي، بیله (هاء)، لکه مساجد او مصابیح او پاتې سوه

(فرازنة) نو هغه منصرف ده او (حضاجر) کوم چي د سِمسیارې نوم دی غیرمنصرف دی، ځکه چي دا له جمع څخه را نقل سوې ده او (سراویل) چي کله غیرمنصرف وي او د دې په ډول اکثره غیرمنصرف استعمالېږي، چا ویلي دي چي دا پر خپلو هم وزن کلماتو حمل سي، نو عجمي کېږي او داهم ویل سوي دي، چي دا عربي کلمه ده او د (سروالة) تقدیري جمع ده او کله چي دا منصرف وویل سي، نو بیا هیڅ سوال نه کېږي او که د (جوارٍ) په ډول کوم اسم وي، په حالت رفعي او جري دواړو کي یې اعراب د (قاضٍ) په ډول دی.

**تشریح:** د نن په سبق کي پنځه خبرې دي:

①: د جمع تعریف او د غیرمنصرف لپاره یې د سبب جوړېدو شرطونه، ②: د جمع منتهی الجموع تعریف او علامه یې، ③: د شرطونو لګولو وجه، ④: دوه مقدر سوالونه او جوابونه یې، ⑤: د جوارٍ تفصیل.

## د جمع تعریف

**لومړۍ خبره:** د جمع تعریف او د غیرمنصرف لپاره یې د سبب جوړېدو شرطونه:

هی الصّیغة الّتی تدلّ علی الثلاثة فما فوقها یعني جمع هغه اسم ده، کومه چي پر درې، یا تر دریو پر زیاتو دلالت کوي، لکه: مسلمون، مؤمنون وغیره.

جمع د غیرمنصرف لپاره مؤثر سبب هغه مهال جوړېږي، کله چي پکي دوه شرطونه راغلي وي، یو وجودي او یو سلبي:

وجودي شرط دادی، چي هغه به د منتهی الجموع صیغه وي، هغه که په حقیقي توګه وي، که په حکمي ډول وي، حقیقي دا معنا چي په واقعي توګه جمع الجمع وي، لکه د (کلب) جمع (اکلب) او د (اکلب) جمع (اکالیب) ده او د حکمًا معنا داده، چي په واقع کي هغه جمع الجمع نه وي، بلکي صرف د جمع الجمع پر وزن راغلي وي، لکه د (عصفورٌ) جمع (عصافیر) او د (مصباح) جمع (مصابیح).

## د جمع منتهی الجموع تعریف او علامه یې

**دوهمه خبره:** د جمع منتهی الجموع تعریف او علامه یې:

هی الصّیغة الّتی لا تجمع جمع ا لتکسیر مرةً اخریٰ کانّ جمعیّتها وصلت الی الانتهاء.

یعني جمع منتهی الجموع هغه جمع ده، د کومې چي مزید جمع تکسیره نه جوړېږي، ګواکي د دې جمعیت پای ته رسېدلی وي، له همدې وجې ورته منتهی الجموع ویل کېږي.

او علامه یې داده، چي تر دې مخکي دواړه حرفونه مفتوح وي، په درېیم ځای کي الف وي، تر هغه وروسته که چېري یو حرف و، نو مشدد به وي، لکه (دَوَابُّ، صَوَافُّ)، که چېري دوه حرفونه وه، نو لومړی مکسور او دوهم مضموم کېږي، لکه: مَسَاجِدُ، مَکَاتِبُ او که چېري درې حرفونه وه، نو په مینځ کي به یې یاء ساکنه وي، لکه: (مَصَابِیحُ، اَکَالِیبُ).

او سلبي شرط یې دادی، چي په اخیر کي به یې داسي تاء نه وي کومه چي د وقف په حال کي په (هاء) بدلېږي، که یې په اخیر کي داسي تاء راغلې وه، نو هغه اسم منصرف کېږي، لکه: فرازنةٌ، خو کومه هاء چي له تاء څخه بدله نه وي، هغه غیرمنصرف کېږي، لکه: فَوَارِهُ.

**درېیمه خبره:** د مذکوره دوو شرطونو وجه: د جمع لپاره د منتهی الجموع وزن شرط ځکه لګول سوی، چي هغه له تغیېر او تبدل څخه محفوظ دی او دا وزن له تغیر څخه ځکه محفوظ دی، چي و هاخواته جمع نسي جوړېدای.

دوهمه وجه داده چي جمع د غیرمنصرف هغه سبب دی، کوم چي د دوو سببونو پر ځای ولاړ دی، نو ورسره د منتهی الجموع شرط ځکه لګول سوی چي د دې بناء هم دوه واره سوې ده یو وار له مفرد څخه د جمع وطرفته او دوهم وار د جمع له طرفه د منتهی الجموع وطرفته (کمامر فی الدرس السابع عشر).

او د دوهم شرط وجه داده، چي هر هغه اسم چي په اخیر کي یې (ګرد ہ) تاء وي، نو هغه د مفرد علامه وي، لهذا هر هغه اسم کوم چي د جمع اقصیٰ پر وزن وي،

لیکن په اخیر کي یې همدا تاء وي، نو هغه به هرومرو یا مفرد وي، لکه: کَرَاهِیَةٌ، یا به له مفرد سره التباس لري، لکه: فَرَازِنَةٌ.

**څلورمه خبره**: دوه مقدره سوالونو او جوابونه یې:

**سوال (۱)**: دلته سوال پیداکېږي، چي مخکي مصنف رحمه الله علیه د جمع د غیرمنصرف د سبب کېدو لپاره شرط لګولی و، چي جمع به وي او دا جمع به هم منتهی الجموع وي، حال دا چي (حَضَاجِرُ) د منتهی الجموع پر وزن خوده لېکن پخپله جمع نه ده، نو ګواکي شرط بېله مشروطه راغی، سره له دې چي دا حضاجر د علم نحوي د علماؤ په اتفاق غیر منصرف ده، نو دا ولې؟

**جواب**: (حضاجر) په اصل کي د (حِضْجِرٌ) جمع ده او د (حِضْجِرٌ) معنا ده لویې خېټې والا، بیا دا د سمسیارې لپاره نوم کېښودل سو، ځکه چي د دې نس هم غټ دی، تر دې پوري چي د مبالغې په ډول ویل کېږي، چي د یوې سمسیارې خېټه د یوه جماعت خلګو (چي خېټې یې غټې وي) له خېټو سره برابره ده، تر دې چي مړي هم له قبرونو راکاږي او خوري یې، ځکه نو دیوې سمسیارې (حضاجر) جمع بلکي د جمع الجمع نوم کېښودل سو، داکه څه هم فی الحال مفرد ده، لیکن د خپل اصل په اعتبار دا جمع ده، نو د اصل په اعتبار کولو موږ غیرمنصرف وګڼله.

**سوال (۲)**: دوهم سوال دا پیداکېږي، چي (سراویل) یې ولې غیرمنصرف بللی، حال دا چي دانه فی الحال جمع ده او نه په اصل کي؟

د کافیه ملاصاحب رحمه الله علیه د دې سوال دوه جوابونه کړي دي، یو د بعض علماء نحو له لوري او دوهم د علم نحوي د اکثرو علماؤ له لوري:

**جواب (۱)**: د بعض علماء نحو له طرف نه یې جواب ورکړی، چي حضرت! دا خو ته وایې، چي دا غیرمنصرف ده، موږ یې منصرف بولو، په دې صورت کي **ګواکي له سره سوال نه وارديږي**.

**جواب (۲)**: د نحوي د اکثرو علماؤ له لوري یې دا جواب کړی، چي دا غیرمنصرف ده، نو اوس که سوال وارد سي، نو جواب ورکوونکي دوې ډلې دي،

لومړی ډله يعني امام سيبويه او امام ابو علی رحمهما الله او د دوی تابعدارانو په دې ډول جواب کړی، چې دا عجمي کلمه ده او په عربي ژبه کې چې پر دې وزن څومره کلمې دي، هغه ټولې غیرمنصرف دي، نو دا هم پر خپلو هموزنو کلمو د حمل کېدو له وجې غیرمنصرف ويل کېږي.

او دوهمې ډلې، يعني امام مبرد او د ده متبعينو په دې ډول جواب کړی، چې دا خو ده عربي کلمه او عربو غيرمنصرف استعمال کړې، موږ چې هر څومره وکتل، تر اوږده فکر وروسته هم موږ د دې د غيرمنصرف کېدو سبب پيدانکړ، نو په پای کې موږ دا جمع حقيقي نه، بلکې جمع اعتباري وګڼله، فرض مو کړل، چې دا د (سِروالة) جمع ده او جمع هم د منتهی الجموع پر وزن ده، کومه چې د دوو سببونو پر ځای ولاړه ده، نو ځکه غیرمنصرف وويل سوه.

**پنځمه خبره:** د جَوَارٍ تفصيل او شننه: جَوَارٍ: دلته له جوار څخه د اسم منقوص هر هغه کلمه مراد ده، کومه چې د (فَوَاعِلُ) پر وزن وي، هغه که ناقص يائي وي، لکه (جَوَارِيُ) چې جمع د (جَارِيَة) ده، يا ناقص واوي وي، لکه: (دَوَاعِيُ) چې جمع د (دَاعِيَة) ده.

دلته دا خبره ښودل پکار دي، چې د جمع لپاره موږ کوم شرط لګولی و، چې هغه به د منتهی الجموع صيغه وي، نو دا شرط چې په کومه جمع کې نه وي، هغه غيرمنصرف نه، بلکې هغه منصرف ده، لکه: جوارٍ، دواعٍ په حالت رفعي او جري کې منصرف کېږي، ځکه دا دواړه که څه هم جمعې خو دي، ليکن د منتهی الجموع پر وزن نه دي، خو په حالت نصبي کې شرط سته، نو په هغه کې دا دواړې غيرمنصرف دي.

ځيني حضراتو دلته داسي تفصيل کړی، چې خلاصه يې داده، چې مصنف رحمه الله په (ونحو جوار) کلمه سره صرف د دې د استعمال طريقه ښودل غواړي، له انصراف او عدم انصراف څخه يې هېڅ بحث نه کوي، ځکه چې په انصراف او عدم انصراف کې اختلاف دی او د دغه اختلاف مدار پر يوه بل اختلاف دی، هغه

دا چي د عربو په کلماتو کي انصراف او عدم انصراف مقدم دي، که اعلال مقدم دی؟

نو امام کسائي رحمه الله او د ده متبعین وایي، چي اصل انصراف او عدم انصراف دي، دلیل یې دادی، چي اعلال د ثقل د لیري کېدو لپاره وي او ثقل په تلفظ کي وي، لومړی دا فیصله کېږي، چي دا منصرف دی، که غیرمنصرف، نو د دوی په نزد (جَوَارِیْ او دَوَاعِیْ) تر اعلال مخکي په دریو سره حالتونو کي غیرمنصرف دي، ځکه چي جمع هم دي او شرط هم پکي راغلی دی، څرنګه چي حالت رفعي د اعلال تقاضا کوله، نو تر اعلال وروسته که څه هم جمع خو پاته دي، لیکن شرط یې نسته، نو په حالت رفعي کي منصرف سو، پاتې سو حالت نصبي او جري، نو هغه د اعلال تقاضا نه کوله، نو پر هغو دواړو حالتونو غیرمنصرف کېږي.

او د ځینو په نزد اعلال تر انصراف او عدم انصراف مخکی دی، دلیل یې دادی، چي د اعلال تعلق د کلمې له ذات سره وي او د انصراف او عدم انصراف تعلق د کلمې له وصف سره وي او قاعده ده، چي ذات مقدم وي پر وصف، نو اعلال مقدم کېږي تر انصرف او عدم انصرف، بیا دا علماء دوې ډلې دي:

①: امام زجاج رحمه الله او د ده متبعین هم وایي، چي د دوی خو تر اعلال مخکي هیڅ اعتبار نسته، لیکن تر اعلال وروسته دوی غیرمنضرف کېږي، ځکه چي کومه یاء حذف سوي ده، هغه د ملفوظ په حکم کي ده، لانّ المحذوف کالملفوظ، نو ګواکي جمع سره له خپل شرطه باقي ده، پاتې سو ددې په اخیر کي تنوین، نو هغه تنوین عوضي دی، کوم چي پر غیرمنصرف راتلای سي.

## څلېرویشتم (۲۴) درس

## د غیرمنصرف داووم سبب (ترکیب) بیان

الترکیب شرطه العلمیة وان لایکون باضافة ولا اسناد، مثل بَعْلَبَکٌ.

**ترجمه**: ترکیب، د ده د غیرمنصرف سبب جوړېدو لپاره شرط دادی، چي هغه به علم وي او دوهم شرط یې دادی، چي مرکب اضافي او مرکب انسادي نه وي، لکه: بَعلبکٌ.

**تشریح**: د نن په سبق کې درې خبرې دي:

①: د ترکیب لغوي او اصطلاحي تعریف، ②: د ترکیب د غیرمنصرف لپاره دسبب جوړېدو شرطونه، ③: د شرطونو وجې.

## د ترکیب لغوي او اصطلاحي تعریف

**لومړۍ خبره**: د ترکیب لغوي او اصطلاحي تعریف: د ترکیب لغوي معنا ده (جوړښت او سره یو ځای کول) او د نحوي د علماؤ رحمهم الله په اصطلاح کې ترکیب دېته وایې: (هو جعل الکلمتین کلمةً واحدةً بغیرحرفیة احدالجزئین) یعني هغه اسم په کوم کې چې دوې کلمې یوه سوې وي، بېله دې چې په دغو دوو کلمو کې کومه یوه حرف وي، نو په (النجم او بصري او ضاربة) هېڅ اعتراض نسي کېدای، چې دا دوې، دوې نه کلمې سي هم مرکب نه دي، ځکه چې په دوی کې یو یو جزء یعني په لومړۍ کلمه کې الف لام، په دوهمه کې یاء او په درېیمه کې تاء راغلي دي، کوم چې حروف دي.

**دوهمه خبره**: د ترکیب د غیرمنصرف لپاره د سبب جوړېدو شرطونه: ترکیب د غیرمنصرف لپاره مؤثر سبب هغه وخت جوړېږي، کله چې پکې درې شرطونه راغلي وي یو وجودي او دوه سلبي.

وجودي شرط دادی، چې هغه به علم وي، او سلبي دادی، چې هغه به مرکب اضافي نه وي، لکه غلام زید او کتاب بکر او مرکب اسنادي به هم نه وي، لکه: تأبَّطَ شَرًّا او شَابَ قَرناها.

**درېیمه خبره**: د شرائط مذکوره وو وجې: د علمیت شرط یې ځکه لګولی، چې په اصل کې د هرې کلمې وضع بېله، بېله او مستقله سوې ده، یعني هېڅ کلمه (اسم او فعل) د کومې بلې کلمې محتاجه نه وي، لېکن کله چې دوې کلمې یوه کېږي، نو دا به په لازمي ډول د کوم عارض له وجې وي، او عارض چې کله ختم سي، نو دا ترکیب هم نه پاتېږي، بلکي له مینځه ځي، نو د علمیت شرط د شرط په لګېدو سره ترکیب د زوال له احتمال څخه وژغورل سو، ځکه چې اعلام کلمې له زوال او تغیېر او تبدل څخه محفوظ ساتي، دوهمه وجه دا چې علمیت د منع صرف

په اسبابو کي قوت پیدا کوي، نو ګواکي د ده د زیات قوي کېدو لپاره یې دا شرط ولګاوه.
پاتې سو د مرکب اضافي نه کېدو شرط، نو هغه یې ځکه لګولی چي د اضافت له وجې خو غیرمنصرف هم منصرف کېږي، یا دمنصرف په حکم کي کېږي (علیٰ اختلاف الاقوال)، دا خو پرېږده، چي منصرف غیرمنصرف کړي.
او دمرکب اسنادي د نه کېدو شرط یې ځکه لګولی، چي هغه د مبنیاتو له قبیلې څخه دي، او غیرمنصرف د اسم معرب له قبیلې څخه دی.

## پنځویشتم (۲۵) درس
## دغیرمنصرف داتم سبب (الف ونون زائدتان) بیان

الالف والنُّون ان کانتا فی ا سم فشرطه العلمیة، کعمرانَ او صفة فانتفاء فعلانة وقیل وجود فَعْلیٰ و من ثَمَّ اُختلف فی رحمٰـنَ دون سکرانَ و ندمانَ.

**تشریح**: د نن په سبق کي څلور خبرې دي:
①: د الف ونون د تسمیه وجه او د غیرمنصرف لپاره یې د سبب جوړېدو وجه، ②: د ده دغیرمنصرف کېدو لپاره د سبب جوړېدو شرطونه، ③: د شرطونو لګولو وجه، ④: تفریعات.

**لومړۍ خبره**: د الف ونون زائدتان د تسمیه وجه او د غیرمنصرف لپاره دسبب جوړېدو وجه:
د غیرمنصرف اتم سبب الف او نون زائدتان دی، د نحوي د علماؤ په نزد د دې دوه نومونه دي، یو الف و نون زائدتان، دوهم الف نون مضارعتان:

زائدتان یې ځکه ورته ویلي دي، چې دا په کومه کلمه کي هم وي، هغه د حروف اصلیه په مقابله کي نه وي، بلکي زائد وي، لکه: عمران او سکران پر وزن د فَعْلَان او فِعْلَان.

او مضارعتان یې ځکه ورته ویلې، چې د مضارعت معنا ده مشابهت او دا هم له الف ممدوده او الف مقصوره سره د تاء تانیث د داخلېدو په امتناع کي مشابهت لري، یعني ځرنګه چې د دوی دواړو په اخیر کي تاء تانیث نسي راتلای، دا راز د دوی په اخیر کي هم نسي راتلای.

د غیرمنصرف لپاره د الف ونون زائدتان د سبب جوړېدو وجه د کوفیینو په نزد داده، لکه ځرنګه چې د منع صرف اسباب ټول د فروعاتو له قبیلې څخه دي، دا راز دا دواړه هم د هغه اسم او صفت فرع دي پر کومو چې دوی داخل سوي وي، مثلا په عمران کي لومړی درې حرفونه د اصل په توګه دي او دغه دواړه د دوی فرع دي او د بصریینو په نزد د دوی اصل (د تاء تانیث د داخلېدو په امتناع) کي الف ممدوده او الف مقصوره دی او دغه دواړه (الف اونون زائدتان) یې فرع دي.

دوهمه خبره: د دوی د غیرمنصرف لپاره دسبب جوړېدنې شرطونه:

الف نون زائدتان به یا په اسم جامد کي وي، یا به په صفت کي وي، که چېري په اسم جامد کي وي، نو شرط یې دادی، چې هغه به د یو چا علم وي او که په صفت کي وي، نو د نحوي د اکثرو علماؤ په نزد یې شرط دادی، چې دده دصفت مؤنث به د فعلانةٌ پر وزن نه وي، لکه د خصمانٌ مؤنث خصمانةٌ راځي او د ځینو نحوي علماؤ په نزد یې شرط دادي، چې د ده د صفت مؤنث به د (فَعْلَیْ) پر وزن وي، نو ګواکي چې د بعضو په نزد صرف (انتفاء د فعلانة) او د بعضو په نزد له دې سره، سره (وجود دفعلی) هم ضروري دی.

لیکن مصنف رحمه الله دغه دوهم قول د (قِیل) په لفظ ذکر کړی، دا دېته اشاره ده، چې دا قول ضعیف دی، ځکه د (غضبانٌ) مؤنث (غضبیٰ) راغلی دی، سره له دې **منصرف هم ده.**

**دريمه خبره:** د ذکر سويو شرطونو وجه: الف او نون ته که چيري مزيدتين وويل سي؛ لکه چي د کوفيينو قول دی، نو د دوی لپاره علميت ځکه شرط سوی، چي هرزائد شی د زوال په محل کي وي او دا هم زائد دی، نو له زوال څخه يې د ژغورني لپاره علميت ورته شرط سوی، ځکه علميت د حروفو د حفاظت يوه محفوظه قلعه ده.

او که چيري الف او نون ته مضارعتين وويل سي، لکه چي د بصرييانو قول دی، نو علميت ځکه ورته شرط سوی دی، چي حروف يې محفوظ پاتې سي او له الف ممدوده او مقصوره سره د ده مشابهت کمزوری نسي، او که چيري دا په صفت کي وي، نو د ده لپاره (انتفاء د فعلانة، يا وجود د فعلیٰ علی اختلاف القولين) هم ځکه شرط سوي دي، چي له الف ممدوده او مقصوره سره يې مشابهت **ضعيف نه سي، بلکي هغه پر ځای پاتې سي.**

**څلورمه خبره:** له وَمِنْ ثَمَّ اُخْتُلِفَ څخه تفريعات:

څرنګه چي الف نون زائدتان کله په اسم صفت کي وي، نو د ده د شرط په تاثير کي اختلاف تېرسو، چي د ځينو په نزد (انتفاء د فعلانة) او د ځينو په نزد (وجود دفعلیٰ) شرط دی، ځکه چي د بعض کلماتو په انصراف او عدم انصراف کي هم اختلاف وي او په بعضو کي اتفاق، مثلاً د (رحمانٌ) لفظ صفت جلاله د (انتفاء فعلانة) د قائلينو په نزد غيرمنصرف دی، ځکه چي دده مؤنث بيخي نسته، دا خو پرېږده، چي د فعلانة پر وزن راسي او د (وجود فعلی) د قائلينو په نزد دا منصرف دی، ځکه چي د دې مؤنث بيخي نسته، دا خو پرېږده، چي د (فعلیٰ) پر وزن راسي.

دوهم مثال (سکرانُ) دی، دا په اتفاق غيرمنصرف دی، ځکه چي د ده مؤنث د (سکریٰ) پر وزن د (فعلیٰ) راغلی دی، نو دواړه شرطونه پکي شتون لري (انتفاء د فعلانة) هم او (وجود دفعلیٰ) هم.

دريم مثال (ندمان) دی، په دې کي څه تفصيل سته، هغه دا چي دا په دوو معناوو کي مستعمل دی، يو په معنی د (نادمٌ) اسم فاعل، دوهم په معنی د (نديمٌ) صفت مشبه، که چيري په معنا د (نادمٌ) وي، نو د ده مؤنث ندمانة راځي،

نو په دې صورت كې په اتفاق سره دا منصرف كېږي، ځكه چې پكې له دواړو شرطونو څخه هيڅ شرط نسته او كه چېرې په معنا د (نديمٌ) و، د كوم چې مؤنث (ندمیٰ) دی، نو په اتفاق سره غيرمنصرف كېږي، ځكه چې پكې دواړه شرطونه شتون لري.

## شپږويشتم (۲۶) درس

## د غيرمنصرف د نهم او اخيري سبب (وزن فعل) بيان

وزن الفعل شرط ان يختص به كشمَّر وضُربَ او يكون فى اوله زيادةً كزيادته غيرقابل للتاء ومن ثمَّ امتنع احمرُ وانصرف يعملٌ.

**ترجمه:** وزن فعل: د وزن فعل لپاره شرط دادی، چې هغه به پرداسي وزن وي، كوم چې په فعل پوري خاص وي، لكه: شمَّر او ضُربَ، يا دا چې د ده په پيل كې به هغه زائد حروف وي، كوم چې د فعل په پيل كې زائد راغلي وي، په داسي حال كې چې هغه تاء نسي قبلولای، له همدې وجې احمرُ غيرمنصرف ده او يعملٌ منصرف ده.

**تشريح:** د نن په سبق كې درې خبرې دي:

①: د وزن فعل تعريف او مشهور وزنونه يې، ②: د وزن فعل د غيرمنصرف لپاره د سبب جوړېد شرطونه، ③: د شرطونو وجه يې.

### د وزن فعل تعريف او مشهور وزنونه

**لومړۍ خبره:** د وزن فعل تعريف او مشهور وزنونه.

د وزن فعل تعريف دادی، چې (كون الاسم علیٰ وزن يُعدُّ من اوزان الفعل) يعني د اسم پرداسي وزن راتلل، كوم چې د فعل په وزنونو كې شمېرل كېږي او د فعل مشهور وزنونه دادي (شَمَّرَ، ضُربَ، احمدُ، يزيدُ، يشكُرُ، تغلبُ او تدمُرَ).

**دوهمه خبره:** د وزن فعل د غيرمنصرف لپاره د سبب جوړېدو شرطونه:

وزن فعل د غيرمنصرف لپاره مؤثر سبب هغه مهال جوړېږي، كله چې پكې له دوو شرطونو څخه يو شرط راغلی وي.

**لومړی شرط**: دادی، چي د ده اسم به پر داسي وزن راغلی وي، چي د اصل وضع په اعتبار سره له فعل سره خاص وي، بیا له هغه ځخه را نقل سوي وي، اسم ته راغلی وي، مثلاً شمّر دا د تفعیل له باب څخه د ماضي معلومې لومړنی صیغه ده، چي مصدري معنا یې ده (پایڅې رابډ وهل)، بیا په رووسته کي له دې معنا را نقل سوه، د حجاج بن یوسف د یوه تېزتګ کوونکي آس نوم سو، نو اوس دا د علمیت او وزن فعل له وجې غیرمنصرف سو.

دا راز ضُرِبَ د ماضي مجهول صېغه ده، لیکن که چیري د چا نوم سي، نو دا هم د علمیت او وزن فعل له وجې غیرمنصرف کېږي.

دلته داخبره په ذهن کي ونیسئ، چي مصنف رحمه الله علیه د ماضي مجهول مثال راوړی، نه چي د معلومې، وجه یې داده، چي د ماضي معلوم وزن مثلاً فَعَلَ صرف له فعل سره نه دی خاص، بلکي دا وزن په اسم کي هم رائحي، مثلاً شَجَرٌ، قَلَم وغیره، پاتې سود دې په اخیر کي تنوین نو هغه د وقف په محل کي دی، لهذا په وزن کي یې څه اعتبار نه کېږي.

**دوهم شرط دادی**، چي که چېري د داسي اسم پر وزن وي، کوم چي په فعل پوري خاص نه وي، نو په شروع کي یې له حروف (اَتَیْنَ) څخه یو حرف راتلل ضروري دي، لکه چي د فعل مضارع په پیل کي وي، دوهم دا چي په اخیر کي به تاء د تانیث نه قبلوي، لکه (احمر) دا که څه هم په فعل پوري خاص نه دی، لیکن بیا هم غیرمنصرف ده، ځکه چي پکي د مذکوره شرط دواړه شقونه راغلي دي، یعني په شروع کي یې له حروفو اتین څخه همزه ده او په اخیر کي تاء مدوره هم نه قبلوي، نو دا د وصف او وزن فعل له وجې غیرمنصرف دي او د (یعملٌ) په شروع کي که څه هم یاء راغلې ده، لیکن په اخیر کي یې تاء مدوره ګرځي (ة) راتلای سي، لکه چي ویل کېږي (ناقةٌ یعملةٌ) ځکه نو دا منصرف ده.

**درېیمه خبره**: د مذکوره شرطونو د لګېدو وجه:

د وزن فعل د غیرمنصرف د سبب جوړېدو لپاره د (ان یختصّ به) شرط ځکه لګول سوی، چي په دې کي څه ثقل پیدا کېږي، ځکه چي کوم وزن په فعل پوري خاص

وي، نو هغه دا غواړي، چي هغه صرف په فعل كي استعمال سي، ليكن له دې سره، سره چي كله له ده څخه را نقل سي، په اسم كي استعمال سي، نو هغه هرومرو ثقيل كېږي، نو څومره چي ثقيل وي، په هماغه اندازه په تاثير كي زياتوب راځي.

پاتې سو د دوهم شرط شق اول يعني په شروع كي له حروف اتين څخه د يوه حرف راتلل، نو هغه شرط يې ځكه لګولی، چي دا وزن صرف په فعل پوري خو خاص نه دی، ليكن د دغه شرط په وجه لږ، تر لږه له فعل سره د ده مشابهت پيدا كېږي.

او ددې دوهم شق يعني په اخير كي د تاء مدوره نه راتلل، دا شرط ځكه لګول سوی، چي تاء مدوره كلمه له اسم سره خاصوي، لهذا كه چېري دا شرط ونه لګول سي، نو له فعل سره دده مشابهت ختم كېږي.

## اوويشتم (۲۷) درس

## له غيرمنصرف سره تړاو لرونكې څو مهمي مسئلې

و مافيه علمية مؤثرةٌ اذا نكّر صُرِفَ لما تبينَ من انّها لا تُتمّ مؤثرةً الّا ما هى شرط فيه الّاالعدل و وزن الفعل و هما متضادان، فلا يكون معها الّا احدهما، فاذا نُكرَ بقى بلا سبب او على سبب واحدٍ.

**ترجمه:** او هغه اسماء په كومو كي چي علم كېدل اغېزناك وي (په دې ويلو يې له جمع منتهى الجموع څخه احتراز وكړ)، كله چي دا اسماء نكره جوړ كړل سي، نو هغه منصرف كېږي، ځكه چي دا ښكاره خبره ده، چي علميت (په داسي حال كي چي اثر كوونكی وي) جمع نسي كېدای، مګر له هغو اسبابو سره په كومو كي چي دا شرط دی، خو په عدل او وزن فعل كي له شرط پرته اثر انداز كېږي او دا دواړه (عدل او وزن فعل) يو د بل ضد دي، نو له علميت سره په دوی دواړو كي يو راځي، بيا چي كله (هغه اسم په كوم كي چي علميت مؤثر وي)نكره جوړېږي،

نو هغه به یا بېله سببه پاتېږي (که چېري علم دده لپاره شرط وي)، یا به پکي یوازي یو سبب پاتېږي (که چېري علم دده لپاره سبب محض وي).

**تشریح**: د نن په سبق کي څلور خبرې دي:

①: د غیرمنصرف د منصرف جوړېدو قاعده، ②: د علم د نکره جوړېدو طریقه،
③: هغه اسباب په کومو کي چي علمیت شرط دی، ④: د یوه سوال جواب.

**لومړۍ خبره**: د غیرمنصرف د منصرف جوړېدو قاعده:

و ما فیه علمیةٌ مؤثرةٌ اذا نُکِّر صُرِفَ:

په دې عبارت کي دا قاعده بیان سوې، چي هر هغه اسم په کوم کي چي علمیت د غیرمنصرف جوړېدو لپاره مؤثر (اغېزناک) وي، هغه که د شرط په ډول وي، یا د سبب محض په ډول وي، کله چي دا اسم نکره سي، نو هغه منصرف کېږي.

مصنف رحمه الله علیه د دې وجه دا بیان کړې، چي هغه اسباب په کومو کي چي علمیت کېدل شرط دی، کله چي له دوی څخه علمیت ختم سي، نو نکره جوړېږي، نو هغه اسم بېله سببه پاتېږي، مثلاً زینب او کلثوم دا دواړه د تانیث او علمیت له وجې غیرمنصرف دي، لیکن کله چي له دوی څخه علمیت ختم سي، نو یوازي تانیث پاتېږي او هغه بېله شرطه ګواکي چي هیڅ سبب پاتې نسو، نو په لازمي ډول زینب او کلثوم منصرف ګرزي.

او هغه اسباب په کومو کي چي علمیت شرط خو نه وي، بلکي د عامه اسبابو په ډول دا هم د سبب محض په ډول ورسره جمع کېږي، کله چي له دغو څخه علمیت ختم سي، نو هغه اسم پر یوه سبب پاتېږي، مثلاً عمر د عدل او علمیت له وجې غیرمنصرف دی، کله چي علمیت ځیني ختم سي، نو پکي صرف عدل پاتېږي، لهذا دا هم منصرف جوړېږي.

**دوهمه خبره**: د علم د نکره جوړېدو دوې طریقې:

د کافیه ملاصاحب راښیي، چي (وما فیه علمیة مؤثرة اذا نکر، صُرف) لیکن دا زدکول پکار دي، چي د علمیت د نکره جوړېدو طریقه څه ده؟، نو په یاد لره، چي د اسم علم د نکره جوړېدو دوې لارې دي:

**لومړۍ طریقه**: دا چې علم که وویل سي، نو ځیني د صاحب علم مشهور وصف مرادېږي، لکه چي و ویل سي (لکلّ فرعون موسیٰ، ای لکل مبطل محقّ) دلته وګوره د فرعون لفظ که څه هم په اصل کي غیرمنصرف و، خو دلته ځیني هغه خاص فرعون مراد نه دی، بلکي هر باطل (په کوم کي چي د فرعون وصف مشهور وي، یعني سرکښه وي) مراد دی، ځکه نو منصرف ځیني جوړ سو، فرعونٍ ویل کېږي.

**دوهمه طریقه دا ده**: مثلا د یوه پوره جماعت نوم عثمان وي، نو علم (عثمان) وویل سي، بېله تعین څخه د یوه فرد د مراد اخستلو، لکه (التقیت عثمان و عثمانًا آخر) دلته لومړی عثمان معرفه دی، لیکن دوهم د نکره کېدو په وجه منصرف کېږي.

**هغه اسباب په کومو کي چي علمیت شرط دی**

**درېیمه خبره**: هغه اسباب په کومو کي چي علمیت شرط دی:

د منع صرف له اسبابو څخه پنځه (یعني تانیث بالتاء، معرفه، عجمه، ترکیب او الف نون زائدتان) چي کله په اسم کي وي، نو په دوی کي علمیت شرط دی او له عدل او وزن فعل سره صرف د سبب محض په ډول جمع کېږي او له منتهی الجموع او تانیث بالالف سره جمع کېدای خو سي، لیکن پکي مؤثر کېدای نسي، پاتې سو وصف او الف نون زائدتان چي کله په وصف کي وي، نو له دوی دوارو سره له سره جمع کېدای نسي، ځکه چي وصف پر عموم دلالت کوي او علمیت پر خصوص، لنډه دا چي ټوټل پنځه اسباب داسي دي، په کومو کي چي علمیت شرط دی او دوه داسي دي له کومو سره چي علمیت د سبب محض په ډول جمع کېږي.

**څلورمه خبره**: په وهما متضادان سره د یوه سوال جواب:

دلته یو سوال کېږي، چي که چېري په کوم اسم کي درې سببونه جمع سي، یعني علمیت، عدل او وزن فعل، نو چي کله له داسي اسم څخه علمیت ختم سي، نکره ځیني جوړ سي، نو بیا هم هغه کلمه غیرمنصرف پاتېږي، ځکه چي اوس هم پکي دوه سببونه عدل او وزن فعل پاتې دي؟

نو د کتاب مصنف رحمه الله په (وهما متضادان) ويلو جواب ورکړ، چې عدل او وزن فعل په يوه اسم کې جمع کېدل ممکن نه دي، ځکه چې د عدل ټوټل شپږ وزنونه دي، يعني فَعَلِ، اَمْسِ، فَعَلُ سَحَرُ، فُعالُ ثلاثُ، فُعَلُ، عُمَرُ، مَفعَلَ مَثلَث، فَعَالِ، نَزَالِ، او دا ټول اوزان سماعي دي او له عدل سره خاص دي، د دې په مقابله کې چې د فعل څومره وزنونه دي، هغه ټول قياسي دي، نوګواکې چې دا دواړه يو د بل ضد سو او دوه ضدين نسې سره جمع کېداى.

**سوال**: دلته داسول کېداى سي، چې تاسو وويل: عدل او وزن فعل نسې جمع کېداى، حال دا چې اِصْمِتْ کوم چې د يوه ځنګل نوم دى په دې کې وزن فعل هم راغلى او عدل هم، ځکه چې دا د نصرينصر له باب څخه دى، له قاعدې سره سم (اُصْمُتْ) پکار وه، ليکن له قاعدې خلاف (اِصْمِتْ) دى، نو معلومه سوه، چې پکې عدل راغلى دى او وزن فعل خو يې ښکاره دى؟

دا راز په (آخَرُ) کې هم وزن فعل او عدل تحقيقي راغلي دي، نو دلته خو دواړه جمع سوي دي، حال دا چې تاسو وويل، چې الضدان لا يجتمعان؟

**جواب**: موږ د داسې عدل اووزن فعل د جمع کېدو نفې کړې، چې مؤثروي، حال دا چې دلته په دواړو مثالونو کې که څه هم جمع خو دي، ليکن مؤثر نه دي، ځکه چې په دواړو کې د عدل تر منلو مخکې دوه سببونه سته، د کومو له وجې چې دا له مخکې نه غيرمنصرف دي، مثلا اِصْمت د علميت او تانيث له وجې او آخر د وصف او وزن فعل له وجې غيرمنصرف دي.

## اتويشتم (۲۸) درس

### دامام سيبويه اوامام اخفش اختلاف

و خالف سيبويه الأخفشَ فى مثل احمرَ علمًا اذا نكّر اعتبارًا للصّفة الأصلية بعدالتنكير و لايلزمه بابُ حاتمٍ لما يلزم من اعتبار المتضادّين فى حكمٍ واحدٍ و جميع الباب باللام او بالاضافة ينجرُّ بالكسر.

**ترجمه**: او اختلاف کړى دى امام سيبويه له امام اخفش سره په (احمر) يعني داسې اسماؤ کې کله چې هغه د علميت پر حال وي، بيا نکره ځيني جوړ سي، نو تر

نکره کېدو وروسته هم د صفت اصلي په اعتبار کولو سره (غیرمنصرف پاتېږي) او د امام سیبویه لپاره څه لازمي نه دي، چې د (حاتم) رنګه په اسماؤ کي د وصف اصلي اعتبار وکړي، ځکه چې په دې صورت کي د دوو متضادو شیانو (وصفیت او علیمت) په یوه اسم کي جمع کېدل لازمیږي او د غیرمنصرف پرپوره باب چې کله الف لام داخل سي، یا یې اضافت وسي، نو د هغه جر په کسره سره کېږي.

**تشریح:** د نن په سبق کي څلور خبرې دي:

①:د امام اخفش مصداق، ②: مثل د احمرُ او پکي د اختلاف وضاحت، ③: په ولا یلزمه باب حتم سره د اعتراض دفع، ④: د غیرمنصرف د منصرف جوړېدو یوه بله طریقه.

**لومړۍ خبره:** د امام اخفش رحمة الله علیه مصداق:

په عامه توګه د نحوي په کتابونو کي د اخفش په نامه درې کسان مشهور دي:

①: اخفش کبیر، کوم چې د امام سیبویه استاذ و، چې نوم یې ابوالخطاب او عبدالحمید بن عبدالحمید دی.

②: اخفش صغیر، کوم چې د امام سیبویه شاګرد دی، چې نوم یې ابوالحسن سعید بن سعده دی.

③: اخفش اوسط کوم چې د امام سیبویه هم عصره او د امام مبرد شاګرد و او نوم یې ابوالحسن علي بن سلیمان رحمة الله علیه دی، کذا صرّح المصنف رحمة الله علیه فی شرح المفصّل.

نو چې کله هم د امام اخفش نوم ذکر سي، نو هرو مرو به ځیني په دې دریو کي یو مرادېږي، خو دلته ځیني مراد د امام سیبویه شاګرد ابو الحسن سعید بن سعده رحمة الله علیه دی.

**دوهمه خبره:** د مثل احمرُ او پکي د اختلاف وضاحت:

مخکي چې کومه قاعده بیان سوه، چې (و ما فیه علمیةٌ مؤثرة اذا نکّر صُرِفَ) دا قاعده د جمهورو نحویینو په نزد متفق علیها ده، خو دلته د علامه ابن حاجب رحمة الله علیه (وخالفَ سیبویه) عبارت راوړل دېته اشاره ده، چې په مذکوره یوه

صورت کي امام سيبويه رحمه الله له جمهورو سره مخالفت کړی دی، يو طرف امام سيبويه دی او دوهم طرف امام اخفش رحمه الله د جمهورو ترجماني کړې ده.

امام سيبويه رحمه الله وايي: هرهغه اسم کوم چي د صفت لپاره وضع سوی وي او په وروسته کي علم جوړ سوی وي، نو که چېري له ده څخه علميت ختم کړل سي، نکره جوړ کړل سي، نو هم د وصف معدوم يعني (حذف شوي) وصف اعتبار کېږي، ځکه (المعدوم لايزول) او هغه په قانوني ډول غيرمنصرف پاتېږي، ځکه چي دوصفيت چي کوم مانع و يعني علميت هغه اوس پاتې نسو، نو وصفيت بېرته راګرزي، لکه احمرُ چي علم جوړ کړل سي، نو وصفيت ختمېږي، بيا چي کله دا نکره جوړ کړل سي، نو د امام سيبويه رحمه الله په نزد پکي د وصفيت عائده او وزن فعل په اعتبار کولو سره په قانوني ډول غيرمنصرف ويل کېږي.

امام اخفش رحمه الله (د جمهورو د ترجمان په ډول) وايي: چي داسي نه ده، اوس دا منصرف کېږي، ځکه تر علميت تر له مينځه تلو وروسته په ده کي صرف وزن فعل پاتې کېږي، پاتې سو وصف معدوم، نو د هغه لپاره قاعده داده، چي (الزائل لايعود).

**درېيمه خبره**: په ولايلزمه باب حاتم د اعتراض دفع:

اعتراض دادی، چي امام سيبويه صاحب! تا په (مثل احمرُ) کي بعدالتنکير د وصف تر زائلېدو وروسته هم د وصف اصلي اعتبار کړی دی، نو له علميت سره هم تاسو د وصفيت اعتبار وکړ، لکه په (حاتمْ) کي يو علميت ومنئ او بل وصف؟

په ولايلزمه باب حاتم: (يعني هرهغه اسم د کوم چي واضع د وصف لپاره وضع کړې وي، بيا په وروسته کي علم جوړ سوی وي) سره مصنف رحمه الله جواب کړی، چي بلکل به موږ دلته د دې اعتبار کړی وای، ليکن له دې څخه د دوو متضادو شيانو په يوه اسم کي جمع کېدل لازمېږي، يعني د علميت او وصف او دا دواړه ځکه متضاد دي، چي علميت پر معين ذات دلالت کوي او صفت پر مبهم ذات دلالت کوي.

**یادونه:** د بنده په نزد مذکوره اعتراض ګواکي د امام سیبویه لپاره د تریخ غوړپ مترادف دی، ځکه امام سیبویه د وصفیت د اعادې اعتبار هغه مهال کوي، کله چي د هغه د زائل کېدو شی، یعني علمیت پخپله زائل سي، او دلته خو هغه تر اوسه باقي دی او موږ ووېل، چي داسي نه ده امام سیبویه صاحب! تاسو له علمیت سره، سره هم د وصفیت اعتبار کړی (والله اعلم بالصواب).

**څلورمه خبره:** د غیرمنصرف د منصرف جوړېد طریقه:

و جمیع الباب باللام او بالاضافة ینجرُّ بالکسرة:

په دې عبارت کي علامه ابن حاجب رحمه الله علیه وایې: مخکي چي د غیرمنصرف کوم پوره تفصیل تېر سو، چي پر ده کله الف لام داخل سي، یا هغه د کوم اسم وطرفته مضاف سي، نو د هغه جر په کسره لفظي سره کېږي، دلته د کتاب مصنف رحمه الله علیه وضاحت نه دی، چي په داسي کولو سره هغه اسم منصرف کېږي، یا غیرمنصرف پاتېږي، بلکي صرف یې د هغه صورت پر اعراب یې اکتفاء کړې، خبره یې ختم کړې، ځکه چي ددې په انصراف او عدم انصراف کي د نحوي د علماؤ اختلاف دی او په اصل کي د دې اختلاف مدار د غیرمنصرف په تعریف کي پر اختلاف دی، هغه دا چي ځیني نحوي علماؤ داسي تعریف کړی، چي غیرمنصرف هغه اسم معرب دی، په کوم کي چي د منع صرف له اسبابو څخه دوه سببونه، یا یو داسي سبب چي د دوو پر ځای ولاړ وي راغلي وي او ځینو یې داسي تعریف کړی، چي غیرمنصرف هغه اسم معرب دی، پر کوم چي کسره او تنوین نه رائحي.

نو د لومړي مذهب علماء په کومو کي چي امام فراء او د ده متبعین شتون لري، وایې: چي په دې دواړو صورتونو کي اسم په قانوني ډول غیرمنصرف پاتېږي، ځکه چي (دخول الف لام او عندالاضافة) هغه دواړه سببونه تر اوسه باقي پاتې دي، لېکن داده، په کوم غیرمنصرف کي چي یو سبب علمیت وي، هغه که د شرط په ډول وي، یا د سبب محض په ډول وي، کله چي الف لام پر داخل سي، یا یې اضافت وسي، نو په دې دواړو صورتونو کي د علمیت د ختمېدو له وجې هغه اسم

له یوه سبب سره پاتېږي، او د له یوه سبب سره د پاتېدو له وجې هغه منصرف کېږي.

**فائده:** پر علم د الف د داخلېدو په وجه علمیت ځکه ختمېږي، چې په علمیت کې د اعلی درجې تعریف وي په نسبت د معرف باللام کېدو، له دې سره، سره چې کله علم معرف باللام جوړ سي، نو ګواکي چې د (طلب الادنیٰ بحصول الاعلیٰ) خرابي لازمېږي، ځکه نو علمیت ختمېږي.

او د اضافت په صورت کې یې علمیت ځکه ختمېږي، چې د ده اضافت که چېرې د معرفه وطرفته سوی وي، نو تحصیل د حاصل لازمېږي او که چېرې د نکره وطرفته سوی وي، نو هماغه د (طلب الادنیٰ بحصول الاعلیٰ) خرابي لازمېږي.او دوهم مذهب والا په نزد دا منصرف جوړېږي، ځکه چې یو خو پر دغه صورت د غیرمنصرف تعریف صادقېږي، دوهم دا چې د اسم غیرمنصرف کېدل له فعل سره د مشابهت په وجه وي، لیکن کله چې الف لام پر داخل سي، نو د ده اضافت کېږي، له فعل سره یې مشابهت کمزوری کېږي، ځکه چې دا دواړه د اسم له خواصو څخه دي، نو د مشابهت د کمزوري کېدو په وجه د ده غیرمنصرف کېدل هم ختمېږي والله اعلم.

اَلْمَرْفُوْعَاتُ

## نویشتم (۲۹) درس

## د مرفوعات تعریف

**المرفوعات: هو ما اشتمل علیٰ علم الفاعلیة.**

**ترجمه:** مرفوع هغه اسم دی، چې د فاعلیت پر علامه مشتمل وي.

**تشریح:** د نن په سبق کې څلور خبرې دي:

①: د مرفوعات د مخکې کېدو وجه، ②: د مرفوعات د لفظ اعرابي صورتونه، ③: د مرفوعات مفرد، ④: د مرفوعات تعریف، نو ګواکي چې په دوی کې د لومړیو دریو تړاو له عنوان یعني المرفوعات سره دی او د یوه تړاو له عبارت سره دی.

### د مرفوعات د مخکي کېدو وجه

**لومړۍ خبره**: د مرفوعات د مخکي کېدو وجه:

د کتاب مصنف رحمه الله چي کله مقدمه په تفصيل سره بيان کړه، نو اوس په دريو مقصدونو کي د لومړي مقصد (مرفوعاتو بيان کوي) او دا يې پر منصوبات او مجرورات ځکه مخکي کړي، چي په دې کي اکثره (يعني فاعل، نائب فاعل، مبتداء، د کان اسم او د ماولا مشبهتين بليس اسم) مسنداليه واقع کېږي او مسنداليه په کلام کي عمده (اصل) وي، د دې په مقابله کي منصوبات او مجرورات فضله، يعني زائد وي، او عمده شی پر زائد شی مخکي کېږي، ځکه نو دلته هم عمده پر فضله مخکي سوی دی.

### د مرفوعات د لفظ اعرابي صورتونه

**دوهمه خبره**: د مرفوعات د لفظ اعرابي صورتونه:

مرفوعاتِ مرفوعْ، منصوب او مجرور په دريو سره طريقو ويل جائزد ي، د مرفوع ويلو په صورت کي يا خو د مبتداء محذوف لپاره خبر کېږي، نو د عبارت تقدير داسي کېږي: (هذه المرفوعات)، يا خو پخپله د محذوف خبر لپاره مبتداء کېږي، بيا عبارت داسي کېږي (المرفوعات هذه)، يا د خبر مذکور لپاره مبتداء جوړېږي، يعني (المرفوعات) مبتداء کېږي او را روان عبارت جمله اسميه د ده لپاره خبر جوړېږي.

او د منصوب ويلو په صورت کي دا د محذوف فعل لپاره مفعول به جوړېږي، نو د عبارت تقدير داسي کېږي (اقرؤوا المرفوعات يا اشرعوا المرفوعات).

او د مجرورکېدو په صورت کي يا خو مجرور بحرف الجر کېږي، مثلا محذوف عبارت داسي راوزي (هذا الباب فى المرفوعات) يا به مجرور بالمضاف کېږي، مثلا (هذا بحث المرفوعات).

**درېيمه خبره**: د مرفوعات مفرد:

مرفوعات د جمع صيغه ده، مفرد يې (مرفوعٌ) ده، پر دې سوال سوی دی، چي (مرفوعٌ) خو د مفرد مذکر صيغه ده، نو جمع خو يې (مرفوعون) د جمع مذکر سالمي په صورت راتلل پکار وه؟

**جواب:** چي د (مرفوعٌ) جمع پر ځای د جمع مذكر سالمی د جمع مؤنث سالم په شكل ځكه راوړل سوې، چي دنحوي د علماؤ په نزد دا قاعده ده، چي د لايعقل جمع په الف او تاء سره راځي، نو دا هم په الف او تاء سره راځي، لكه چي په قرآنكريم كي هم راغلې دي (فی الايام الخاليات).

پاتې سو دده د (مرفوعةٌ) جمع ويل نو هغه ځكه صحيح نه ده، چي (مرفوعات) د اسم صفت دی او د اسم مذكر كېدل ظاهر دي، په دې صورت كي كه چيري دده مفرد (مرفوعةٌ) ومنل سي، د موصوف او صفت تر مينځ مطابقت نسته، نو معلومه سوه، چي دا د (مرفوعة) جمع نه، بلكی د (مرفوع) جمع دی.

## د مرفوعات تعريف

**ځلورمه خبره:** د مرفوعات تعريف:

هو ما اشتملَ علىٰ علم الفاعلية يعني مرفوع هغه اسم دی، كوم چی د فاعليت پر علامه مشتمل وی، په پورتني عبارت كي د (هو) ضمير مرجع (مرفوعات) نسي كېدل، ځكه چی د (هو) ضمير مفرد مذكر دي او مرفوعات د جمع صيغه ده، نو له مرفوعات څخه (مرفوع) مفرد مذكر صيغه زا باسو د (هو) ضمير مرجع يې جوړوو.

او له (علم الفاعلية) څخه په اعراب بالحركة كي مراد ضمه ده، لكه (جَاءَنِیْ زَيْدٌ) او په اعراب بالحروف كي ځيني مراد الف او واو دي، الف په تثنيه كی، لكه: (جَاءَنِیْ زَيْدَانِ) او واو په اسماء سته مكبره او جمع مذكر سالمه كی، لكه (جَاءَنِیْ اَخُوْكَ او جَاءَنِیْ مسلمونَ).

## دېرشم (۳۰) درس

## د مرفوعات د لومړی قسم (فاعل) بيان

فمنه الفاعل، وهو ما اسندَاليه الفعل او شبهه و قُدِّمَ عليه علىٰ جهة قيامه به مثل قَامَ زَيْدٌ و زيدٌ قائمٌ ابوه، والاصل ان يلی الفعل، فلذالك جاز ضربَ غلامَه زَيْدٌ و امتنع ضرب غلامُهُ زَيْدًا.

**ترجمه:** له هغې مرفوعاتو څخه یو فاعل دی او هغه داسې مرفوع اسم دی، د کوم طرفته چې د فعل یا شبه فعل نسبت شوی وي، په داسې حال کې چې هغه پر دغه اسم مخکې شوی، په داسې ډول چې فعل، یا شبه فعل په ده پورې قائم وي، لکه (قَامَ زَيْدٌ او زَيْدٌ قَائِمٌ اَبُوْهُ) او د فاعل اصل او د زړه غوښتنه داده، چې هغه له فعل سره بېله فصل (پیوست) ذکر شوی وي، ځکه نو د (ضرب غلامَهُ زيدٌ) ترکیب جائز دی او د (ضَرَبَ غُلَامُهُ زَيْدًا) ترکیب ناجائز دی.

**تشریح:** د نن په سبق کې څلور خبرې دي:

①: په مرفوعاتو کې د فاعل د مخکې کېدو وجه، ②: د فاعل تعریف، ③: په تعریف کې دننه د قیدونو فائدې، ④: د فاعل په احکامو کې لومړی حکم، یعنی د فاعل د واقع کېدو ځای.

**تمهید:** مرفوعات ټوټل اته دی، لکه څرنګه چې د پښتو یوه وتلي شاعر بزرګ سنداکي بابا رحمه الله په خپلو دوو شعرونو کې جمع کړي دي، چې له یو څه ادلون، بدلون وروسته یې دلته وړاندې کول مناسب دي:

اته دي مرفوعات واوره بیان که لزي حرص*
خبر او مبتداء خبر دلائ نفي جنس*
فاعل دی او نائب دده خبرشه د دفن*
اسمین دلیسَ کانَ، ما ولا خبر د اِنَّ

**لومړی خبره:** په مرفوعاتو کې د فاعل د مخکې کېدو وجه:

فاعل یې تر نورو مرفوعاتو ځکه مخکې کړی، چې د نحوي د جمهورو علماؤ په نزد دا عمده وي، ځکه چې دا د جمله فعلیه جزء وي او د جمله مقصد مخاطب ته فائده رسېدل وی او دا خاصیت په جمله فعلیه کې په پوره درجه پیدا کېږي، ځکه چې په فعلیه کې د اسمیه په نسبت څه زیادت، یعني نسبت الی الزمان وي، ځکه یې نو دا مخکې کړ.

## دفاعل تعريف

**دوهمه خبره:** د فاعل تعریف:

الفاعل: هو ما اسنداليه الفعل او شبهه و قدم عليه على جهة قيامه به.

په دې عبارت كې د كافيه ملاصاحب رحمه الله دفاعل تعريف بيان كړى، چې فاعل هر هغه اسم دى، د كوم طرفته چې دفعل، يا شبه فعل نسبت سوى وي، په داسې ډول، چې دا دواړه، يعني فعل او شبه فعل له دغه اسم څخه صادر سوي وي (نه چې پر ده واقع وي) او دواړه ترده مخكې هم وي، لكه قَامَ زَيْدٌ او زَيْدٌ قَائِمٌ أَبُوهُ.

**دريمه خبره:** په تعريف كې دننه د قيدونو فائدې:

د كوم شي چې هم تعريف بيانېږي، نو د هغه د جامع او مانع جوړېدو لپاره يو جنس او تر هغه وروسته څو فصلونه قائم وي، دلته د فاعل په تعريف كولو سره هم ابن حاجب رحمه الله يو جنس او درې فصلونه راوړي دي، څرنګه چې په (الفاعل: هو ما اسنداليه الفعل او شبهه و قدم عليه على قيامه به) كې د (هو) مرجع يعنى (الفاعل) معرف دى او له (ما اشتمل) څخه تر (على جهة قيامه به) پورې يې تعريف دى، بيا په تعريف كې د (ما) كلمه جنس ده پكې هر قسم اسماء داخل دي، تر دې وروسته (اسنداليه الفعل او شبهه) لومړى فصل دى، هغه اسماء په ووتل، د كومو طرفته چې د فعل پر ځاى د اسماؤ نسبت سوى وي، لكه (زَيْدٌ ابوكَ) وغيره.

(و قُدِّمَ عليه) دوهم فصل دى، هر هغه اسم په ووت د كوم طرفته چې د فعل نسبت خو سوى وي، ليكن فعل تر ده وروسته وي، لكه: (زَيْدٌ ضربَ و عمرٌو قرأ).

على جهة قيامه به دا دريم فصل دى، په دې سره مجهول فعل ووت، ځكه په هغه كې كه څه هم د اسم وطرفته د فعل نسبت سوى وى او تر ده مخكې هم وي، ليكن هغه فعل له ده څخه صادر سوى نه وى، بلكې پر واقع وي، لكه: ضُرِبَ زَيْدٌ.

**ځلورمه خبره:** د فاعل په احکامو کی لومړی حکم یعني د ده د واقع کېدو محل:

په والأصل ان یلی الفعل: سره د کافیه ملاصاحب د فاعل لومړی حکم بیانوي، چی په اصل کي فاعل له خپل فعل سره پیوست او متصل وی، لکه: قَامَ زَیْدٌ او ضَرَبَ غُلَامَهُ زَیْدٌ، دلته پر دوهم مثال سوال کېدای سي، چی په دې کي فاعل له خپل فعل سره متصل نه دی؟، دوهم دا چی په دي کي اضمار قبل الذکر هم لازمېږي؟

د دې سوال جواب دادی: چی نه خو په دې کي فاعل له خپل فعل څخه جلا دی او نه اضمار قبل الذکر لازم سوی دی، ځکه چي (زیدٌ) کوم چی د (ضربَ) فاعل دی، د هغه مرتبه تر مفعول مخکی ده، نو ګواکی چی په اصل کي عبارت داسي دي: ضربَ زَیْدٌ غُلَامَهُ نو له فعل سره متصل هم سو او اضمار قبل الذکر هم لازم نسو، ځکه چي کوم اضمار قبل الذکر ممنوع دی، هغه دا چي لفظًا او رتبةً دواړه لازم سوی وي او دلته خو که څه هم لفظًا سته، لېکن رتبةً نه دی راغلی.

وامتنع ضربَ غلامُهُ زَیْدًا دلته که څه هم فعل له خپل فاعل سره متصل دی، لیکن پکي اضمار قبل الذکر لفظًا او رتبةً دواړه لازم سوی دی، کوم چی د جمهورو علماؤ په نزد ممنوع دی، لیکن امام اخفش رحمه الله او امام ابن جنی رحمه الله کوم چی د الخصائص مصنف دی، د دوی په نزد دا جائز دی، ځکه د دوی دواړو حضراتو په نزد اضمار قبل الذکر لفظًا او رتبةً دواړه جائز دی، دلیل يې یو شعر دی:

جزیٰ ربُّه عنّی عَدِیَّ بنَ حـاتِم

جزاء الکلاب العادیات و قدفعلْ

**وګورئ!** دلته د (ربّه) په کلمه کي د ضمیر مرجع عدی بن حاتم دی کوم چي د لفظ او رتبې دواړو په لحاظ وروسته دی.

جمهورو رحمهم الله د دې جواب کړی، چې دلته د شعري ضرورت له وجې اضمار قبل الذکر جائز بلل سوی دی، که نه د عدم جواز قاعده یې پر خپل ځای پاتې ده.

## یودېرشم (۳۱) درس

### د فاعل ددووهم اودرېیم حکم بیان

و اذا انتفی الاعراب فیهما لفظًا والقرینة او کان مضمرًا متصلًا او وقع مفعوله بعد الّا او معناها، وجب تقدیمه و اذا اتصلَ به ضمیر مفعولٍ او وقعَ بعدالّا او معناها او اتصل به مفعوله و هو غیرمتصل، وجب تأخیره.

**ترجمه:** او کله چي په (فاعل او مفعول) دواړو کي اعراب هم منتفي (نېستي) وي او قرینه یې هم نه وي، یا (فاعل) د ضمیر مرفوع متصل په صورت کي وي، یا یې مفعول د (الّا) یا د (الا) په معنی تر لفظ وروسته واقع وي، نو د ده د (فاعل) مخکي کول واجب دی او کله چي له (فعل) سره د مفعول ضمیر متصل وي، یا مفعول تر (الّا) یا د (الا) په معنی تر لفظ وروسته واقع وي، نو د ده د (فاعل) وروسته کول واجب دي.

**تشریح:** په مذکوره عبارت کي علامه ابن حاجب رحمه الله دوې خبرې بیان کړې دي: ①: د فاعل دوهم حکم، یعني هغه څلور ځایونه، چېري چي فاعل پر مفعول مقدم کول واجب دي، ②: د فاعل درېیم حکم، یعنی هغه څلور ځایونه، چیري چي د فاعل تر مفعول وروسته کول واجب دي.

**لومړۍ خبره:** د فاعل دوهم حکم:

د کافیه ملاصاحب رحمه الله وایې: په څلورو ځایونو کي د فاعل پر مفعول مخکی کول واجب دي: ①: و اذا انتفی الاعراب فیهما لفظًا والقرینة:

یعني فاعل اومفعول دواړه داسي اسم وي، پر کوم چي اعراب لفظي هم نه وي او هلته د فاعل او مفعول د پېژندنې لپاره کومه قرینه هم نه وي، نو په داسي ځای کي د فاعل پر مفعول مخکي کول واجب دي، که مخکي نسي، نو بیا د دوی

ترمينځ تميز او بېلوالى نسي كېداى، يا ترجيح بلا مرجع لازمېږي، لكه (ضربَ مُوسىٰ عيسىٰ او اعطى هؤلاء هؤلاء).

چېرې چي كومه قرينه موجوده وي، د هغه مثال لكه (ضربتْ موسىٰ حبلىٰ او اكل موسىٰ الكمثرىٰ)، په لومړي مثال كي د (حبلى) پر فاعليت (ضربت) صيغه دواحده مؤنثه غائبه دلالت كوي، ځكه كه چېري (موسى) فاعل سي، نو فعل (ضربَ) كېږي، نو ګواكي چي دا لفظي دلالت سو او په دوهم مثال كي عقلى دلالت او قرينه دادي، چي هلته د (موسى) فاعل جوړېدل متعين دي، ځكه په (الكمثرى) كي د فاعليت صلاحيت نسته.

③: او كان مضمرًا متصلا يعني كله چي د فعل فاعل ضمير مرفوع متصل وي، نو هم د فاعل مخكي كېدل واجب دي، كه داسي نسي، نو د ضمېرمتصل منفصل جوړېدل لازمېږي، لكه: ضربتُ زيدًا.

③: او وقعَ مفعوله بعدَ اِلّا: كله چي مفعول تر اِلّا وروسته واقع سي، نو هم د فاعل مخكي كېدل واجب دي، لكه: مَاضَرَبَ زَيْدًا اِلّا عَمْرٌو، ځكه چي ضابطه ده، چي (اِلّا) او د دې په معنا د حرف مابعد منحصر فيه وي، يعني د متكلم مقصد په داسي ځاى كي داوي، چي د فاعل فاعليت منحصر دى په دغه مفعول كي او د مفعوليت حصر په دغه فاعل كي منحصر نه وي، د دې پر ځاى كه چېرې فاعل وروسته سي، نو د ده پر عكس لازمېږي، كوم چي د متكلم د مقصد خلاف وي.

③: او معناها: كله چي مفعول ترداسي حرف وروسته راسي، چي د (الّا) په معنا وي، نو هم د فاعل مخكى كول واجب دى، لكه (اِنَّمَا ضربَ زَيْدًا عمروًا) يعنى له ده پرته نور هيڅ خبره نسته، چي زيد صرف عمرو وهلى دى، دلته كه چېرى د فاعل مخكى كېدل واجب نسي، نو مخكنى خرابي لازمېږي.

دوهمه خبره: د فاعل درېيم حكم:

د كافيه ملاصاحب رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ د فاعل درېيم حكم بيانوي، چي په څلورو ځايونو كي د فاعل وروسته كول واجب دي:

①: و اذا اتصل به ضمیر مفعول، یعني کله چی له فاعل سره د مفعول وطرفته راجع کېدونکی ضمېر متصل وي، نو د فاعل تر مفعول وروسته کول واجب دی، لکه (ضربَ زَیدًا غُلَامُهُ) دلته که چېرې فاعل وروسته نکړل سي، نو اضمار قبل الذکر لفظًا او رتبةً دواړه لازمېږي، کوم چي مصنف رحمه الله په (وامتنع ضربَ غلامُهُ زَیْدًا) ویلو سره منع کړ.

②، ③: او وقع بعد الّا او معناها: دوهم او درېیم ځای، چېرې چی د فاعل وروسته کول واجب وي، دادی، چی فاعل تر (الّا)، یا تر هغه چا وروسته راغلی وي، چی د الا په معنا وي، لکه (ماضربَ زَیْدًا الّا عمروٌ او انما ضرب زیدًا عمروٌ) دلته د فاعل وروسته کول ځکه واجب دی، چي تر (الا) وروسته د فاعل په ذکر کولو سره دمتکلم مقصد د مفعولیت حصر کېدل وي، نو که وروسته نسي، نو د مطلوب انقلاب یعني د مفعولیت پر ځای د فاعلیت حصر لازمېږي.

④: او اتصل به مفعوله و هو غیرمتصل: یا دا چي له فعل سره د مفعول ضمېر لګېدلی وی، په دې شرط چي پخپله د فاعل ضمېر له ده سره متصل نه وي، لکه (ضَرَبَکَ زَیْدٌ)، دلته د فاعل وروسته کول ځکه واجب دي، چي په دې صورت کي د فاعل مخکي راوړل ممکن هم نه دي، لېکن بیا هم که چېرې مخکي سي، نو د ضمېرمنصوب متصل منفصل جوړېدل لازمېږي.

## دوه دېرشم (۳۲) درس

## دفاعل څلورم حکم یعني دده دفعل حذفول

و قدْ یُحذف الفعل لقیام قرینة جوازًا فی مثل زَیْدٌ لِمَن قَالَ مَنْ قَامَ؟

و لِیُبکَ یزیدُ ضارعٌ لخصومه و مختبطٌ مما تطیح الطّوائح

ووجوبًا فی مثل (و ان احدٌ من المشرکین استجارک) و قد یُحذفان معًا فی مثل: نعم لمن قال: اَقَامَ زَیْدٌ؟

**ترجمه:** او کله کله د کومې قرينې د شتون له کبله فعل په جوازي ډول حذف کېږي، لکه د (زيدٌ) په څېر مثالونو کې د هغه چا په جواب کې ويل، چې پوښتنه وکړي (من قام؟) او (ليبک يزيد ضارع لخصومه) په څېر ترکيب کي او کله کله په وجوبي ډول حذف کېږي، لکه د (وان احدٌ من المشرکين استجارک) ترکيب کي او کله کله فعل او فاعل دواړه په يوه ځل حذف کېږي، لکه د (نعم) په څېر مثالونو کي د هغه چا په جواب کی، چې پوښتنه وکړي (اقام زيدًا؟).

**تشريح:** په مذکوره عبارت کي علامه ابن حاجب رحمه الله عليه د فاعل څلورم حکم يعنی د فاعل حذفول بيانوي او وايې: څرنګه چې داسي ځايونه تړتل درې دي، چېري چې دفاعل حذف کېږي، له هغو څخه دوه ځايونه حذف جائز دی او يو ځای ځای واجب دي.

د دې ترتفصېل مخکي د تمهېد په ډول دا خبره په ذهن کي ونېسئ، چې د قرينې معنا ده (الأمرالدال على تعيين الشيء) يعني د يو شي پر تعيېن د دلالت کوونکي شی موجودېدل، بيا دا پر دوه قسمه دي:

①: **قرينه مقاليه:** يعني چې د محذوف پر حذف کېدو د دلالت کوونکي شی تعلق له قول سره وی، کوم چې د سائل سوال هم کېدای سي.

②: **قرينه حاليه:** يعنی چی د محذوف پر حذف کېدو د متکلم، يا مخاطب حال دلالت کوی، اوس تفصېل ته غوږ سئ:

①: و قد يُحذفُ الفعل لقيام قرينة: يعنی چيري چي د فعل پر موجودګی کومه قرينه او دلېل موجود وی، نو هلته د فعل حذفول جائزدي او هغه قرينه او دليل يا خو سوال محقق وی، يا سوال مقدر، د محقق سوال مثال دادی، چي که چېري څوک ووايې: (من قامَ؟)، نو په جواب کي صرف (زيدٌ) ويل کېږي او د فعل پر حذف کېدو قرينه دسائل سوال وي، ځکه سوال پوره جمله ده، نو جوابيه کلام هم پوره جمله کېدل پکار دي، حال دا چی دلته جواب د مفرد په شکل دی، نو له دې معلومه سوه، چي دلته څه نا څه هرومرو حذف سوي دي، ځکه ويل سوي دي: المذکور فی السؤال کالموعود فی الجواب.

او چېرې چې قرينه سوال مقدر وي، د هغه مثال يو شعر دی، کوم چې ضرار بن نهشل د خپل ورور يزيد بن نهشل په مرثيه (غمرازی) کې ويلی دی:

وَ لِيُبکَ يزيدُ ضارعٌ لخصومه و مختبطٌ مما تطيح الطّوائح

**ترجمه:** پکار دي، چې پر يزيد ژړا وسي، ځکه چې دی د دښمن له جګړې څخه عاجزه کوونکی دی او هغه سړی، کوم چې بېله وسيلې سوال کوونکی وي، د زمانې د هلاکوونکو حادثاتو په وجه.

**د استشهاد محل:** دلته د استشهاد محل (ضارعٌ) دی کوم چې د (يبکی) فعل لپاره فاعل دی او د (يبکی) فعل پر حذف کېدو قرينه سوال مقدر ده، هغه داراز چې کله شاعر وويل، چې ليبکَ يزيد، يعني پکار دي، چې پر يزيد ژړا وسي، نو سوال پيداسو، چې (من يبکی عليه؟) يعني څوک پر ده ژاړي؟، نو شاعر جواب ورکړ، چې (ضارعٌ لخصومه)، نو ګواکې چې دلته د فعل پر حذف کېدو قرينه سوال مقدر دی.

**تركيب:** (لِيبکَ) فعل امر غائب مجهول، (يزيد) نائب فاعل، فعل سره له خپل فاعل جمله فعليه انشائيه سو، (ضارعٌ) صيغه داسم فاعل ده، (لخصومه) جار سره له مجروره متعلق سوتر (ضارعٌ) صيغه داسم فاعل پورې، (واو) حرف عطف، (مختبطٌ) صيغه د صفت، (مما) په دې کې (من) حرف جار لپاره د تعليل، (ما) مصدريه، (تطيح) فعل مضارع، (الطوائح) يې فاعل، فعل سره له خپل فاعل (ما) د موصول لپاره صله، موصول سره له خپلې صله مجرور، جار سره له خپل مجروره متعلق سو تر (مختبط) صيغه داسم فاعل پورې، (مختبط) صيغه داسم فاعل سره له خپل متعلق معطوف، (ضارعٌ) معطوف عليه سره له خپل معطوف د فعل مقدر (يبکی) لپاره فاعل سو، فعل سره له خپل فاعله جمله فعليه خبريه سوه.

②: و وجوبًا فی مثل: (وان احدٌ من المشرکين استجارک)، وايې چې هر هغه ځای چيرې چې کوم فعل په جوازي ډول حذف کېږي، بيا د ده په حذف کېدو سره په کلام کې ابهام پيداسي، بيا د دغه ابهام د ليرې کېدو لپاره يو فعل د تفسير په ډول راوړي، نو اوس د دغه فعل مفسّر راوړلو له وجې د لومړي په

جوازي ډول حذف سوي فعل حذفول وجوبي کېږي، لکه (وان احدٌ من المشرکین استجارک)، دا په اصل کي (وان ستجارک احد من المشرکین فاجره) وو، دلته د فعل پر حذف منلو دوه شیان دلالت کوي، لومړی لفظي او دوهم معنوي.

معنوي: دا ده، چي که چېري موږ دلته فعل محذوف ومنو نو د دې ترجمه غلطېږي، هغه په دې ډول چي (که چېري له مشرکینو څخه کوم یووي، نو ته هغه ته امن ورکړه).

**لفظي**: دا ده، چي دلته (ان) حرف شرط پر اسم داخل سوی دی، حال دا چي دا دفعل خاصه ده، نو لازمېږي، چي دا په اصل کی (وان استجارک احد من المشرکین فاجره) و، لومړی ځیني (استجارک) فعل په جوازي ډول حذف سو، نو په کلام کی ابهام پیداسو، د دغه ابهام د لیري کېدو لپاره په وروسته کي (استجارک) فعل د تفسېر په ډول راوړل سو، نو له دې وجې د لومړی فعل حذف وجوبي سو، که داسي نسي، نو د مفسّر او مفسَّر اجتماع لازمېږي، چي د عبارت تقدېر داسي کېږي (وان استجارک احدٌ من المشرکین استجارک فاجره) او دا راز د دواړو جمع کېدل ناجائز دي.

**سوال**: د دې دواړو جمع کېدل په مطلق ډول منع نه دي، بلکي هلته منع دي، چېري چي ابهام د فعل د حذف کېدو له وجې پیدا سوی وي او ستاسو په مثال کي که څه هم ابهام ضرور سته، لیکن دا دنکره کېدو له وجې دی، نه چي د فعل د حذف کېدو له وجې؟

په عبارت کي (جوازًا او وجوبًا) دواړه منصوب دي، ځکه چي د محذوف مفعول مطلق لپاره صفت جوړېږي، مثلا د عبارت تقدېر داسي کېږي (وقد یحذف الفعل لقیام قرینة حذفًا جوازًا) او (قد یحذف الفعل لقیام قرینة حذفًا وجوبًا).

③: وقد یُحذفان معًا یعنی هر هغه سوال، دکوم چي جواب د ایجاب، یا نفي په ډول راغلی وي، نو په جواب کي د فعل او فاعل دواړو په یوه وار حذفول جائز دي، لکه چي یو څوک سوال وکړي (أقامَ زیدٌ؟)، نو په جواب کي یې صرف (نعم) ویل کېږي، یا صرف (لا) ویل کېږي، څرنګه چي دا حذف جوازي دی، نو (نعم قام زید) ویل هم جائز دي.

## دري دېرشم (۳۳) درس

## د فعلينو د تنازع بيان

واذا تنازع الفعلان ظاهرًا بعدهما، فقد يكونُ في الفاعلية، مثل: ضربني و اكرمني زيدٌ، و في المفعولية مثل ضربتُ واكرمتُ زيدًا او في الفاعلية والمفعولية مختلفين، فيختار البصريون اعمال الثاني والكوفيون الاول.

**ترجمه**: او کله چي دوه فعلونه تر ځان په وروسته راغلی اسم کي په ظاهري ډول تنازع وکړي، دا تنازع کله د خپل ځان لپاره په فاعل جوړېدو کي وی، لکه (ضربني و اکرمني زيدٌ) او کله د خپل ځان لپاره په مفعول جوړېدو کی وي، لکه (ضربتُ واکرمتُ زيدًا) او کله په فاعل اومفعول جوړېدو کي وي، په هغه وخت کي چي دواړه فعلونه په اقتضاء (غوښتنه) کی مختلف وي، نو بصريينو غوره دا ګڼلي چي دوهم فعل ته عمل ورکول سي او کوفيينو لومړی فعل ته عمل ورکول غوره ګڼلي.

**تشريح**: د نن په سبق کي علامه ابن حاجب رحمه الله د نحوي د مشهور باب (تنازع الفعلين) بيان کوي، نو د دې په ضمن کي موږ څلور خبرې وړاندي کوو: ①: د تنازع فعلين تعريف، ②: د مصنف رحمه الله د مذکوره عبارت توضيح او د قيدونو فائدې، ③: د تنازع فعلين صورتونه، ④: د بصريينو او کوفيينو اختلاف.

### د تنازع فعلين تعريف

**لومړۍ خبره**: د تنازع فعلين تعريف:

د فعلينو تنازع دېته وايې، چي په کلام کي دوه، يا تر دوو زيات فعلونه وي او تر دوی وروسته په اخير کي يو اسم ظاهر راغلی وي، په دغه اسم ظاهر کي د مخکنيو فعلونو لپاره على سبيل البدلية د معمول جوړېدو صلاحيت (وړتيا) هم وي او له دغو فعلونو څخه هر يو دا تقاضا هم کوی، چي دا زما معمول جوړ سي، نو دا ډول (د هر فعل د دغه اسم په هکله تقاضا کولو) ته د نحويينو په اصطلاح کي تنازع فعلين ويل کېږي.

**دوهمه خبره**: د عبارت توضیح او د قیدونو فائدې:

و اذا تنازع الفعلان ظاهرًا بعدهما:

①: دلته د مصنف رحمه الله په (و اذا تنازع) ویلو سره د تنازع فعلین اصطلاحي معنا مراد ده، یعنی په وروسته راتلونکي اسم کي د هر فعل د ځان لپاره د معمول جوړېدو تقاضا کول، که چېري لغوي معنی (یو له بل سره جګړه کول) مراد سي، نو هغه ځکه غلطه ده، چي هغه په روح لرونکو شیانو پوري خاص ده.

②: الفعلان: یوازي فعلان یې ذکرکړل، ځکه چی په عواملو کي تر ټولو قوي عامل فعل وي، نو د قوي په ذکرکولو سره د باقي، یعنی د شبه فعل ذکر کول تبعًا راغی، ځکه چی په هغه کي هم تنازع راتلای سي، مثلا (زیدٌ ضاربٌ و مکرمٌ بکرًا و بکرٌ شریف وکریمٌ ابوه).

دا رازپه (الفعلان) کي دا خبره هم په یاد لرئ، چي مصنف رحمه الله (فعلان) وویل دا یې و اقل (کمې) درجې ته اشاره کړې، که نه تر دوو په زیاتو افعالو کي هم تنازع راځي، لکه د رسول الله ﷺ په حدیث مبارک کي چي راغلي دي (تُسَبِّحون وتُحمّدون و تکبّرون دُبُرَ کلّ صلاةٍ ثلاثًا و ثلاثین) په دې کي هر فعل غواړي چي (دُبُرَ) خپل مفعول جوړ کړي او دا راز (کما صلیت وسلّمت و بارکت ورحمتَ وترحّمتَ علیٰ ابراهیم) په دې پنځو افعالو کی هم هریو د (علیٰ ابراهیم) د ځان لپاره د مفعول جوړېدو تقاضا کوي، نو له دې څخه معلومه سوه، چی تنازع صرف په دوو فعلونو کی نه، بلکی په زیاتو کي هم راتلای سي.

③: ظاهرًا: په ظاهرًا ویلو دېته اشاره ده، چي د فعلینو تنازع په اسم ظاهر کي وي، په ضمېر کي نه وي، ځکه ضمېر چی له کوم فعل سره متصل وي بالاتفاق د هغه معمول وي.

④: بعدهما: په بعدهما ویلو دېته اشاره ده، چي اسم ظاهر که چېري د افعالو په شروع کي وي، یا په مینځ کي وي، نو هلته هم تنازع نسته، ځکه چی په شروع کي وي، نو د هغه مبتداء کېدل ظاهر دي، او که په مینځ کي وي، نو بالاتفاق د ماقبل فعل لپاره فاعل جوړېږي، یا مفعول.

دریمه خبره: د فعلینو د تنازع صورتونه:
له (فقد یکون فی الفاعلیة) واخله تر (او فی الفاعلیة والمفعولیة مختلفین)
پوري په عبارت کي مصنف رحمه الله د تنازع څلور صورتونه بیان کړي دي:
①: دواړه فعلونو به د وروسته اسم د خپل ځان لپاره د فاعل جوړېدو تقاضا کوي، لکه (ضربنی و اکرمنی زیدٌ).
②: دواړه فعلونه به د وروسته اسم د خپل ځان لپاره د مفعول جوړېدو تقاضا کوي، لکه (ضربتُ و اکرمتُ زیدًا).
③: لومړی فعل به د فاعلیت او دوهم فعل به د مفعولیت تقاضا کوي، لکه (ضربنی و اکرمتُ زیدًا).
④: د دریم صورت پر عکس یعني لومړی فعل به د مفعولیت او دوهم فعل به د فاعلیت تقاضا کوي، لکه: (ضربتُ و اکرمنی زیدٌ).

## په تنازع فعلین کي د بصریېنو او کوفیېنو اختلاف

**څلورمه خبره**: د بصریېنو او کوفیېنو اختلاف:
هسي خو د کوفیېنو او بصریېنو پر دې اتفاق دی، چي له دواړو فعلونو څخه هریوه فعل ته عمل ورکول جائز دي، خو اختلاف صرف په افضلیت او غیر افضلیت کي دی، چي د کوفیېنو حضراتو په نزد فعل اول ته او د بصریېنو په نزد دوهم فعل ته عمل ورکول افضل دي.

**د کوفیېنو دلائل**: (الاول فالاول او الفضل للمتقدّم او الاول اسبق الطالبین فهو اولیٰ باعطاء المطلوب).

یو بل دلیل هم سته، چي که فعل ثاني ته عمل ورکول سي او په اول کي ضمېر فاعل جوړ سي، نو اضمار قبل الذکر لازمېږي، کوم چي ناجائز دی، پر دې سربېره دوی د امرأالقیس شعر هم د استدلال په ډول وړاندي کوي، کوم چي راتلونکی دی.

او د بصریېنو عقلي دلیل دادی، چي که چېري لومړي فعل ته عمل ورکول سي، نو د عمل او معمول تر مینځ په اجنبي (پردي) سره فاصله لازمېږي، کومه چي ناخوښه ده.

دوهم دلیل دا چي پر لومړي فعل (قبل تمامه بالفاعل) یعني په خپل فاعل تر تمام کېدو مخکی، مخکي د دوهمې جملې عطف لازمېږي، حال دا چي دا د فصیحانو په نزد ناخوښه دی، لکه ضربني و اکرمني زیدٌ.

دریم دا چي د قرآنکریم او نورو عربي کتابونو له رسم الخط څخه هم فعل ثاني ته عمل ورکول معلومېږي، لکه چي د الله تعالی مبارکه وینادہ (هَاؤُمُ اقْرَؤُا كِتَابِيَهْ) دلته که چېري اول فعل ته عمل ورکول سي، نو (اقرأوه) کېدی، ځکه (کتابیه) خو د لومړي فعل لپاره مفعول جوړېږي.

بل ځای هم د الله تعالی وینا راغلې ده: (آتُونِيْ اُفْرِغْ عَلَيْهِ قِطْرًا) دلته هم فعل ثاني ته عمل ورکول سوی دی، ځکه که چېري لومړي فعل ته عمل ورکول سي، نو معنی غلطېږي.

څلورم دا چي د فصیحانو عربو په نزد هم فعل ثاني ته عمل ورکول مروج دي او د کافیه د ملاصاحب رحمه الله له طرز څخه هم معلومېږي، ځکه که چېري تاسو په غور وګورئ، نو په ټولو مثالونو کي هغه هم د فعل ثاني له اقتضاء سره سم پر ظاهر اعراب لګولی دی.

## څلوردېرشم (۳۴) درس

### وفعل ثاني ته دعمل ورکولو په صورت کي د تنازع قطع

فان اعملت الثانی اضمرت الفاعل فی الأول علی وفق الظاهر دون الحذف، خلافًا للکسائي و جاز خلافًا للفراء و حذفت المفعول ان استغنی عنه و الّا اظهرتَ.

**ترجمه**: نو که چېري ته دوهم فعل ته (په اسم ظاهر کي) د عمل موقع ورکوي، نو لومړی به په فعل کي له اسم ظاهر سره موافق د فاعل ضمېر منې، نه دا چي ته دا حذف کړي، خلاف ثابت دی امام کسایي رحمه الله ته او فعل ثاني ته عمل ورکول روا دي، خلاف ثابت دی امام فراء رحمه الله ته او که چېري د مفعول ذکر کول ضروري نه وي، نو حذف يې کړه، که ضروري وي، نو ذکر يې کړه.

**تشریح**: په مذکوره عبارت کی درې خبرې دی:

①: د بصریینو په نزد د فعل اول د فاعل د تقاضا کولو په وخت کي د تنازع قطع.
②:د امام کسائي او امام فراء له جمهورو سره اختلاف.
③: د فعل اول د مفعول د تقاضا کولو په وخت کي قطع تنازع.
لومړی خبره: د بصریینو په نزد د فعل اول د فاعل د تقاضا کولو په وخت کي د تنازع قطع.
مصنف رحمه الله د کوفیینو او بصریینو اختلاف بیانوي، نو د قطع تنازع تفصیل او په ضمن کي یې د امام کسائي او امام فراء له جمهورو سره اختلاف بیانوي، ځرنګه چي د علامه ابن حاجب رحمه الله په نزد د بصریینو قول راجح دی، ځکه یې نو اختلاف بیانول هم د بصریینو مخکي کړی و او اوس یې د قطع تنازع تفصیل بیانول هم د بصریینو مخکی کړی.
**فان ا عملت الثاني**: وایي، چي د بصریینو له مذهب سره سم که چېري فعل ثاني ته عمل ورکول سي، نو یا خو به یې له مفعول سره یوځای کوي، لیکن مسئله د لومړي فعل ده، هغه ته به ګوري، چي هغه دفاعل تقاضا کوي، یا د مفعول، که یې چېري د فاعل تقاضا کوله، نو له موږ سره د مسئلې د حل درې طریقې سته:
①: د فاعل له سره حذفول، ②: د فاعل ذکر کول، ③: د ده ضمېر راوړل.
حذف خو یې نسي کېدای، ځکه چي فاعل عمده (اصل) وي او دعمده حذف بیله قائمقامه ناجائز دی، له همدې وجې مصنف رحمه الله (دون الحذف) ویلی دی، یعنی حذف یې نسي کېدای.
او ذکر کېدای هم نسي، ځکه چي په ذکر کولو کي یې تکرار لازمېږي، لکه (ضربني زید و اکرمني زیدٌ)، کوم چي د فصحاؤ په نزد یو بد عمل دی، ځکه چي په تکرار کي سامع ته شبهه پیداکېږي، چي د (ضربني) فاعل کوم بل زید دی او د (اکرمني) دا کوم بل یو، حال دا چي دا د واقع خلاف دی، ځکه چي اسم ظاهر خو یو وي، که نه وي نو تنازع نسته.

نو کله چي حذفول او ذکر کول دواړه نامناسب وه، نو اضمار يې متعين سو، له همدې وجې مصنف رحمه الله ويلي دي، چې (اضمرتَ الفاعل فی الأول) يعنی په لومړي فعل کي د فاعل ضمير راوړه.

(علی وفق الظاهر) يې وويل، چي هغه ضمير هم له وروسته راتلونکي اسم ظاهر سره موافق وي، ځکه چي د ده مرجع هماغه اسم ظاهر وي او د راجع و مرجع تر مينځ مطابقت ضروري دی، ځکه نو ضمير له اسم ظاهر سره مطابق راوړل کيږي، لکه (ضربنی و اکرمنی زيدٌ) په دې کي (زيدٌ) د (اکرمنی) فاعل دی او په (ضربنی) کي (هو) مستتر ضمير فاعل جوړيږي، د کوم چي تفسير د (زيدٌ) په ذريعه سوی دی، پاتې سوه د اضمار قبل الذکر مسئله، نو هغه بېشکه نا جائز ده، ليکن په عمده کي په شرط د تفسير جائز ده، لکه په (قُلْ هُوَاللّٰهُ اَحَدٌ) کي چي دي.

**دوهمه خبره:** د امام کسائي او امام فراء له جمهورو سره اختلاف:

**خلافًا للکسائي:** بصريين حضرات په ډير محنت سره د دواړو فعلونو په تنازع ختمولو فعل ثاني ته په عمل ورکولو او د فعل اول په ضمير راوړلو راضي سوې، ليکن امام کسائي راغی فعل اول ته ضمير ورکول يې باطل وګڼل او ويې ويل: چی په دې سره اضمار قبل الذکر لازميږي، کوم چی د امام کسائي په نزد په هر صورت کي ناجائز دی او په ذکر کولو يې تکرار لازميږي، لهذا يو صورت پاتې سو، يعني حذفول يې، نو امام کسائي حذف کړ، ځکه چی هغه عمده دی او د عمده محذوف کول هم ګواکي د مذکور او ملفوظ په حکم کي وي.

د امام کسائي او بصريينو رحمهم الله په نزد د اختلاف ثمره په هغه صورت کي ظاهريږي، کله چي وروسته راتلونکی اسم ظاهر د تثنيه، يا جمع صيغه وی، مثلا د تثنيه په صورت کي بصريينو ويلي دي (ضربانی واکرمت الزيدَين) او امام کسائي رحمه الله ويلي دي: (ضربنی او اکرمت الزيدَين)، دا راز په جمع کي بصريينو ويلي دي: (ضربونی واکرمت الزيدينَ) او امام کسائي رحمه الله ويلی دي (ضربنی واکرمت الزيدِينَ) يعنی د فعل اول فاعل يې حذف کړی دی.

و جازَ: دا د جمله معترضه په ډول، یا د تمهید په ډول ویل سوی، ځکه چی د امام فراء را روان قول د دې مخالف دی، نو په (جاز) کې ښیي، چې د جمهورو مسلک دادی، که څه هم فعل اول د فاعل تقاضا کوله بیا هم فعل ثاني ته عمل ورکول جائز دي.

**خلافًا للفراء:** لیکن امام فراء رحمه الله ویلی دي، چې جناب! ستاسو په دې صورت کې فعل ثاني ته عمل ورکول له سره باطل دي، ځکه اصل او قاعده دادي، چې کله فعل اول د یو عمده شی (یعني فاعل) تقاضا کوله، نو په داسې صورت کې فعل ثاني ته عمل نسي ورکول کېدای، ځکه چی فعل ثانی ته عمل ورکول او په فعل اول کې د ضمیر منلو په صورت کې اضمار قبل الذکر لازمېږي، او د حذف په صورت کې د عمده حذف لازمېږي، او د اظهار په صورت کې تکرار لازمېږي، نو کله چې درې سره ناجائز سو، نو نتیجه دا راوزي، چې په داسې صورت کې فعل ثاني ته عمل ورکول ناجائز دی.

**درېیمه خبره:** د فعل اول د مفعول د تقاضا کولو په وخت کی قطع تنازع:

و حذفت المفعول ان استغنیٰ عنه یې وویل، چې که چېرې فعل اول د اسم ظاهر مفعول جوړېدو تقاضا کوونکی و، نو کتل کېږي به چې فعل اول له افعال قلوب څخه دی، که نه، که چېری له افعال قلوب څخه نه و، نو ګواکې چی هغه له مفعول څخه مستغني (بې پروا) دی، له همدې وجې مصنف رحمه الله (ان استغنیٰ عنه) ویلي دي، نو د دې مفعول حذف کېږي، ځکه چی د ضمیر راوړلو په صورت کې اضمار قبل الذکر لازمېږي او د اظهار په صورت کې د تکرار قباحت لازمېږي، پاتې سو حذفول یې، نو هغه جائز دی، ځکه چې فضله دی (والفضلة لابأس بحذفها)، لکه (ضربتُ و اکرمتُ زیدًا).

و اِلّا اظهرت: یعنی که چېري فعل اول، کوم چی د مفعول تقاضا کوونکی دی، هغه له مفعول څخه مستغني نه وي، یعني له افعال قلوب څخه و، لکه (حسبنی وحسبتُ زیدًا منطلقًا)، نو دلته هم په عقلي توګه درې صورتونه دي: اضمار، اظهار او حذف، د اضمار په صورت کې د فضله اضمار قبل الذکر لازمېږي، کوم

چې ناجائز دی او حذف هم صحیح نه دی، ځکه چې د افعال قلوب هیڅ مفعول حذف کېدای نسي، نو ظاهرول یې متعین سو، له همدې وجې مصنف رحمه الله (و انا اظهرت) وویل، لکه ذکر سوی مثال، دا راز ویل کېږي (حسبنی منطلقًا وحسبتُ زیدًا منطلقًا).

**وګورئ!** دلته (حسبنی) فاعل او یوه مفعول ته ضرورت درلود، نو ځکه هغه (زیدٌ) د خپل ځان لپاره د فاعل او د (منطلقًا) د خپل ځان مفعول جوړېدو تقاضا وکړه او (حسبتُ) دوو مفعولونو ته ضرورت درلود، ځکه نو هغه د (زیدٌ) او (منطلقًا) دواړو د خپل ځان لپاره د مفعول جوړېدو تقاضا وکړه، نو ځکه یې عمل فعل ثاني ته ورکړ به اول کي یې د فاعل ضمیر ومانه، د کوم چې تفصیل تېر سو، تر هغه وروسته یې د دوهم مفعول لپاره وروستنی اسم ظاهر یعني د (منطلقًا) په ډول دوهم (منطلقًا) ظاهر کړ، او مفعول یې جوړ کړ، نو (حسبنی منطلقًا و حسبتُ زیدًا منطلقًا) جوړ سو.

### پنځه دېرشم (۳۵) درس

### فعل اول ته د عمل ورکولو په صورت کي د تنازع قطع کېدل

و ان اعملت الاول اضمرتَ الفاعل فی الثانی والمفعول علی المختار الّا ان یمنعَ مانعٌ فتظهر و قول امرئ القیس: (کفانی و لم اطلب قلیلٌ من المال) لیس منه، لفساد المعنٰی.

**ترجمه:** که چېري تاسو لومړی فعل ته عمل ورکړئ، نو په فعل ثاني کي به د فاعل ضمیر منئ او د مفعول هم پر مختار قول، مګر دا چي که کوم مانع وي، نو ظاهر یې کړه او د امرئ القیس قول (کفانی ولم اطلب قلیلٌ من المال) د تنازع فعلین له بحث څخه نه دي، ځکه چي معنا یې خرابېږي.

**تشریح:** د نن په سبق کي درې خبرې دي:

①: د کوفیینو په نزد د فعل اول د فاعل د تقاضا کولو په مهال د تنازع قطع.
②: د فعل ثاني د مفعول غوښتلو په وخت کې د تنازع قطع.
③: د شعر تشریح او پکې عدم تنازع.

لومړۍ خبره: د کوفیینو په نزد دفعل اول د فاعل تقاضا کولو په مهال د تنازع قطع:

د بصریینو په نزد فعل ثاني ته عمل ورکول قطع تنازع او په ضمن کې یې د امام کسائي او امام فراء له جمهورو سره اختلاف مصنف رحمة الله عليه په جامع او مانع انداز (د دریاب په کوزه کې د تېرېدو) په مثل مخکې په څو کلماتو کې بیان کړ، اوس له دې ځایه د کوفیینو په نزد د تنازع د رفع تفصیل بیانوي، نو وایې، چې:
وان اعملت الأول: که چېرې د کوفیینو له مذهب سره سم فعل اول ته عمل ورکول سي، نو بیا موږ فعل ثاني ته ګورو چې د فاعل تقاضا کوی، که د مفعول، که یې چېرې دفاعل تقاضا کوله، یعنی وروسته راتلونکی اسم ظاهر یې د ځان لپاره فاعل جوړول غوښتل، نو د قطع تنازع صورت یې دادی، چې د فعل ثاني فاعل یا خو حذف کېږي، کوم چې قبیح دی، ځکه د عمده حذف لازمېږي، یا به یې ذکر کېږي، نو تکرار لازمېږي، نو اضمار یې متعین سو، له کوم نه چې مصنف رحمة الله عليه په (و اضمرت الفاعل فی الثاني) تعبیر کړی دی، لکه (ضربنی و اکرمنی زیدٌ و ضربنی و اکرمانی الزیدان و ضربت و اکرمنی زیدًا و ضربتَ و اکرمانی الزیدین).

پاتې سو د اضمار قبل الذکر اشکال؟ نو د هغه جواب دادی، اضمار قبل الذکر چې کله لفظًا او رتبةً دواړه لازمېږي، نو هغه مهال ناجائز وی، دلته که څه هم لفظًا خو سته، لیکن رتبةً نسته، ځکه چې هغه دفاعل ضمیر دی او د فاعل رتبه تر مفعول مخکې وي.

**دوهمه خبره**: د فعل ثاني د مفعول غوښتلو په مهال د تنازع قطع:

والمفعول علی المختار: د کتاب مصنف رحمة الله عليه وایې، چې د کوفیینو له مذهب سره سم که چېرې تاسو فعل اول ته عمل ورکړئ، او فعل ثاني د مفعول تقاضا کوي، نو وګوره! چې آیا هغه له افعال قلوب څخه دی، یا له عامه افعالو څخه

دی، که چېري له عامه افعالو څخه وي، نو له موږ سره د قطع تنازع دوه صورتونه شته: اضمار او حذف او هغه دواړه جائز دي، حذفول ځکه جائز دي، چې د فضله حذفول جائز دي، لکه (ضربنی و اکرمتُ زیدٌ).

او اضمار هم جائز، بلکي بهتر او غوره دی، ځکه چې د ضمېر راوړلو په صورت کي پر مخاطب د متکلم مراد ظاهرېږي، لکه (اضربُ و اکرمته زیداً) له دې څخه مخاطب ته معلومېږي، چې وهل سوی هم زید دی او عزت هم زید ته ورکول سوی دی، لیکن که چېری موږ دا حذف کړو، لکه (ضربتُ و اکرمتُ زیدٌ و ضربنی و اکرمتُ زیدٌ)، نو په دې سره مخاطب ته مذکوره فائده نه حاصلېږي، نو له دې څخه معلومه سوه، چې د حذف پر ځای د ضمېر راوړل د نحوي د علماؤ په نزد غوره او بهتر دي، لکه (ضربتُ و اکرمته زیداً و ضربنی و اکرمته زیدٌ).

الّا ان یمنع مانعٌ: که چېری د دغه مفعول له حذف کولو څخه کوم مانع موجود وی، یعنی فعل ثانی له افعال قلوب څخه وي، نو هلته یې حذفول جائز خو نه دي، ځکه چې افعال قلوب دوه مفعولونه غواړي او په دوی کي یو هم حذف کېدای نسي.

او ضمېر راوړل هم صحیح نه دي، ځکه چې دا به له دوو حالونو خالي نه وي، یا خو به د مفرد ضمېر راوړي، یا به دتثنیه، د مفرد د ضمېر راوړلو په صورت کي د راجع او مرجع (یعنی د ایاه او منطلقًا) تر مینځ مطابقت نه راځي، لیکن د دوهم فعل د دواړو مفعولونو (یعنی د حسبتهما هما او ایاه) په مینځ کی مطابقت نه پاتېږي، لکه (حسبنی و حسبتهما ایاه الزیدان منطلقًا) او که چېري د تثنیه ضمېر راوړل سي، نو د فعل ثاني د دواړو مفعولونو تر مینځ که څه هم مطابقت خو راځي، لیکن د راجع او مرجع (ایاهما او منطلقًا) تر مینځ مطابقت نسته، لکه (حسبنی و حسبتهما ایاهما الزیدان منطلقًا).

نو کله چې د فعل ثاني دوهم مفعول حذفول هم جائز نسو او د هغه ضمېر هم جائز نسو، نو پرته له دې کومه بله چاره پاتې نسوه چې هغه ذکر کړل سي، نو مصنف

رحمه الله په (الا ان یمنع مانع فتظهر) سره تعبیر وکړ، نو اوس د عبارت تقدیر داسې کیږي (حسبنی و حسبتهما منطلقین الزیدان منطلقاً).

**درییمه خبره:** د شعر تشریح او پکی عدم تنازع:

دا د امرؤالقیس شعر دی، چې پوره عبارت یې په لاندې ډول دي:

ولو انما اسعیٰ لادنی معیشة* کفانی و لم اطلب قلیلٌ من المال

دا شعر کوفیین حضرات د خپلې مدعیٰ لپاره ددلیل په ډول وړاندې کوي، چې دلته په اسم ظاهر (قلیلٌ) کې د (کفانی او لم اطلب) دوو فعلینو تنازع ده او عمل فعل اول، یعنې (کفانی) ته ورکول سوی دی، ځکه چې (قلیلٌ) مرفوع دی.

خو د کافیه ملاصاحب د بصریینو ترجماني کړې، ویلي یې دي (لیس منه لفساد المعنیٰ) یعنی مذکوره شعر له تنازع سره له سره تړاو نلري، ځکه که چیرې موږ دا له تنازع څخه ومنو، نو معنا یې غلطیږي، هغه په دې ډول چې د(لو) په هکله دا قاعده او اصول دی، چې دا جمله مثبته (هغه که شرط وي، یا جزاء) منفیه او جمله منفیه مثبته جوړوي، نو په یاد سوي شعر کې (انما اسعیٰ) جمله مثبته جمله منفیه جوړیږي، او (لم اطلب) جمله منفیه جمله مثبته جوړیږي، ځکه چې دا پر (انما اسعیٰ) عطف ده، نو په دې صورت کې ترجمه په لاندې ډول کیږي:

که چیرې زه کوشش وکړم د ادنیٰ معیشت لپاره، نو زما لپاره لږ غوندې مال کافی دی، لیکن زه طلب کوم د لږ غوندې مال.

نو د کافیه ملاصاحب رحمه الله وویل: چې دا د تنازع له باب څخه نه دی، بلکې (قلیلٌ) په متعینه ډول د (کفانی) فاعل دی او د (لم اطلب) مفعول محذوف دی، هغه (المجدالمؤثّل) دی، پر کوم چې راتلونکی شعر دلالت کوي:

ولکنّما اسعیٰ لمـــجد مؤثل

وقد یدرک المجد المؤثل امثالی

نو په دې صورت کې صحیحه او سمه ترجمه دا ده: زه د ادنیٰ معیشت (گذارې) لپاره کوشش نه کوم، ځکه چې لږ مال زما لپاره کافي نه دی، لیکن زه کوشش کوم د تلپاتې بزرگۍ او یقیني خبره ده، چې کله کله زما په څېر خلګ هم تلپاتې بزرگۍ ته رسیږي والله اعلم و علمه اتم واکمل.

## شپږ دېرشم (۳۶) درس

## دمفعول مالم یسمّ فاعله بیان

مفعول ما لم یسم فاعله: کل مفعول حُذف فاعله و اقیم هو مقامه و شرطه ان تغیّر صیغة الفعل الیٰ فُعِلَ او یُفْعَلُ و لا یقع المفعول الثانی من باب علمتُ والثالث من باب اعلمت والمفعول له و المفعول معه کذٰلک.

**ترجمه**: له مرفوعاتو څخه دوهم مفعول مالم یسمّ فاعله دی (او) دا هر هغه مفعول دی، چی فاعل یې حذف کړل سوی وي او دی د هغه قائمقام جوړ سوی وي، او د قائمقام جوړېدو لپاره شرط دادی، چي وزن یې د (فُعِلَ یا یُفْعَلُ) وطرفته منتقل سوی وی او د باب (علمت) دوهم مفعول او د باب (اعلمت) درېیم مفعول او مفعول له او دا راز مفعول معه نائب فاعل نسي کېدای.

**تشریح**: د نن په سبقه کي څلور خبرې دی:

①: د مفعول ما لم یسمّ فاعله تعریف، ②: پر (هو) ضمیر اعتراض او د هغه جواب، ③: د مفعول د نائب فاعل جوړېدو لپاره شرط، ④: هغه اسماء کوم چی نائب فاعل نسی کېدای.

### دمفعول مالم یسمّ فاعله تعریف

**لومړۍ خبره**: د مفعول مالم یسمّ فاعله تعریف:

د مفعول مالم یسمّ فاعله لغوی معنیٰ د ده له نامه څخه ظاهره ده، یعنی د داسي فعل مفعول، چی دفاعل نوم یې نه وي اخستل سوی، یعنی فاعل یې نه وی نومول سوی.

اصطلاحي معنا یې پخپله مصنف رحمه الله علیه بیان کړې ده (مفعول مالم یسمّ فاعله: کل مفعولٍ، حُذف فاعله و اقیم هو مقامه)، چی مفعول مالم یسمّ فاعله هر هغه مفعول دی، چی فاعل یې حذف کړل سوی وي او پخپله د هغه پر ځای درېدلی ئې، لکه (کُتِبَ خالدٌ الدرسَ) د دې فاعل (سعیدٌ) چی کله حذف کړل سو، نو (الدرس) یې پر ځای ودرېدی، د اصل اعراب یې ده ته ورکړ او د مخکښي فعل فاعل اوس نه معلومېږي، پاتې سو د ده لپاره د ده مجهول (کُتِبَ)، نو د عبارت

تقدیر داسي سو (کُتِبَ الدّرسُ) اوس وګوره (الدرس) داسي مفعول دی، د کوم چی فاعل مذکور نه دی، ځکه نو موږ د (مفعول مالم یسمّ فاعله) نوم ورباندی ایښی، یعنی هغه مفعول د کوم چي فاعل ذکر سوی نه وي.
لیکن بیا موږ فکر وکړ، چي په ټوله نړۍ کی داسي کوم فعل او مفعول پیخی شتون نلری، چی فاعل یې نه وي، که نه نو دا د (دهریانو) عقیده کیږي، د دوی عقیده ده، چی دا اسمان او ځمکه او ټول شیان پخپله جوړ سوي دي او د کائناتو پوره نظام پخپله چلیږي، زه وایم، چی زما محترمو طالبانو! که چیري تاسو ته داسي سړی وړاندي سي، او ستاسو په وړاندي همدا دعوه وکړي، نو تاسو سمدستي یوه ښه توفنچه د ده پر منحوسه څیره ولګوئ، هغه حیران سي، له تاسو نه پوښتنه وکړي، چي دا ولې؟، نو تاسو په جواب کی ورته وایاست: جناب!دا خو تا پخپله پر خپل ځان لګولې، که چیري هغه ووایې، چي توفنچه پخپله نسي لګیدای، نو تاسو جواب ورکوئ، چي کله یوه توفنچه پخپله پر شی نسي لګیدای، نو دومره لوی کائنات پخپله څرنګه جوړیدای او چلیدای سي؟
نو (کُتِبَ الدرسَ) د دهریانو له عقیدې څخه د ژغورنې لپاره موږ (الدّرسَ) د ده د فاعل پر ځای ولګول او نائب فاعل جوړ سو، له همدې وجې ورته نائب فاعل ویل کیږي، او کوم حکم چی د اصل وی، هماغه د دغه نائب فاعل هم وي، نو د فاعل حکم دادی، چی هغه به مرفوع وي، نو دا هم مرفوع کیږي او داسي ویل کیږي (کُتِبَ الدَّرْسُ).

**دوهمه خبره:** پر (هو) ضمیر اعتراض او د هغه جواب:
فاضل مصنف رحمة الله علیه د مفعول مالم یسمّ فاعله تعریف بیان کړی او ویلي یې: (و اقیم هو مقامه) پر دې سوال کیږی، چي جناب! په (اُقِیمَ) فعل مجهول کي (هو) ضمیر مرفوع متصل دی او د ضمیرمتصل تاکید په ضمیر منفصل سره هغه مهال کیږي، کله چي پر ده کوم بل شی عطف کول مقصود وي، لکه چی په قرآنکریم کي دي (اسکن انتَ و زوجک الجنة) لیکن دلته سره له دې چی د(اُقِیمَ) پر ضمیر مستتر عطف نه دی سوی او بیا هم د ده تاکید په ضمیرمنفصل سوی دی؟

د دې جواب دادی: كه چېرې په ضمير سره دا ډول تاكيد موږ نه وای كړی، نو دا شبهه كېده، چې د (اقيمَ) فعل مجهول نائب فاعل (مقامه) دی، ځكه چې دا ور نژدې دی او قاعده ده چې د قريب پرېښودل او بعيد ته ضمير نسي راجع كېدای، ليكن له دې سره، سره دلته قريب پرېښودل سوی، د بعيد وطرفته ضمير راجع سوی دی، نو د (هو) ضمير په راوړلو يې دېته اشاره كړې، لكه څرنګه چې دلته (هو) خلاف القياس راوړل سوی دی، دا راز د (اقيمَ) نائب فاعل هم خلاف القياس (مفعول) دی، سره له دې چې هغه بعيد هم دی.

### د مفعول د نائب فاعل جوړېدو لپاره شرط

**درېيمه خبره:** د مفعول د نائب فاعل جوړېدو لپاره شرط:

و شرطه ان تغيرصيغة الفعل الى فُعِلَ او يُفْعَلُ:

مصنف رحمه الله د بېلګې په ډول د ثلاثي مجردو د بابونو د افعالو لپاره د ماضي مجهول او مضارع مجهول اوزان را ښيي، مثلا تاسو چې كله هم يو اسم نائب فاعل جوړوئ، نو شرط يې دادی، چې تر ده مخكې فعل كه چېرې ماضي وي، نو د هغه د (فُعِلَ) پر وزن كېدل او كه مضارع وي، نو د هغه د (يُفْعَلُ) پر وزن كېدل ضروري دي، ګواكې چې مصنف رحمه الله صرف (فُعِلَ او يُفْعَلُ) د نمونې په ډول ذكر كړې، مراد ځينې وصف عام دی، يعني له (فُعِلَ) څخه د ماضي مجهول هر باب او له (يُفْعَلُ) څخه د مضارع مجهول هر باب مراد دی، لكه چې موږ مخكې په (لكلّ فرعون موسیٰ) كې ويلې وه، چې له فرعون څخه هر سركښه او له موسیٰ څخه هر د حق اواز لوړوونكی مراد دی.

### هغه اسماء كوم چې نائب فاعل نسي جوړېدای

**څلورمه خبره:** هغه اسماء كوم چې نائب فاعل نسي جوړېدای:

په (ولا يقع المفعول الثانى ا لخ) سره وايې، چې څلور قسمه داسې مفعول دی، چې نائب فاعل نسي جوړېدای، كوم چې په (نحومير) كې د فعل متعدی په فصل كې موږ راوړي دي.

①: باب علمتُ یعني د (علمتُ، ظننتُ، حسبتُ، زعمتُ، خِلتُ، رأیتُ، وجدتُ) دوهم مفعول نائب فاعل نسي کېدای، مثلا په (علمتُ زیدًا فاضلًا) کي (عُلِمَ فاضلٌ زیدًا) نسي ویل کېدای، ځکه چي (زیدٌ فاضلٌ) د (علمتُ) تر داخلېدو مخکي پخپلو کی سره مبتداء او خبر وه، به دې صورت کی (زیدٌ) مسندالیه او (فاضلٌ) مسند و، لیکن (فاضلٌ) که چېري نائب فاعل سي، نو دا مسندالیه جوړېږي، نو د یوه اسم مسند اومسندالیه جوړېدل لازمېږي، کوم چي صحیح نه دی.

②: (والثالث من باب اعلمت) یې وویل، چي باب اعلمتُ یعني د(اعلم، اری، انبأ، اخبر، خبَّر، نبَّأ، حدَّث) مفعول ثالث هم نائب فاعل نسي جوړېدای، وجه هماغه ده، کومه چي په باب علمتُ کی تېره سوه، لهذا په (اعلمُ الله زیدًا عمروًا فاضلًا) کي (اُعلمَ فاضلٌ زیدًا عمروًا) نسي جوړېدای.

③: (والمفعول له) د مفعول له استعمال پر دوه صورته کېږي: ①: په لام سره، ②: بېله لامه.

که په لام سره وي، نو هغه فعل مجهول جوړېږي، لکه (ضُرِبَ للتادیبِ) لیکن که چېري بېله لامه و، نو د هغه په هکله ویل سوې، چي هغه نائب فاعل نسي جوړېدای، ځکه چي دا د مخکي فعل لپاره علت جوړېږي او پر دغه علت جوړېدو یې منصوب ویل دلالت کوي، لیکن د نائب فاعل جوړېدو په صورت کي مرفوع کېږي او د مرفوع کېدو په صورت کي د ده پر مفعول له کېدو هېڅ دلالت نه پاتېږي او کله چي دلالت پاتې نسي، نو ګواکي چي هغه مفعول له پاتې نسو، نو (زیدٌ ضُرِبَ تأدیبًا) (زیدٌ ضُرِبَ تادِیبٌ) نسي ویل کېدای، لنډه دا چي مفعول له ځکه نائب فاعل نسي جوړېدای، چي بیا هغه مفعول له نسي پاتې کېدای.

④: (مفعول معه) معفول معه هم نائب فاعل نسي کېدای، ځکه چي د نائب فاعل جوړېدو په وخت کي به یا موږ واو ورسره ذکر کوو، یا نه، که یې چېري ورسره ذکر کړو، نو نائب فاعل له خپل فعل سره اتصال غواړي او په دې صورت کي اتصال نه پاتېږي، او که یې چېري ورسره ذکر نکړو، نو هغه مفعول معه نه

پاتېږي، نو له دغې خرابۍ څخه د ژغورنې لپاره دا قاعده درته ښيوءِ چې مفعول معه له سره نائب فاعل کېدای نسي.

دلته سوال کېږي، چي مصنف رحمة الله عليه په (كذلك) ويلو خپل عبارت ولې اوږد کړ، حال دا چي بل طرفته موږ وينو، چي د کافيه ملاصاحب رحمة الله عليه د اختصار په درشل كي دی؟

د دې جواب دادی، چي كه يې چېري داسي نه وای کړي، نو شبهه کېده، د دغو ځلورو د نائب فاعل نه جوړېدو علت يو دی، ليكن په (كذلك) ويلو سره يې اشاره وکړه، چی د لومړيو دوو يعنی د باب علمت د مفعول ثاني او د باب اعلمت د دريم مفعول نائب فاعل نه کېدل قوي هم دي او علت يې هم مشترک دی (كما ذكرناه) او د وروستنيو دوو يعنی د مفعول له او مفعول معه نه جوړېدل د لومړنيو په نسبت څه کمزوري هم دی او د نه جوړېدو علتونه يې هم څه بل راز دي.

## اووه دېرشم (۳۷) درس
## د نائب فاعل د تعيين بيان

و اذا وُجدالمفعول به تعين له، تقول: ضُربَ زيدٌ يومَ ا لجمعة امام الأمير ضربًا شديدًا فی داره ، فتعين زيدٌ، فان لم يكن فالجميع سواءٌ والاول من باب اعطيتُ اولیٰ من الثانی.

**ترجمه:** او کله چي په (كوم عبارت کی) مفعول به وي، نو د نائب فاعل جوړېدو لپاره هماغه متعين کېږي، مثلا (ضُربَ زيدٌ يومَ ا لجمعة امام الأمير ضربًا شديدًا فی داره) دلته (زيد) د نائب فاعل کېدو لپاره متعين کېږي او كه چيرى مفعول به په عبارت كي نه وی، بيا ټول مفاعيل (د نائب فاعل جوړېدو لپاره) برابر دي،

لیکن د باب اعطیت لومړی مفعول د نائب فاعل جوړېدو لپاره ډېر غوره دی په نسبت و دوهم مفعول ته.

**تشریح**: د نن په سبق کي درې خبرې دي:

①: له مفاعیلو څخه د نائب فاعل جوړېدو ډېر حق لرونکی، ②: هغه صورت په کوم کی چي ټول مفاعیل په نائب فاعل جوړېدو کي سره برابر وي، ③: د باب اعطیت په مفعولونو کي ډېر حق لرونکی.

**لومړی خبره**: له مفاعیلو څخه د نائب فاعل جوړېدو ډېر حق لرونکی:

و اذا وجد المفعول تعین له:

په کومه جمله کي که چېري پنځه سره مفعولونه راغلي وي، یا پکي ځیني راغلي وي او پکي یو مفعول به هم وي، نو په داسي صورت کي که چېري عامل فعل د کوم یوه د خپل ځان لپاره د نائب فاعل تقاضا کوله، نو کوم یو به یې نائب فاعل جوړېږي؟، نو په داسي ځای کي د نائب فاعل کېدو لپاره مفعول به زیات حق لرونکی دی.

وجه یې داده، چي فعل له عامل سره د نورو مفاعیلو په نسبت له مفعول به سره زیات تعلق لري، ځکه چي فعل لکه څرنګه چی په خپل وجود کي فاعل ته محتاج وي، دا راز خپل مفعول به ته هم محتاج وي، مثلا (ضُرِبَ زیدٌ یومَ الجمعة امام الأمیر ضربًا شدیدًا فی داره) په اصل کي (ضَرِبَ سعیدٌ زیدًا یوم الجمعة امام الامیر ضربًا شدیدًا فی داره) و (سعیدٌ) کوم چی فاعل جوړ سوی و، هغه چي کله حذف کړل سو، نو (ضُرِبَ) نائب فاعل ته ضرورت درلود او د دې ضرورت د پوره کولو لپاره له موږ سره پنځه شیان موجود وه، په هغو کي یو مفعول به هم و، نو نورمو پر خپل حال پرېښودل، مفعول به موږ نائب فاعل جوړ کړ.

په مذکوره جمله کي (یوم الجمعة) مضاف سره له مضاف الیه د ظرف زمان مثال دی او (امام الامیر) مضاف سره له مضاف الیه د ظرف مکان مثال دی او (ضربًا شدیدًا) موصوف سره له صفته د مفعول مطلق مثال دی ا و (فی داره) په واسطه د حرف جر مفعول به دی.

**فائده:** ①: په مذکوره صورت کې د بصریینو په نزد د مفعول به نائب فاعل جوړېدل واجب دي او د کوفیینو په نزد واجب خو نه دی، بلکې صرف اولیٰ او غوره دي.

**فائده:** ②: ضربًا په شدیدًا صفت سره مقید کول دې خبرې ته اشاره ده، چې مصدر نائب فاعل هغه مهال جوړېږي کله چې له ده سره په دې کې خصوصیت پیداکوونکی کوم صفت هم وي.

دوهمه خبره: هغه صورت په کوم کی چې ټول مفاعیل په نائب فاعل جوړېدو کی برابر وي:

(فان لم یکن فالجمیع سواءٌ) که چېرې په کلام کې نور مفاعېل خو وي، لیکن مفعول به نه وی، نو بیا په دوی کې هریو د نائب فاعل جوړېدو په حق لرلو کې سره برابر دي، لکه (ذُهِبَ بزید یوم الجمعة امام الامیر ذهابًا شدیدًا فی داره) په دوی کې هریو نائب فاعل جوړېدای سي.

**درېیمه خبره:** د باب اعطیتُ په مفعولونو کې د ډېر حق لرونکی:

والاول من اعطیت اولیٰ من الثانی:

باب اعطیتُ کوم چې دوه مفعولونه غواړي، لکه (اعطیتُ زیدًا درهمًا) په دوی کی اختیار دی، کوم یو چې هم نائب فاعل جوړول غواړي جوړېدای سي، لیکن لومړی مفعول جوړېدل بهتره دي، ځکه چې د ده په اول مفعول (زیدًا) کې څه ناڅه د فاعلیت معنیٰ هم سته، هغه په داسي ډول، چې تا هغه ته درهم ورکړې وه، او هغه له تا څخه اخستي وه، نو په دغه اخستلو کې د فاعلیت معنیٰ سته، اوپه دوهم مفعول (درهمًا) کې صرف ورکول او اخستل دي، نو په دې کې له دواړو طرفونو څخه صرف د مفعولیت معنی سته، د فاعلیت معنی بلکل نسته، ځکه نو (اُعطیَ زیدٌ درهمًا) ویل غوره او بهتره دي او (اُعطي درهمٌ زیدًا) ویل صرف جائز دي.

لیکن چیري چي التباس لازمېږي مثلا په دواړو مفعولونو کي د فاعلیت معنی پیداکېږي، نو هلته د مفعول اول نائب فاعل جوړېدل صرف اولیٰ نه بلکي واجب دي، لکه د (اعطی بکرٌ زیدًا کتابًا) پر ځای (اُعطیَ زیدٌ کتابًا).

په اخیر کي د مخکني درس د اخیري خبرې پوره خلاصه دا سوه، چي هغه فعل چي متعدي یوه مفعول ته وي، په هغه کي دغه یو مفعول نائب فاعل جوړېږي او هغه فعل چي متعدي د وو مفعولونو ته وي، هغه چي کله له باب اعطیتُ څخه وی، نو دواړه نائب فاعل جوړېدای سي، لیکن د لومړي جوړېدل غوره دي، لکه له (اعطیتُ زیدًا درهمًا څخه اعطیَ زیدٌ درهمًا او اعطیَ درهمٌ زیدًا) دواړه جائز دي او په هغه فعل کي چي متعدي دوو مفعولونو ته وي، د علمت له باب څخه وی، په هغه کی لومړی مفعول نائب فاعل جوړېږي، په خلاف د دوهم مفعول، چي هغه نائب فاعل نسي جوړېدای، دا راز هغه فعل چي متعدی دریو مفعولونو ته وي، په هغه کی لومړی دوه نائب فاعل جوړېدای سي، خو اخیري مفعول نائب نسي کېدای، وجه يې داده، چي متعدي و دوو مفعولونو ته د باب علمت دواړه مفعولونه په خپل مینځ کي مبتداء او خبر وي، که چېري ثاني نائب فاعل سي، نو هغه مسند الیه جوړېږي، حال داچي لومړی همدا اسم د خبر کېدو له وجې مسند و، نو د یوې کلمې مسند او مسند الیه کېدل لازم سو او دا جائز نه دي، همدا حال د متعدي و درو مفعولونو ته د باب اعلمت د اخیري دوو مفعولونو دی او د متعدي و دوو مفعولونو ته د باب علمتُ مثال (علمتُ زیدًا فاضلا عُلم زیدٌ فاضلا) ویل کېدای سي، لیکن (عُلم فاضلٌ زیدًا) ویل صحیح نه دي، دا راز (اعلم الله زیدًا عمروًا فاضلا) اعلم زیدٌ عمروًا فاضلا ا و اعلم عمروٌ زیدًا فاضلًا) ویل کېدای سي، لیکن (اعلمَ فاضلٌ زیدًا عمروًا) نسي کېدای (خیرالنحوص: ۱۴۲).

## اته دېرشم (۳۸) درس

## د دریم مرفوع (مبتداء) بیان

و منها المبتداء والخبر، فالمبتدأ هو الاسم المجرّد عن العوامل اللفظية مسندًا اليه او الصفة الواقعة بعد حرف النفي او الف الاستفهام رافعةً لظاهر، مثل زيدٌ قائمٌ و ما قائم الزيدان و اقائم الزيدان فان طابقت مفردًا جازالامران.

**ترجمه:** او له مرفوعاتو څخه مبتدأ او خبرهم دي، بیا مبتداء هغه اسم دی، چي له لفظي عواملو څخه خالي وي، په داسي حال کي چي هغه مسندآلیه هم وي، یا مبتداء هغه صفت ده، کوم چی تر حرف نفي، یا حرف استفهام وروسته واقع وي او اسم ظاهر ته رفع ورکوونکي وي، لکه (زیدٌ قَائِمٌ او ما قائم الزیدان او اقائم الزیدان)، بیا که چېري صیغه د صفت له اسم ظاهر سره په مفرد کېدو کي برابره وی، نو پکي دواړې طریقې روا دي.

**تشریح:** د نن په سبق کي پنځه خبرې دي:

①: د مبتداء او خبر د یو ځای ذکر کولو وجه، ②: د مبتداء لغوي او اصطلاحي تعریف او د قیدونو فائدې، ③: پر المجرّد او العوامل سوال او د هغه جواب، ④: د مبتداء د قسم ثاني تعریف، د قیدونو فائدې او مثالونه، ⑤: د صیغه صفت بېلابېل صورتونه او احکام.

## د مبتدأ او خبر دواړو د یو ځای ذکر کولو وجه

**لومړی خبره:** د مبتدأ او خبر دواړو د یو ځای ذکر کولو وجه:

مصنف رحمه الله چي کله د مرفوعاتو د دوهم قسم تعریف او له هغه سره د تړلو مسئلو څخه فارغ سو، نو اوس دریم او څلورم قسم بیانوي، لکه چي وایې: (و منها المبتداء والخبر) یعنی د مرفوعاتو دریم قسم مبتدا او څلورم قسم خبر دی، که چېري د مرفوعاتو پوره بحث ته وکتل سي، نو معلومېږي، چی د کافیه ملاصاحب رحمه الله هر یو قسم بېل، بېل بیان کړی دی، لېکن دغه دواړه یې یو ځای ذکر کړل، نو داسي یې ولې وکړل؟

**جواب:** له دوو وجو یې داسي کړي، یوه دا چی دا دواړه په خپل مینځ کي لازم او ملزوم دي، یعني چیري چي مبتداء وویل سي، نو هلته خبر هرومرو وي او چېري چي خبر وي، هلته مبتداء هم هرومرو وي.

دوهمه وجه داچي دا دواړه په عامل معنوي کي سره شريک دي، يعنی د دواړو عامل معنوي وي، ځکه يې نو دا دواړه يو ځای ذکر کړل.

## د مبتداء تعريف

**دوهمه خبره:** د مبتداء تعريف:

مبتدا د ابتدأ، يبتدأ ابتداءً افتعال له باب څخه د اسم مفعول صيغه ده، په معنی د شروع کړل سوي، او مبتداء چي چېري وي، نو خبره هم له هماغه ځايه شروع سوې وي، ځکه ورته مبتداء ويل کېږي، په دې کي د (خصمٌ) قانون جاري کېږي (مُبَدًّا) هم ويل کېږي.

او د نحويېنو په اصطلاح کي چي د مبتداء کوم تعريف دی، هغه د کافيه ملاصاحب رحمه الله په خپل عبارت کي بيان کړی دی (فالمبتدأ هو الاسم المجرّد عن العوامل اللفظية مسندًا اليه)، يعنی مبتداء هغه اسم (حقيقي، يا تاويلي) دی، کوم چي له عوامل لفظيه څخه خالي وي او مسنداليه وي، يعنی د خبر نسبت د ده وطرفته سوی وي، لکه د اسم حقيقي مثال (زيدٌقَائِمٌ) او د اسم تاويلي مثال (وان تصدقوا خيرلکم ان کنتم تعلمون) دلته (ان) مصدريه پر (تصدقوا) فعل مضارع داخل سوی دی، نو هغه يې په تاويل د مصدر يعني (تصدقکم خيرٌلکم) اړولی دی، مبتداء جوړ سوی دی.

**فائده:** د مبتداء او خبر په عامل کي اختلاف دی، د بصريېنو مذهب خو هماغه دی، کوم چي بيان سو او د مصنف رحمه الله په نزد هم دا مذهب غوره دی، له همدې وجې يې بيان کړ، او د ځيني نحويېنو يعني علامه زمخشري او د ده د متبعينو مذهب دادی، چي د مبتداء عامل خو معنوي وی، يعنی ابتداء ليکن دخبر عامل لفظي وي، يعنی مبتداء پکښي عامل وي.

درېيم مذهب د شيخ رضي او دده د متبعينو دی، دا حضرات وايې، چي مبتدا او خبر دواړه يو په بل کي عمل کوي، نو د دوی په نزد ګواکی چي د دواړو عامل لفظي دی.

د مبتداء په تعريف کي د قيدونو فائدې:

فالمبتداء هوالاسم المجرّد عن العوامل اللفظية مسندًا اليه:

د مبتداء په مذکوره تعریف کي (فالمبتداء) معرّف دی او له (هوالاسم) څخه تر (مسندالیه) پوري دا پوره عبارت د مبتداء تعریف دی، بیا په تعریف کي (هوالاسم) د جنس په درجه کي دی، کوم چي هر قسم اسماؤ ته شامل دی.

(المجرد عن العوامل اللفظية) دا فصل دی، په ذریعه یې هغه اسماء ووتل، په کوم کي چي عوامل لفظیه وي، لکه د افعال ناقصه او حروف مشبه بالفعل اسم او خبر، بلکي ویلای سو، چي له مبتداء او خبر پرته ټول اسماء ووتل.

(المسنداليه) دا دوهم فصل دی، په ذریعه یې د خبر او مبتداء قسم ثاني ووت، ځکه چي مسند وي، نه چي مسندالیه.

**درېیمه خبره:** پر المجرّد او العوامل سوال او جواب یې:

د کافیه ملاصاحب رحمه الله علیه د مبتداء په تعریف کي (هوالاسم المجرّد) ویلي، (المجرد) د جرّد یجرّد تجریدًا د تفعیل له باب څخه د اسم مفعول صیغه ده، په معنی د خالي کړل سوي، یا خالی سوي، نو له دې څخه په څرګنده توګه معلومېږي، چي پر مبتداء اول عوامل لفظیه داخل وو په وروسته کي له هغه څخه خالی کړل سوه.

**جواب:** چي داسي نه ده! له سره لا پرې عوامل لفظیه داخل سوی نه وو، خو د داخلېدو امکان و، نو صرف امکان ته د وجود د درجې ورکولو پر بنسټ یې (المجرّد) ویلي دي، لکه یو څوک چي د څاه کیندونکو ته وایې (ضَیِّقوا فَمَ البئر) یعني خوله یې تنګه جوړه کړئ، حال دا چي تر اوسه پوري کار شروع سوی هم نه دی، لیکن امکان و، نو له شروع څخه لا دغو کېندونکو د څاه خوله تنګه جوړه کړه، نو دغه امکان ته د وجود درجې ورکولو پر بنسټ دوی له مخکي څخه لا په احتیاط څاه کېندل.

دوهم سوال د (العوامل) پر لفظ کېږي، چي دا د جمع صیغه ده، تر کوم لاندي چي لږ تر لږه درې افراد هرومرو وي، نو د دې مطلب داسو، چي د مبتداء له درېو عواملو لفظیه څخه خالي کېدل ضروري دي، یو یا دوه عامله که چېری تر ده مخکي وي، نو خیر دی؟

**جواب:** چي (العوامل) واقعي د جمع صيغه ده، ليکن (الف لام) جنسي پرداخل سوی دی او قاعده ده، چي (الف لام) جنسي د جمع جمعيت ختموي، نو (العوامل) که څه هم په لفظي توګه جمع دی، خو په حقيقت کي جمع نه دی (کما مر بحث الاعراب).

**څلورمه خبره:** د مبتداء د قسم ثاني تعريف، د قيدونو فائدې او مثالونه:

الصفة الواقعة بعد حرف النفی او الف الاستفهام رافعة لظاهر:

په دې عبارت کي د کافيه ملاصاحب رحمة الله عليه د مبتداء د قسم ثاني تعريف کوي، چي هره صيغه د صفت (يعنی اسم فاعل، اسم مفعول، صفت مشبه وغيره) کوم چي تر حرف نفي وروسته، يا تر همزه استفهام وروسته واقع وي، په داسي حال کي چي هغه دغه اسم ظاهر (حقيقي وي که حکمي) رفع هم ورکړي وي، نو دا د مبتداء قسم ثاني جوړيږي، لکه: (ما قائم الزيدان و اقائم الزيدان).

په عبارت کي (رافعة، الواقعة) صيغه داسم فاعل د فاعل له ضمير څخه حال واقع سوې ده، ځکه يې منصوب ويلی دی.

د مبتداء د قسم ثاني په مذکوره تعريف کي لاندي خبرې هم په ذهن کي ونيسئ:

①: له حرف نفي څخه مراد (ما ولا) دواړه دي او له حرف استفهام څخه مراد (همزه، هل، ما او من) دي.

②: د مبتداء د مذکوره قسم ثاني لپاره دا شرط لګول، چي (د صفت صيغه به تر حرف نفي، يا حرف استفهام وروسته واقع وي) دا شرط د مصنف رحمة الله عليه په نزد دی، د امام سيبويه په نزد له دې شرط پرته هم د مبتداء قسم ثاني جوړېدای سي، داسي کول د ده په نزد قبيح او ناخوښه دي، البته د امام اخفش او کوفيينو رحمهم الله په نزد داسي کول صرف دا نه چي جائز دي، بلکي يو ښه عمل دی (وتفصيله يأتی فی شرح الجامی، السنة القادمة ان شاءالله تعالی).

③: (رافعةٌ لاسم ظاهر) له دې څخه معلومېږي، چي اسم ظاهر کوم چي تر صيغه صفت وروسته واقع وي او صيغه صفت هغه ته رفع ورکړي وي، دا اسم ظاهر که حقيقي وي، لکه (ما قائم الزيدان و اقائم الزيدان)، او که حکمي وي، يعني کوم

مرفوع منفصل ضمير تر ده وروسته راغلی وي، لكه د الله جل جلاله مباركه وينا(اراغبٌ انتَ عن آلهتی يا ابراهيم)، نو په دې دواړو صورتونو کې صيغه د صفت راتلونكي اسم ته رفع وركوي، لكه چې له مذكوره دواړو مثالونو څخه واضحه كېږي.

④: (رافعةٌ لاسم ظاهر) له دې څخه دوهمه خبره دا معلومېږي، چې (اقائمان الزيدان او اقائمون الرجال) وغيره په دې کې داخل نه دي، ځكه چې د اسم ظاهر پر ځای په دوی کې دننه مستتر ضمير ته رفع وركوي، كه چېرې څوک شبهه وكړي، چې دلته خو (الزيدان اوالرجال) دواړه مرفوع دي او په ظاهره له صيغه صفت پرته كوم بل رفع وركوونكی عامل هم نه معلومېږي، چې دا دواړه دې له هماغې وجې مرفوع وي؟

د دې جواب دادی، چې دوی ته صيغه صفت رفع نه ده وركړې، ولې كه صيغه صفت دوی ته رفع وركړې، نو دغه (اقائمان او اقائمون) د تثنيه او جمع صيغې نه كېدې، بلكې مفرد كېدې، ځكه موږ په نحومير کې يوه قاعده بيان كړې، چې د فعل يا شبه فعل فاعل كه چېرې اسم ظاهر و، نو فعل هميشه د مفرد په صورت راځي، حال دا چې دلته دواړه د تثنيه او جمع په صورتونو راغلي دي.

⑤: د مبتداء د قسم اول او دوهم تر منځ په دوو طريقو سره فرق:

①: د مبتداء قسم اول پخپله (د عامل معنوي) معمول كېږي، حال دا چې قسم ثاني پخپله عامل وي.

②: د مبتداء قسم اول مسند اليه وي، او قسم ثانی مسند وي.

**پنځمه خبره:** د صيغه صفت بېلابېل صورتونه او احكام:

فان طابقت مفردًا جاز الامران:

كه چېرې صيغه دصفت له وروستنی اسم ظاهر سره په مفرد كېدو کې موافقه وي، يعنی صيغه صفت هم مفرد وي او اسم ظاهر هم مفرد وي، لكه (اقائم زيدٌ)، نو په دې کې دوه رنګه تركيب جائز دی:

①: د صيغه صفت د مبتداء قسم ثاني جوړېدل او اسم ظاهر يې فاعل او د خبر قائم مقام جوړېدل.

②: د صیغه صفت خبرمقدم جوړول او اسم ظاهر یې مبتداء مؤخره جوړېدل.
له دې صورت څخه پرته دوه صورتونه نور هم جوړېدای سي:
①: چي صیغه صفت مفرد وي او اسم ظاهر تثنیه، یا جمع وي، لکه (اقائم الزیدان او اقائم الرجال) وغیره، نو په داسي صورت کي په متعینه ډول صیغه صفت د مبتداء قسم ثاني جوړېږي او اسم ظاهر تثنیه یا جمع یې فاعل جوړېږي، کوم چي د خبر قائم مقام دی.
②: چي صیغه صفت هم تثنیه، یا جمع وي او اسم ظاهر هم تثنیه یا جمع وی، لکه (اقائمان الزیدان او اقائمون الرجال)، نو په داسي صورت کي صیغه صفت خبر مقدم کېږي او اسم ظاهر مبتداء مؤخره جوړېږي.

## نه دېرشم (۳۹) درس

## د څلورم مرفوع (خبر) بیان

والخبر هو المجرّد المسند به المغایر للصفة المذکورة و اصل المبتداء التقدیم و من ثمّ جاز (فی داره زیدٌ) وامتنع (صاحبها فی الدار) و قد یکون المبتداء نکرةً اذا تخصصت بوجهٍ ما، مثل (ولعبدٌ مؤمنٌ خیرٌ من مشرک) و أرجلٌ فی الدار ام امرأةٌ و ما احدٌ خیرٌ منک و شرٌ اهرّ ذا نابٍ و فی الدار رجلٌ و سلامٌ علیک.

**ترجمه:** او خبر هغه اسم دی، چي له عوامل لفظیه څخه خالي وي او په ترکیب کي مسند جوړېږي و د مبتداء د قسم ثاني مخالف وي او د مبتداء لپاره اصل دادی، چي هغه تر خبر مقدمه وي، همدا وجه ده، چي (فی داره زیدٌ) ویل خو جائز دی، لیکن (صاحبها فی الدار) ویل جائز نه دی او مبتداء کله نکره هم وي، په دې شرط چي هغه په یو طریقه سره خاص کړل سوی وي، لکه (ولعبدٌ مؤمنٌ خیرٌ من مشرک) او أرجلٌ فی الدار ام امرأةٌ او ما احدٌ خیرٌ منک او شرٌ اهرّ ذاناب او فی الدار رجلٌ او سلامٌ علیک.

**تشریح:** د نن په سبق کي درې خبرې دي:
①: د خبر تعریف، ②: په تعریف کي د قیدونو فائدې او د مغایرت صورتونه،
③: له مبتداء سره ترلې څو اهمې مسئلې.

## دخبر تعریف

**لومړۍ خبره**: د خبر تعریف:

د خبر تعریف مصنف رحمه الله په ډېرو لنډو الفاظو کړی دی، له کومو سره چې حذف سوی عبارت هم را وګرزول سي، نو تعریف داسي کېږي (الخبر هوالاسم المجرد عن العوامل اللفظية، المسندبه، المغايرللصفة المذكورة بعد حرف النفی او اداة الاستفهام)، يعنی خبر هغه اسم دی، چي له عوامل لفظيه څخه خالي وي او مسند به وي او له دغه صيغه صفت سره مخالف او غير وي، کوم چي تر حرف نفي يا حرف استفهام وروسته واقع وي، لکه په (زيدٌ قائمٌ) وګوره! چي پکي (قائمٌ) خبر دی چي له عوامل لفظيه څخه هم خالي دی او مسندبه هم دی، يعني د ده په ذريعه سره پر مبتداء حکم لګول کېږي او صيغه صفت يعنی د مبتداء د قسم ثانی مخالف هم دی، ځکه چي (زيدٌ) صيغه د صفت هم نه ده او تر حرف نفي او استفهام وروسته هم نه دی واقع سوی.

**دوهمه خبره**: د قيدونو فائدې او د مغايرت بېلابېل صورتونه:

الخبر هوالمجردالمسندبه المغاير للصفة المذكورة:

په مذکوره عبارت کي (الخبر) معرّف دی او (هوالمجرّد...الخ) يې تعريف دی، يا په دې تعريف کي (هو) د جنس په درجه کي دی، کوم چي ټولو اسماؤ ته شامل دی.

**المجرد**: دا لومړی فصل دی، په دې سره د حروف مشبه بالفعل او افعال ناقصه وغيره خبرونه ووتل، ځکه چي هغه له عواملو څخه خالی نه وي، بلکي همدا حروف مشبه بالفعل او افعال ناقصه عمل پکي کړی دی.

**المسندبه**: دا فصل ثاني دی، د دې په ذريعه مبتداء ووته، ځکه هغه مسنداليه وي.

د کتاب مصنف رحمه الله چي (المغايرللصفة المذكورة) وويل، نو په ياد لرئ، چي مغايرت څو صورتونه لري:

لومړی دا چي په دې اعتبار سره د هغه مخالف وي، چي خبر له سره صيغه د صفت نه وي، لكه (زيدٌضربَ).
دوهم دا چي صيغه صفت خو وی، ليكن تر حرف نفي او حرف استفهام وروسته واقع نه وي، لكه (زيدٌ قائمٌ).
درېيم دا چي صيغه صفت هم وی او تر حرف استفهام وروسته هم واقع وي، خو اسم ظاهر ته رفع ورکوونکی نه وي، لكه (اقائمان الزيدان)، كه چيري (الزيدان) دده له وجې مرفوع سي، نو (اقائمان) تثنيه نه پاتېږي، بلكي (مفرد) كېږي (كمامربيانه).

## له مبتداء سره تړلي څو اهمې مسئلې

**درېيمه خبره**: له مبتداء سره تړلي څو اهمې مسئلې:
د مبتداء او خبر تر تعريف وروسته مصنف رحمه الله له دوی دواړو سره متعلق څو اهمې مسئلې او احكامات له (واصل المبتداء التقديم) څخه واخله د دغه بحث تر اخيره پوري بيانوي، مصنف رحمه الله له مبتداء او خبر هر يوه سره متعلق پنځه پنځه اهمې مسئلې بيان كړي دي، كوم چي موږ په عنواناتو سره، نمبرواره راوړي دي او په مينځ كي يې موږ د څه ناڅه ضروري خبرو ذكر كولو كوشش كړی دی (فاليک بها وعضّ عليها بالنواجذ).
له مبتداء سره تړلي لومړی مسئله:
و اصل المبتداء التقديم: لومړی مسئله دا چي د مبتداء اصل صورت دادی، چي دا تر خبر مخكی وي.
د دې يوه وجه داده، چي مبتداء د (موصوف او ذات) په درجه كي وی او خبر د (صفت او حال) په درجه كي وي او دا ښكاره خبره ده، چي ذات تر صفت او حال مخكی وي او موصوف هم تر صفت مخكي وي، نو مبتداء هم پر خبر مخكي كېږي، لكه: په (زيدٌ قائم) كي (زيدٌ) مبتداء ده ، چي مخكي ده او (قائم) خبر دی، چي وروسته دی.
(و من ثمّ جاز فی داره زيدٌ) په دې عبارت كي د كافيه ملاصاحب رحمه الله د يوه سوال جواب كوي، سوال دادی، چي جنابه! تاخودا قاعده بيان كړه، چي مبتداء

پر خبر مخکي وي، حال دا چي په (فی داره زیدٌ) کي (زیدٌ) مبتداء ده او وروسته ده او ظلم پر ظلم خو لا داچي دلته اضمار قبل الذکر هم لازمېږي او بیا هم تا ویلي، چي (ومن ثمّ جاز فی داره زیدٌ) یعني دا جائز دی؟

**جواب:** چي په دې کي مبتداء که څه هم په لفظي توګه وروسته معلومېږي، خو دا د خپلې رتبې په لحاظ مقدمه ده، لهذا له (واصل المبتداء التقدیم) سره څه مخالفت نه راغی، ځکه چي اضمار قبل الذکر هلته نا جائز وي، چېري چي لفظًا او رتبةً دواړه لازم سوی وي، حال دا چي دلته صرف لفظًا لازمېږي او په عمده کي دا جائز دی، ځکه نو موږ ویلي (ومن ثمّ جاز فی داره زیدٌ).

په (وامتنع صاحبها فی الدار) سره د دوهم سوال جواب ورکوي، سوال دادی، چي تاسو د مبتداء د تقدیم قاعده بیان کړه، بیا چي مو کوم مثال راوړ، نو مبتداء مؤخره وه، لیکن بیا هم تاسو (ومن ثم جاز....) ویلي، د جواز حکم مو پر لګولی او دلته چي موږ کله داسي مثال وړاندي کړ، په کوم کي چي مبتداء مقدم او خبر مؤخر دی، نو د دې په اړه تاسو بېله کوم رعایت څخه (وامتنع صاحبها فی الدار) وویل، ناجائز مو ورته وویل؟

جواب داچي جنابه! تاسو بلکل سم وایاست، خو تاسو که لږ غوندي غور وکړئ، نو درته معلومه به سي، چي (صاحبها) مضاف او مضاف الیه مبتداء جوړېږي، لیکن په دې کي چي کوم د (ها) ضمیر دی هغه د (الدار) وطرفته راجع دی، کوم چي خبر دی او د خبر درجه وروسته وي، نو په دې کي اضمار قبل الذکر لفظًا او رتبةً دواړه لازم سو، کوم چي ناجائز دی، ځکه نو موږ وویل، چي (وامتنع صاحبها فی الدار) و لیکن د خبر د ضمیر پر ځای که تاسو کوم بل ضمیر راوړئ، نو هغه بلکل جائز دی، لکه (صاحبک فی الدار).

د مبتداء لپاره دوهمه مسئله:

(وقد یکون المبتداء نکرةً) د مبتداء لپاره دوهمه مسئله بیانوی، چي په مبتداء کی اصل خو دادی، چي معرفه وي، خو کله کله د اصل پرېښودل ، د نکره په صورت راوړل یې هم جائز دی، له همدې وجې مصنف رحمه الله علیه تر (اذا تخصّصت

بوجهٍ ما) لاندي شپږ قسمه مثالونه وړاندي کړي، کوم چي په اصل کي شپږ مثالونه نه، بلکي شپږ مقامات دی، په کومو کي چي مبتداء نکره راوړل سوې ده.

①: التخصیص بالصفة:

**لومړی مقام** د تخصیص بالصفة دی، یعني په کوم اسم نکره کي چي د هغه د صفت په ذریعه څه تخصیص پیداسوی وي، نو د دغه نکره مبتداء جوړېدل جائز دي، لکه د الله جل جلاله مبارکه وینا (و لَعَبْدٌ مؤمنٌ خیرٌ من مشرکٍ) وګوره دلته (عبدٌ) که څه هم نکره دی، خو د (مؤمن) په ذریعه یې صفت بیان سوی، پکي یو قسم تخصیص پیداسوی دی او له معرفه سره یې څه ناڅه مشابهت پیداسوی، ځکه مبتداء راوړل سوی، کوم چي جائز دی.

②: التخصیص بأحدالجنسین:

**دوهم مقام** : د نکره په یوه له دوو جنسینو تخصیص کول دي، د مثال په ډول تاسو ته خو دا معلومه وی، چي په دې کور کي هرومرو یو څوک سته، لیکن دا درته معلوم نه وي، چي نارینه دی، که ښځینه، نو پوښتنه وکړئ، چي (ارجلٌ فی الدار ام امرأةٌ؟)، نو دلته (رجلٌ) او (امرأة) له نکره کېدو سره سره مبتداء جوړ سوي دي، ځکه چي د دوی په ذریعه د یوه جنس تخصیص سوی دی.

③: التخصیص بسبب الوقوع فی حیزالنفی:

(وما احدٌ خیرٌ منک) دلته (احدٌ) اسم نکره دی او له دې سره سره یې مبتداء واقع کېدل صحیح بلل سوي دي، ځکه چي په دې کي هم یو نوع خصوصیت پیداسوی دی، هغه په دې ډول، چي (احدٌ) اسم نکره دی او تر نفي لاندي واقع سوی دی او قاعده ده، چي ترنکره لاندي د عموم فائده ورکوي، نو په مذکوره مثال کي له ټولو افرادو څخه خیریت (غوره والی) نفي سوی چي ای مخاطبه! تر تا غوره هېڅوک هم نسته، نو بهتر کېدل د یوه فرد لپاره ثابت سو، په دې ډول پکي تخصیص پیداسو.

**ترکیب:** (ما) حرف نفی، (احدٌ) مبتداء، (خیرٌ) صیغه داسم تفضیل ده، په دې کې (هو) ضمیر مرفوع متصل یې فاعل، (من) حرف جار، (ک) ضمیر مجرور، جار سره له خپل مجرور متعلق سو تر (خیرٌ) صیغه اسم تفصیل پوري، (خیرٌ) اسم تفضیل سره له خپل متعلق او ضمیر فاعل د مبتداء لپاره خبر سو، مبتداء سره له خپل خبر جمله اسمیه خبریه سوه.

دلته سوال کېدای سي، چي دا مثال له ممثل له سره مطابق نه دی، ځکه خبره د مبتداء ده او مثال تاسو د ماشابه بلیس د اسم ورکړی؟

**جواب:** داچي دا مثال د بنوتمیم له مسلک سره مطابق دی، کوم چي (ما) عامل نه ګڼي، له همدې وجې (احدٌ) دلته مبتداء کېږي، نه چي د ماشابه بلیس اسم سي.

④: التخصیص بصفة محذوفة یا التخصیص بتقدیم ماحقه التأخیر:-

(و شرٌّ اهرّ ذاناب) په دې مثال کي (شرّ) له نکره کېدو سره، سره مبتداء واقع سوی دی، ځکه چي تخصیص یې سوی دی، او د دې دوې طریقي کېدای سي:

①: لومړۍ طریقه دا چي یکي صفت محذوفه ومنل سي، داسي وویل سي (شرٌّ عظیمٌ اهرّ ذاناب)، نو په کومه طریقه چي په صفت مذکوره سره د تخصیص معنا پیدا کېږي، لکه په (و لعبدٌ مؤمنٌ خیر من مشرک) کي چي تېر سول، دا راز په صفت محذوفه سره هم د تخصیص معنا پیدا کېږي.

②: دوهمه طریقه دا ده، چي (شرّ) د (اهرّ) ضمیر فاعل څخه بدل واقع سي، او بدل د فاعل په حکم کي وي او قاعده ده، چي فاعل تر فعل وروسته وي، نو فاعل حکمي هم کوم چي بدل دی تر خپل مبدل منه وروسته وي، لیکن دلته موږ ولیدل، نو فاعل حکمي یعني (شرّ) د (اهرّ) پر ضمیر فاعل مخکي سوی دی او قاعده ده، چي (التقدیم ماحقه التأخیر یفیدالحصر والاختصاص)، نو کله چي د تقدیم په وجه په (شرّ) کي تخصیص راغی، نو له نکره کېدو سره، سره یې مبتداء جوړېدل جائز دي.

⑤: التخصیص بتقدیم الخبر:

په (وفی الدار رجلٌ) سره هم د (التقديم ماحقّه التأخير يفيد الحصر والاختصاص) قاعده بيانوی، ددې او مخکي صورت ترمينځ فرق صرف دادی، چي په مخکني صورت کي د فاعل حکمي په مقدم کيدو تخصيص پيداسوی و، او دلته د خبر په مقدم کولو تخصيص پيداسوی دی، نو کله چي پکي تخصيص راغی، نو (رجلٌ) له نکره کېدو سره سره، مبتداء جوړېدای سي.

⑥: التخصيص بالنسبة الى المتكلم:
(وسلامٌ عليکَ) يعني چيری چي کوم اسم نکره وي، ليکن د متکلم وطرفته د نسبت له وجې پکي تخصيص پيداسوی وي، نو د هغه هم مبتداء جوړېدل جائز دي، لکه په (سلامٌ عليکَ) کي چي دي.
(سلامٌ عليکَ) په اصل کي (سلّمتُ سلامًا عليک) و، (سلامًا) مفعول مطلق د فعل، (سلمت) حذف سوی دی، ځکه د (سلامًا) مفعول مطلق منصوب کېدل دلالت ورباندي کاوه، نو (سلامًا عليک) سو، څرنګه چي دا جمله فعليه وه، کومه چي پر تجدد او حدوث دلالت کوي، ليکن چاته په سلام کولو سره د سلام کوونکي مقصد داوي، چي مخاطب ته زما له لوري د تل لپاره سلامتي ورسېږي او دا مقصد په جمله اسميه سره هم حاصلېدی، نو د (سلامًا) نصب يې په رفع بدل کړ، جمله اسميه يعني (سلامٌ عليک) جوړه سوه والله اعلم بالصواب.

## څلوېښتم (۴۰) درس

## د خبر او له ظرف سره د متعلق بيان

والخبر قد يكون جملةً، مثل: زيدٌ ابوه قائمٌ و زيدٌ قام ابوه، فلا بُدَّ من عائدٍ و قد يُحذف وما وقعَ ظرفًا، فالاكثر علیٰ انه مقدّر بجملة.

**ترجمه:** او خبر کله کله (له خپل اصل څخه اوړي) د جملې په صورت راځي، لکه (زيدٌ ابوه قائم) او (زيدٌ قامَ ابوه) خو په داسي صورت کي په خبر کی دننه د مبتداء طرفته د کوم عائد کېدل ضروري دي او کله کِله دغه عائد (د يو قرينې له

وجې حذف کېږي هم) او هغه خبر، کوم چې د ظرف په حالت کي واقع وي، نو د نحوي د اکثرو علماؤ په نزد د ده لپاره متعلق جمله (فعلیه) راوړل کېږي.

**تشریح:** د نن په سبق کي له خبر سره تړلې یوه مسئله او د هغې په ضمن کي درې خبرې کېږي:

①: له خبر سره تړلې لومړی مسٔله، ②: د فلا بدّ من عائد. وضاحت، ③: د وقد يُحذف وضاحت، ④: د جار و مجرور په متعلق کي اختلاف.

**لومړی خبره:** د خبر په اړه لومړی مسٔله:

والخبر قد يكون جملةً:

په دې عبارت کي مصنف رحمة الله عليه د خبر متعلق یوه مسئله بیانوي، خو تر دې مخکي که چېري یوه ضابطه یاده کړئ، نو کېدای سي ډېره ګټوره سي، هغه دا چي (قَدْ) چی کله پر مضارع داخل سي، نو هلته د دوو خبرو طرفته اشاره کول مقصود وي..:

①: یوه دا چي کومه مسئله او حکم د (ق، تر لفظ وروسته بیان سي، هغه خلاف الاصل او فرع دی، او اصل حکم و مسئله بل شی وي.

②: دوهم داچي دا حکم قلیل الاستعمال وي، او د کثیر الاستعمال کوم بل صورت وي، اوس د مسئلې پوره وضاحت ته غوږ سئ، چي خبر په اصل کي دادی، چي هغه د مفرد په صورت راغلی وي، لیکن په ده کي خلاف الاصل او قلیل الاستعمال صورت هم جائز دی، هغه دا چي د جمله په صورت راسي، هغه که دجمله اسمیه په صورت کي وی، لکه (زيدٌ ابوه قائمٌ) او که د جمله فعلیه په صورت وي، لکه (زيدٌ قامَ ابوهُ)، لیکن د جمله انشائیه په صورت نسي راتلای، ځکه په خبر کي اصل اخبار یعني خبر ورکول وي، او په جمله انشائیه کي اصل انشاء وي او د انشاء او خبر تر مینځ منافات دی (فلايجتمعان ابدًا).

**خوږکی:** د کافیه د ملاصاحب رحمة الله عليه د کمال علم او پر طالبانو د کمال شفقت یوه بېلګه دلته وګورئ چي د کوم عبارت په ذریعه یې کومه قاعده بیان کړې ده، په هغه عبارت کي یې د زیرک طالبانو لپاره د دې قاعدې مثال هم راوړی،

یعنی همدا عبارت مثال هم دی او ممثل له هم، وګوره! (الخبر) مبتداء ده او (قدیکون جملة) پوره جمله فعلیه یې خبر دی او څرنګه چې د کمزوري ذهن لرونکو طالبانو توجه دې طرفته نسوه کېدای، نو د هغوی لپاره یې دوه مثالونه راوړي دي: (زیدٌ قائمٌ ابوهُ او زیدٌ قامَ ابوهُ).

**دوهمه خبره**: د فلابدّ من عائدٍ وضاحت:

کله چې دا خبره جوته سوه، چې خبر د جمله پرصورت راتلای سي، نو په (فلابدّ من عائدٍ) سره د داسي خبر لپاره یو شرط بیانوي، چې په داسي صورت کي په دغه جمله کي د یو داسي ضمېر کېدل ضروري دي، چې د مبتداء وطرفته راجع وي او دا شرط یې ځکه ورسره لګولی، چې جمله من حیث الجملة یو مستقل کلام وي، د دې له خپل ماقبل او مابعد سره هېڅ ربط او تړاو نه وي، لیکن دلته پوره جمله خبر جوړه سوې ده او د مبتدا و خبر ترمینځ ربط و تړاو یو لازمي شی دی، نو د دغه تعلق د پر ځای ساتلو لپاره موږ دا شرط ولګاوه، چې په دې کي یو داسي عائد وي، چې د مبتداء وطرفته راجع وي، لکه په (زیدٌ ابوه قائمٌ) کي د (ابوه) ضمیر د (زیدٌ) مبتداء وطرفته راجع دی (وهکذا فی زیدٌ قامَ ابوه).

①: یا خو به دا عائد د ضمېر په شکل وي، لکه په پورته دواړو مثالونو کی چی تاسو ولیدل.

②: یا به د (الف لام) په شکل وی، لکه په (نعم الرّجل زیدٌ) کي (نعم الرجل) پوره جمله فعلیه خبر مقدم دی او (زیدٌ) مبتداء مؤخره ده، دلته په (الرجل) کي همدا (الف لام) عائد دی د (زیدٌ) وطرفته.

③: کله د اسم ظاهر د ضمېر پر ځای په ښودلو له مبتداء سره ربط کېږي، لکه په (الحاقة مالحاقة) کی (الحاقة) مبتداء ده او (مالحاقة) په اصل کي (الحاقة ماهی) و، دا پوره جمله دده لپاره خبر دی، پر ځای یې (الحاقة) اسم ظاهر ښودل سوی او د مبتداء وطرفته عائد بلل سوی دی.

④: کله کله دا عائد د مبتداء د تفسېر په شکل وي، لکه په (قل هوالله احد) کي (هو) مبتداء مفسّر دی او (الله احد) پوره جمله خبر د ماقبل لپاره تفسېر دی، نو

ګواکي چي دا پوره جمله تفسیریه عائد ده، د مبتداء وطرفته راجع ده، ځکه مفسَر او تفسیر لازم او ملزوم وي (فوُجدالربط والعلاقة بینهما).

په (وقد یُحذف) سره مصنف رحمة الله علیه را ښیي، چي خبر کله جمله وي، نو اصل خو دادي، چي پکي کوم عائد وي، چي د مبتداء وطرفته راجع وي، لیکن چیري چي کومه قرینه وي، نو د دغه عائد حذفول هم جائز دي، لکه (السمن منوان بدرهم) په اصل کي (السمن منوان منه بدرهم) و او (البرّ الکرّ بستین درهمًا) په اصل کي (البرّ الکرّ منه بستین درهمًا) و، دلته دواړه ځایونه (منه) عائد ځکه حذف کړل سوی چي پلورونکي کله د غوړیو او غنمو د پلورلو اواز کوي، نو ورسره د قیمت نعره هم کوي، نو ښکاره خبره د ه، چي قیمت د دغو غنمو او غوړیو ښودل سوی دی، نو کله چي قرینه حالیه او مقالیه پر عائد دلالت کاوه، نو عائد (منه) یې له هندې وجې حذف کړ.

### د جار ومجرور متعلق او په هکله یې اختلاف

**څلورمه خبره:** د جار ومجرور متعلق او په هکله یې اختلاف:

(و ما وقع ظرفًا، فالاکثر علی انه مقدّر بجملة) په دې عبارت کي دا مسئله بیانوي، چي که چیري خبر د جار ومجرور په شکل وي، یا د جمله ظرفیه په شکل وي، (هغه که د ظرف مکان په شکل وي، یا د زمان)، نو په دې دریو صورتونو کي د خبر متعلّق کېدل ضروري دي او هغه متعلّق به یا جمله (فعلیه) وي، یا به مفرد (یعني د مشتق) په صورت وي.

**د بصریینو مذهب:**

د بصریینو او د نحوي د اکثرو علماؤ مذهب دادی، چي متعلق هماغه محذوف فعل را ایستل کېږي، بیا هغه فعل سره له خپل فاعل پوره جمله جوړېږي.

د دوی دلیل دادی، چي د ظرف کوم متعلق وي، په حقیقت کي هماغه په دغه جار ومجرور او ظرف کي عامل وي او په عواملو کي فعل یو قوي قسم عامل دی، نو ځکه هماغه محذوف فعل را ایستل کېږي، لکه په (زیدٌ خلفکَ) کي (زیدٌ) مبتداء ده او (خلفکَ) ظرف مکان متعلّق کېږي تر (استقرّ، یا ثبتَ) فعل پوري،

(استقرّ، یا ثبتَ) فعل سره له خپل فاعل جمله فعلیه خبریه خبر جوړیږي د (زیدٌ) مبتداء لپاره، (زیدٌ) مبتداء سره له خپل خبر جمله اسمیه خبریه کیږي (و هکذا زیدٌ فی الدّار).

اوس د دې دواړو لپاره د عبارت تقدیر داسي کیږي: (زیدٌ استقرّ خلفکَ و زیدٌ استقرّ فی الدّارِ).

**د کوفیینو مذهب:**

د کوفیینو او ځیني نورو نحوي علماؤ مذهب دادی، چي د خبر لپاره متعلق مفرد، یعني له اسماء مشتقه وو څخه را ایستل کیږي.

د دوی دلیل دادی، چي ظرف او جارو ومجرو کوم چی متعلق جوړیږي، دا په اصل کي د خبر پر ځای واقع دي او د خبر لپاره اصل دادی، چي هغه به مفرد وي او مفرد په هغه صورت کي کېدای سي، چي د ده لپاره متعلق شبه فعل یعني له اسماء مشتقه وو څخه کوم یو را وایستل سي، لکه جي د مخکي دواړو مثالونو تقدیر داسي کیږي: (زیدٌ مستقرٌّ خلفکَ و زیدٌ مستقِرٌّ فی الدّارِ).

### ظرف لغو او ظرف مستقر

**ظرف لغو او ظرف مستقر:**

د ظرف متعلق هغه که فعل وی، یا اسم (علیٰ اختلاف القولین) که چیري مذکور و، نو ورته ظرف لغو ویل کیږي، ځکه چي کله د ظرف تعلق له مخکني عامل مذکور سره وي، نو اوس عمل هماغه مذکور عامل کوي او ظرف له عمل کولو څخه لغوه او بېکاره کیږي.

او که چیري مذکور نه وي، نو ورته ظرف مستقر ویل کیږي، ځکه چی د ده متعلق هغه که اسم وی، یا فعل هغه چی کله حذف سي، نو د عامل ضمېر د ظرف و طرفته

منتقل کېږي او په ده کي استقرار پاتېږي، نو د دغه استقرار پاتې کېدو په وجه ورته ظرف مستقر ویل کېږي.

## یو څلوېښتم (۴۱) درس

## د مبتداء د تقدیم (مخکي کېدو) بیان

و اذا کان المبتدأ مشتملًا علیٰ ماله صدرالکلام، مثل: من ابوک؟ او کانا معرفتین، او متساویین، نحو: افضل منک افضل منی، او کان الخبر فعلًا له، مثل: زیدٌ قَامَ، وجبَ تقدیمه.

**ترجمه:** کله چي مبتدا پر یو داسي معنا مشتمله وي، د کومې لپاره چي د کلام صدارت واجب وي، لکه: (من ابوک)، یا مبتداء او خبر دواړه معرفه وي، یا دواړه په تخصیص کي سره برابر وي، لکه (افضل منک افضل منی)، یا خبر د (مبتداء) فعل وي، لکه (زیدٌ قَامَ)، نو په داسي وخت کي د مبتداء پر خبر مخکي کول واجب دي.

**تشریح:** د نن په سبق کي له مبتداء سره د تړلې درېیمې مسئله او د هغه څلور مقامات بیانېږي:

له مبتداء سره تړلې درېیمه مسئله:

له مبتداء سره متعلق لومړۍ مسئله تېره سوه، چي (اصل المبتدأ التقدیم)، هغه جوازي مسئله وه، یعني د مبتداء پر خبل اصل پرېښودل هم جائز و، او د اصل پرېښودل، د خبر مخکي کول هم جائز وه، اوس تر جواز ووروسته داسي څلور اصول او مقامات بیانېږي، چېري چي د مبتداء مخکي کول واجب دي.

### د مبتداء د تقدیم لومړی مقام

(اذا کان المبتداء مشتملًا علیٰ ماله صدرالکلام) یعنی مبتداء داسي کلمه وي، چي د کلام صدارت (په پیل کي راتلل) غواړي، (من ابوک) دلته د مبتداء مخکي کېدل ځکه واجب دي، چي که چېري مخکي نسي، نو (مَنْ) کوم چي د کلام صدارت غواړي، هغه صدارت یې ختم کېږي.

دا د امام سیبویه او دده د متبعینو مذهب دی، د ځینې نورو نحوي علماؤ په نزد (مَنْ) استفهامیه خبر مقدم دی او (ابوک) مبتداء مؤخره ده، ځکه چی (مَنْ) حرف استفهام دی او د ده په هکله لړ مخکې مصنف رحمه الله ویلي، چي (و اذا تضمن الخبر المفرد ما له صدرالکلام)، تر دې لاندې ناکت صاحب لیکي: چې (کالاستفهام) او بیا مخکې مصنف رحمه الله ویلي دي (وجب تقدیمه)، نو دلته هم (مَن) خبر مقدم دی، کوم چې په وجوبي توګه مقدم سوی دی.

**فائده** ①: شپږ شیان داسي دي، چي د کلام صدارت غواړي: شرط، قسم، تعجب، استفهام، نفي او لام ابتدائیه، کوم چی یوه شاعر په خپل شعر کي یو ځای کړي دي:

شش چیز بود مقتضی صدر کلام * در طبع فصیحان شده این نظم تمام
شرط، و قسم، و تعجب، و استفهام * نفی آمد ابتداء گشت تمام

او د ځینې حضراتو په نزد تمنی او ترجی هم له دوی سره شامل دي، نو د دوی په نزد ټول اته شیان کېږي.

**فائده** ②: د استفهام مثال خو مصنف رحمه الله لیکلی دی، د نورو مثالونو هم اتمامًا للفائدة ملاحظه وکړئ، مثلاً د شرط مثال (من یکرمنی فانا اکرمه)، د قسم مثال (لعمرک انهم لفی سکرتهم یعمهون)، د تعجب مثال (ما احسن زیدًا)، د نفي مثال (لازید فی الدار ولا عمروٌ)، او د لام ابتداء مثال (لزیدٌ منطلقٌ).

دوهم ځای:

**او کانا معرفتین**: د مبتداء دمخکي کېدو دوهم ځای دادی، چی مبتداء او خبر دواړه معرفه وي، د مبتدأ پر تعیېن کومه قرینه هم نه وی، لکه (الله خالقنا و رازقنا) او (القرآن کتابنا) وغیره.

په داسي ځای کي که چېري مبتداء مخکی نسي، نو د مبتداء او خبر تر مینځ التباس راځي او دا نه معلومېږي، چی کوم اسم مبتداء او کوم خبر دی، نو دا اصول وښودل سول، چي په دوی کي کوم یو مخکي وي، هغه مبتداء جوړېږي.

خو چېرې چې کومه قرینه موجوده وي، لکه چې یو څوک ووایې: (ابو یوسف ابوحنیفة)، نو په داسې ځای کې د خبر مخکې کېدل هم جائز دي، ځکه قرینه موجوده ده، چې دلته تشبیه ورکول سوې ده او تشبیه همېشه د ادنیٰ له اعلیٰ سره کېږي، نه چې د دې پر عکس وي، نو د (ابویوسف ابوحنیفه) معنی دا کېږي: چې امام ابویوسف رحمه الله په علم او عمل کې د امام ابوحنیفه رحمه الله په څېر دی، لېکن د دې پر عکس نسي کېدای.

**درېیم مقام:**

او متساویین: درېیم ځای دادی، چې چېرې مبتداء او خبر دواړه نکره مخصوصه وي او د تخصیص په مقدار کې هم دواړه بلکل سره برابر وي، نو هلته هم د التباس له وېرې لومړی مبتداء جوړېږي، لکه (افضل منک افضل منی) وګورئ دلته دواړه ځایونه (افضل) صیغه د اسم تفضېل نکره ده او بیا د دواړو تخصېص د (مِن) په ذرېعه د ضمائر طرفته برابر سوی دی، نو دلته هم لومړی مبتداء جوړېږي.

**څلورم مقام:**

او کان الخبر فعلًا له: څلورم ځای دادی، چې خبر جمله فعلیه وي، لکه (زَیدٌ قَامَ) او (عمرٌو کتبَ)، دلته که چېرې مبتداء مخکې نسي، نو التباس لازمېږي، چې (زید او عمروٌ) مبتداء دي، که د (قَامَ او کتبَ) لپاره فاعل دي.

## دوه څلوېښتم (۴۲) درس
## دخبر د تقدیم او تعدد بیان

و اذا تضمن الخبر المفرد ماله صدرالکلام مثل این زیدٌ؟ او کان مصحّحًا له، مثل: فی الدار رجلٌ او لمتعلّقه ضمیرٌ فی المبتداء مثل: علی التمرة مثلها زبدًا، او کان

خبرًا عن (أنّ)، مثل: عندی أنّکَ قائمٌ، وجبَ تقدیمه و قد یتعدّد الخبر، مثل : زیدٌ عالمٌ عاقلٌ.

**ترجمه**: او کله چي مفرد خبر داسي کلمې ته متضمن وي، کومې ته چي د کلام صدارت حاصل وي، لکه (این زیدٌ؟)، یا هغه د خبر تصحیح کوونکي وي، لکه (فی الدار رجلٌ)، یا د ده دمتعلق لپاره په مبتداء کي کوم ضمیر راغلی وي، لکه (علی التمرة مثلها زبدًا)، یا هغه د (أنّ) له اسم او خبر څخه جوړ سوی وي، لکه (عندی أنّکَ قائمٌ) نو په دې څلورو ځایونو کي د خبر پر مبتداء مخکي کول واجب دي او کله کله د یوې مبتداء څو خبرونه هم راځي، لکه (زیدٌ عالمٌ عاقلٌ).

**تشریح**: د نن په سبق کي صرف دوې خبرې دي:

①: د خبر په اړه درېیمه مسئله یعنی د خبر تقدیم، ②: د خبر په اړه څلورمه مسئله یعنی د خبر تعدد (شمېر).

لومړی خبره: د خبر په اړه دوهمه مسئله (د خبر مخکي کېدل):

د خبر متعلق خو اصل خبره داده، چي هغه تر مبتداء وروسته راغلی وي، لېکن کله، کله د یو عارض له وجې مخکي کېږي، د کوم په وجه چي خبر مخکي راوړل کېږي، داسي ځایونه ټوټل څلور دي:

## د خبر د مخکي کېدو لومړی مقام

د خبر د مخکي کېدو لومړی مقام:

و اذا تضمن الخبر المفرد ماله صدرالکلام یعني خبر د داسي مفرد په صورت وي، چي د کلام صدارت غواړي، لکه حروف استفهام، مثلا (این زیدٌ؟)، نو په داسي حال کي د خبر مقدم کول واجب دي، که یې مخکی نکړي، نو د حروف استفهام (کوم چی د کلام صدارت غواړي) د هغوی صدارت له مینځه ځي.

دلته مصنف رحمه الله علیه (الخبر) په (المفرد) مقید کړی دی، دا ځکه چی که چېري خبر د جمله استفهامیه په شکل وي، نو هلته خبر نه مخکي کېږي، بلکی صرف حرف استفهام پر خپل مدخول مخکي کېږي، لکه (زیدٌ منْ ابوه؟).

**دوهم مقام**:

او کان مصححًا له: د خبر د تقدیم دوهم ځای دادی، چې چېرې د خبر مقدم کېدل پخپله د مبتداء لپاره تصحیح کوونکی وي او له کبله یې د مبتداء صحیح کېدل معلومېږي، مطلب دا چې پر کوم ځای د (تقدیم ماحقه التأخیر) په وجه نکره مبتداء سوی وي، هلته که چېرې خبر مقدم نکړل سي، نو (تقدیم ماحقه التأخیر) ختمېږي او د تقدیم ماحقه التأخیر د ختم کېدو په وجه په نکره کې پیدا سوی تخصیص ختمېږي او د هغه په وجه دده مبتداء کېدل هم ختمېږي، نو دا خبره لازمي وګڼل سوه، چې په داسې ځای کې خبر مقدم کول واجب دي، لکه (فی الدار رجلٌ).

خلاصه دا چې چیرې د (تقدیم ماحقه التأخیر) په وجه خبر مقدم سوی وي، د هغه پر خپل حال پرېښودل واجب دي، که نه نو مذکوره خرابي لازمېږي.

**درېیم مقام:**

او لمتعلقه ضمیرٌ فی المبتداء: درېیم ځای چېرې چې د خبر مقدم کول واجب دي، هغه دا چې به مبتداء کې د خبر د متعلق لپاره کوم ضمېر راغلی وي، لکه (علی التمرة مثلها زبدًا)، لومړی د دې ترکیب ته غوږ سئ:

(علی ا لتمرة مثلها زبدًا) (علی التمرة) جار مجرور متعلق دي تر (کائنٌ، یا حاصلٌ) پوري، (حاصلٌ) صیغه د اسم فاعل سره له خپل فاعل او متعلق شبه جمله، خبر مقدم جوړېږي، (مثلُ) مضاف (ها) ضمېر کوم چې (التمرة) ته راجع دیٰ دا مضاف الیه، مضاف سره له مضاف الیه ممیّز (زیدٌ) تمیېز، ممیز سره له تمیېزه مبتداء مؤخره، خبر مقدم سره له مبتداء مؤخرې جمله اسمیه خبریه سوه.

وګورئ! (مثلها زبدًا) دلته مبتداء مؤخره ده، په دې کې د (ها) ضمېر مرجع (تمرة) ده، کوم چې له (علیٰ) حرف جر سره متعلق تر (حاصلٌ) پوري خبر جوړېږي.

دلته که چېرې خبر مقدم نه کړل سي، او داسې وویل سي (مثلها زبدًا علی التمرة)، نو په (مثلها) کې اضمار قبل الذکر لفظًا او رتبةً دواړه لازمېږي، کوم چې ناجائز دی، ځکه نو دلته هم لازمي وبلل سوه، چې د خبر مقدم کول واجب دي.

**څلورم مقام:**

او کان خبرًا عن أنَّ: څلورم ځای دادی چي خبر د داسي مبتدا‌ء وي، کومه چي د (أَنَّ) له اسم او خبر څخه جوړه سوې وي، لکه (عندی أَنَّکَ قائمٌ) دلته (عندی) مضاف سره له مضاف الیه خبر مقدم دی، (أَنَّ) حرف دی له حروف مشبه بالفعل څخه، (ک) ضمیر یې اسم او (قائم) یې خبر، (أَنَّ) حرف له حروف مشبه بالفعل سره له خپل اسم او خبر په تاویل د مفرد مبتدا‌ء مؤخره، خبر مقدم سره له مبتدا‌ء مؤخر جمله اسمیه خبریه جوړیږي.

**وګورئ!** دلته (عندی) د داسي مبتدا‌ء خبر دی، کوم چی د (أَنَّ) له اسم او خبر څخه جوړه سوې ده، په داسي ځای کي د خبر مقدم کول ځکه ضروري دي، چي که مقدم نه کړل سي، نو د عبارت تقدیر داسي کیږي (أَنَّکَ قائِمٌ عندی) په دې کی یوه خرابي خو دا لازمیږي، چي (أَنَّ) په (اِنَّ) بدلیدل لازمیږي، ځکه د کلام په ابتداء کي (اِنَّ) راځي، نه چی (أَنَّ)، دوهمه خرابي دا لازمیږي، چي د خفیف کلام ثقیل کیدل لازمیږي، ځکه چی د (أَنَّ) په نسبت (اِنَّ) ثقیل وي.

دریمه معنوي خرابی دا لازمیږي، چي د (أَنَّ) په صورت کي د ده په معنا کی تعمیم وي، ځکه چي د (عندی أَنَّک قائم) معنی داسي ده: ماته ستا ولاړیدل معلوم دي (هغه چي چیري هم ولاړ وي) او د (اِنَّک قائمٌ عندی) معنا داسي کیږي: په یقیني ډول ته له ما سره ولاړ یې، وګوره د عموم معنی په خصوصیت واوښته.

**دوهمه خبره:** د خبر متعلق دریمه مسئله (د خبر تعدد):

(وقد یتعدّدالخبر) په دې عبارت کي د مبتدا او خبر دواړو متعلق یوه مشترکه مسئله بیانیږي، هغه دا چي د یوې مبتداء لپاره څو خبرونه راوړل کیدای سي، لکه د الله جل جلاله مبارکه وینا (الرحمـــن، علم القرآن، خلق الانسان، علمه البیان) وګوره! دلته مبتداء یوه ده او خبرونه درې راوړل سوي دي او مصنف رحمه الله د دې لپاره مثال بیان کړی دی (زیدٌ عالمٌ عاقلٌ).

د یوې مبتداء لپاره د څو خبرونو د جائز کیدو وجه داده، چی مبتداء د ذات په درجه کي وي او خبر د صفت په درجه کي وي او دا ښکاره خبره ده، چي د یوه ذات څو صفات کیدای سي.

## دري څلوېښتم (۴۳) درس

## پر خبر د فاء د داخلېدو جواز او عدم جواز

و قد يتضمن المبتداء معنى الشّرط فيصح دخول الفاء فى الخبر، و ذالک الاسم الموصول بفعلٍ او ظرفٍ او النكرة الموصوفة بهما، مثل الذى يأتينى او فى الدار فله درهمٌ و كل رجل يأتينى او فى الدار فله درهمٌ و (ليت ولعلّ) مانعان بالاتفاق، والحق بعضهم (انَّ) بهما.

**ترجمه:** او ډېرى وختونه مبتداء د شرط معنى ته متضمن وي، نو جائز کېږي دڅ پر خبر د (فا) داخلېدل او هغه دا چي مبتداء داسي موصول وى، چي په صله کې یې کوم فعل وي، یا اسم ظرف وي، یا هغه مبتداء داسي اسم نکره وي، کوم چي په هغو دواړو (فعل او ظرف) سره موصوف وي، لکه (الذى يأتينى او فى الدار فله درهمٌ و كل رجل يأتينى او فى الدار فله درهمٌ) او پر خبر د (فاء) له داخلېدو څخه منع کوونکې دی (ليت او لعلّ) په اتفاق د علماء نحوي او ځيني علماء نحو (امام سېبويه) له هغو دواړو سره (انّ) هم يو ځای کړی دی.

**تشريح:** د نن په سبق کي هم صرف دوې خبرې دي:

①: پر خبر د فاء د داخلېدو څلور ځايونه، ②: پر خبر د فاء د داخلېدو د عدم جواز دوه ځايونه، له دوو خبرو څخه د خبر متعلق په پنځو مسئلو سره تعبېر سوی دی.

د خبر متعلق څلورمه مسئله:

**ويل سوي دي:** چي کله مبتداء د شرط معنىٰ ته متضمن وي، يعني مبتداء د شرط او سبب په درجه کي وي او خبر د مشروط او مسبب په درجه کي وی، نو څرنګه چي پر جزاء (فاء) داخلېږی، نو دا راز پر خبر هم له جزاء سره د مشابهت په وجه د (فاء) داخلېدل جائز سو.

د کافيه ملاصاحب رحمة الله عليه د ابتداء لپاره دوه صورتونه جوړ کړيدي، بيا يې په دوی کي د هريوه لپاره دوه دوه صورتونه جوړ کړي دي، نو هغه صورتونه چيري چي پر خبر (فاء) راوړل جائزدي ټوټل څلور صورتونه دي.

ابتداءً دوه صورتونه دادي، چي هغه مبتداء یا خو د اسم موصول په شکل وي، یا د اسم نکره موصوفه په شکل وي.

د اسم موصول په شکل چي وي، نو د هغه هم دوه صورتونه جوړیږي، لومړی صورت دادی، چي (وذالک الاسم الموصول بفعلٍ) یعني مبتداء اسم موصول وي او تر دې وروسته صله د جمله فعلیه په شکل وي، لکه (الذی یأتینی فله درهمٌ).

دوهم صورت دادی، چي مبتداء د اسم موصول په شکل وي او د ده صله ظرف وي، لکه: (الذی فی الدار فله درهمٌ).

او چي د اسم نکره موصوفه په شکل وي، نو د ده هم دوه صورتونه جوړیږي، د دې لپاره مصنف رحمة الله علیه په (اوالنکرة الموصوفة بهما) عبارت راوړلو اشاره کړې ده.

لومړی صورت دا جوړیږي، چي مبتداء اسم نکره موصوفه او صفت د جمله فعلیه په صورت وي، لکه (کل رجل یأتینی فله درهمٌ).

او دوهم صورت دای، چی مبتداء د اسم نکره موصوفه په شکل وي او صفت د اسم ظرف په شکل وي، لکه (کل رجل فی الدار فله درهمٌ).

نو دا هغه څلور صورتونه دي، چیری چي د مبتداء پر خبر (فاء) راوړل جائز دي.

دوهمه خبره د فاء د داخلېدو موانع:

(و لیت و لعلّ مانعان بالاتفاق) مصنف رحمة الله علیه د فاء د داخلېدو موانع بیانوي، وایي: که چیري داسي مبتداء وي، چي پر خبر یې (فاء) راغلي وي، کله چي له (لیت او لعلّ) څخه کوم یو پر داخل سي، نو بیا پر دغه خبر د فاء داخلېدل منع دي، وجه یې داده، چي مبتداء او خبر جمله خبریه جوړیږي او شرط و جزاء هم جمله خبریه جوړیږي، نو د دوی دواړو تر مینځ دا مشابهت پیداکېږي، نو کله چي پر شرط (فاء) داخله وي، نو پر خبر هم داخلیږي، لیکن کله چي پر دغه خبر له (لیت او لعلّ) څخه یو داخل سي، نو دا جمله انشائیه جوړیږي، د کومې چي له شرط سره هېڅ مشابهت نه پاتېږي، ځکه شرط او جزاء د شرط جمله خبریه جوړیږي او

د (لیت و لعلّ) مدخول جمله انشائیه وي، نو (فاء) پر داخلیدل هم منع دي، لکه (لعلّ الذی فی الدار له درهمٌ) او (لیت الذی فی الدار فله درهم).

**فائده:** افعال ناقصه او افعال قلوب هم پر خبر د (فاء) له دخول څخه بالاتفاق مانع دي، لیکن مصنف رحمه الله علیه صرف (لیت او لعلّ) ذکر کړي دي، وجه یې داده، چي افعال قلوب او افعال ناقصه خو ټوټل بالاتفاق مانع دي او مانع کېدل یې مشهور دي او کوم شی چي مشهور وي، د هغه ذکر کولو ته اړتیا نه پاتېږي، ځکه یې نو دلته هم ذکر نکړل.

پاتې سو (لیت او لعلّ) کوم چي له حروف مشبه بالفعل څخه دي، نو حروف مشبه بالفعل ټول مانع نه دي، بلکي له دوی څخه په (لیت او لعل) کي خو د علماء نحو اتفاق دی، د کوم طرفته چي د کتاب مصنف رحمه الله علیه په (ولیت ولعلّ مانعان بالاتفاق) سره اشاره کړې ده.

او د (اِنّ) په هکله اختلاف دی، د ځینو په نزد دا هم د (لیت او لعلّ) په څېر مانع ده، د کوم طرفته چی مصنف رحمه الله علیه په (والحق بعضهم انّ بهما) سره اشاره کړې ده، ځیني علماء نحو مثلا (امام سیبویه او دده متبعین (اِنّ) هم له (لیت او لعلّ) سره شامله کړې او مانع یې ګڼلې ده، لیکن سمه خبره داده، چي دا مانع نه ده، ځکه په قرآنکریم کي (چي افصح الکتب) دی د ده پر خبر (فاء) داخله سوې ده، لکه د الله جل جلاله په مبارکه وینا (انّ الذین فتنوا المؤمنین والمؤمنات ثم لم یتوبوا فلهم عذاب جهنم) کي پر (فلهم) فاء داخله ده او دوهم ځای د الله جل جلاله په وینا (اِنّ الذین کفروا وماتوا وهم کفار فلن یقبل من أحدهم ملء الارض ذهبًا) کي پر (فلن یقبل) فاء داخله ده.

دا راز د (أنّ او لکنّ) پر خبرونو هم (فاء) داخلېږي، لکه چي د الله جل جلاله وینا ده (واعلموا انما غنمتم من شئ فان لله خُمُسه) او یو شاعر وایي:

فوالله ما فارقتکم قالیًا لکم * و لکنّ ما یُقضیٰ فسوف یکون

په دې کي وګورئ! پر (فسوف یکون) فاء داخله سوې ده، نو دا خبره متعین سوه، د دخول الفاء علی الخبر لپاره مانع صرف (لیت او لعلّ) دي، ځکه یې نو دوی ذکر کړل او افعال ناقصه او افعال قلوب یې پرېښودل.

## څلور څلوېښتم (۴۴) درس
## د مبتداء او خبر د حذف بیان

و قد يحذف المبتداء لقيام قرينة جوازًا، كقول المستهلّ: الهلال واللّه، والخبر جوازًا، مثل: خرجتُ فاذالسبع، و وجوبًا فيما التزم فى موضعه غيره، مثل: لولا زيدٌ لكان كذا، ومثل: ضربى زيدًا قائمًا وكل رجلٍ وضيعته، ولعمرك لأفعلنَّ كذا.

**ترجمه:** او كله كله مبتداء د كومې قرينه له وجې حذف كېږي، لكه د سپوږمۍ د ليدونكي ويل: الهلال والله او دا راز كله كله خبر هم په جوازي ډول حذف كېږي، لكه (خرجتُ فاذا السبع) او په داسي ځای کی، چيري چي له ده پرته كوم بل شی راغلی وي، نو هلته خبر په وجوبي توګه حذف كېږي، لكه (لولا زيدٌ لكان كذا و مثل: ضربى زيدًا قائمًا و كل رجلٍ وضيعته، ولعمرلافعلنّ كذا).

**تشريح:** تر دې ځايه پوري خو د مبتداء او خبر هغه حكمونه او مسائل ذكر سوه، كومو چي له ذكر كېدو سره تړاو درلود، اوس مصنف رحمه الله هغه حكمونه او مسئلې بيانوي، په كومو كی چی مبتداء او خبر ذكر سوي نه وي، بلكي حذف سوي وي، نو په پورتني عبارت كي مصنف رحمه الله دري مسئلې بيان كړئ دي:
①: د مبتداء متعلق پنځمه مسئله: د مبتداء حذف جوازًا، ②: له خبر سره تړلې څلورمه مسئله: د خبر حذف جوازًا، ③: له خبر سره تړلې پنځمه مسئله: د خبر حذف جوبًا.

**لومړۍ خبره:** د مبتداء متعلق پنځمه مسئله: د مبتداء په جوازي ډول حذفول:
څرنګه چی مخكي هم دا خبره تېره سوه، چی (قد) چی كله پر مضارع داخل سي، نو دا خبره ځيني معلومېږي، چی اوس چي كومه مسئله بيانېږي، دا اصل نه ده، بلكی خلاف الاصل ده، فقط يې بيان د جواز لپاره ذكر كېږي.
نو د كافيه د ملاصاحب رحمه الله د عبارت (و قد يحذف المبتداء لقيام قرينة جوازًا) مطلب هم همدا دی، چي كله كله د خلاف الاصل په طريقه مبتداء حذف كېږي، په دې شرط چي پر حذف كېدو يې كومه قرينه وي، مثلاً د مياشتې د ليدلو لپاره خلګ په ډېر جوش او غورړا ټول سوې وي، نو په دوې كي يو ناڅاپه مياشت

وويني، نو په داسي ځای کي ليدونکی په ډېر زوراو شور صرف دا ووايي: (الهلال والله) دا په اصل کي (هذا الهلال والله) و، يعنی وګورئ! هغه مياشت په نظر راغله.

دلته د مبتداء پر حذف کېدو قرينه حاليه سته، ځکه چي د خلګو د مياشتي طرفته کتل او د هغې طرفته د سرونو پورته کول پخپله د مياشتي وطرفته پر اشاره کولو دلالت کوي، نو ځکه تر دې مخکي د اسم اشاره (يعنی مبتداء) په لفظ کي د ذکر کولو ضرورت پاتي نه سو، ځکه اسم اشاره د مخاطب د مشاراليه وطرفته د توجه کولو لپاره راځي او دلته خلګ له مخکي لا متوجه دي.

**دوهمه خبره**: له خبر سره تړلې پنځمه مسئله (د خبر په جوازي ډول حذفول):

(والخبر جوازًا) د خبر په اړه پنځمه مسئله بيانېږي، چي کله کله خبر هم په جوازي ډول حذف کېږي، په دې شرطو چي د خبر قائمقام کوم بل شی نه وي، که داسي نه وي، نو په داسي صورت کي يې حذفول واجب دي (کما سيأتی قريبًا)، لکه (خرجتُ فاذا السبع)، دلته (السبع) مبتداء او (واقفٌ) خبر يې حذف سوی دی.

قرينه دلته داده، چي (اذا) مفاجاتيه پر پوره جمله اسميه داخلېږي، حال دا چي دلته پر جمله نه بلکي صرف پر اسم مفرد داخل سوی دی، نو معلومه سوه، چي دلته د ده خبر محذوف دی، نو ګواکی چی قرينه دلته د (اذا) مفاجاتيه (ناڅاپي) قاعده ده.

### د خبر په اړه شپږمه مسئله (په وجوبي ډول حذفول)

**درېيمه خبره**: د خبر په اړه شپږمه مسئله (په وجوبي ډول حذفول):

(و وجوبًا فيما التزم فی موضعه غيره) د خبر په اړه شپږمه مسئله بيانېږي، چي خبر په څلورو ځايونو کي په وجوبي ډول حذف کېږي:

د وجوبي حذف لومړی مقام:

لولا زيدٌ لکان کذا: يعنی د هغه مبتداء خبر حذفول واجب دی، کومه مبتداء چی تر (لولا) وروسته راغلې وي، لکه (لولا زيدٌ لکان کذا) دلته (موجودٌ) خبر دی، کوم چي حذف سوی دی او (لکان کذا يا لهلک عمر) يعنی جواب (لولا) يې پر ځای درېدلی دی.

قرینه دلته د (لولا) قاعده ده، یعني څرنګه چي موږ په نحومیر کي ویلې وه، چي (لولا) د انتفاء ثاني لپاره راځي په وجه د وجود د اول.
دلته وګورئ! د عمر هلاکت منتفي دی، یعني هغه هلاک نسو د زید د موجود کېدو په برکت سره، نو ګواکي چي (لولا) پخپله او د عمر نه هلاکېدلو د زید پر موجود کېدو دلالت کړی دی او دوهمه خبره دا هم ده، چي دلته د خبر قائم مقام **یعني د (لولا) جواب هم موجود دی.**

**فائده**: دا قاعده صرف د هغه خبر لپاره ده، کوم چي له افعال عامه (یعني کون، وجود، ثبوت، حصول، استقرار او تلبث) څخه کوم یو وي، که له هغو پرته له نورو افعالو څخه وي، نو هغه نه حذف کېږي، لکه چي په حدیث شریف کي رسول الله ﷺ عائشه صدیقه ﵂ ته وویل: (لولا قومک حدیثو عهد بالاسلام لأسّست الکعبة علیٰ قواعد ابراهیم ﵇).
دا راز د امام شافعي ﷫ اشعار هم دي:

ولو خشیة الرحمــــن عندی * جعلت الناس کلهم عبید
ولولا الشعر بالعلماء یزری * لکنت الیوم اشعر من لبید

**وګوره!** په حدیث شریف کي تر (لولا قومک) وروسته (حدیثو عهد بالاسلام) او په شعر کي (یزری او بعدی) درې سره ځایونه خبر جوړسوي دي او درې سره ځایونه د (لولا) په جواب کي واقع سوي دي، لیکن له افعال عامه څخه نه دي، ځکه نو هېڅ سوال نه پر کېږي، چي دلته ولې خبر حذف سوی نه دی.
د خبر په وجوبي ډول د حذف کېدو دوهم مقام:
ومثل: ضربی زیدًا قائمًا دلته د خبر د وجوبی حذف دوهم مقام بیانېږي، هغه دا چي چېري مبتداء د مصدر حقیقي، یا تاویلي په صورت وي، او د دغه مصدر اضافت له خپل فاعل، یا مفعول څخه یوه یا دواړو ته سوی وي، او تر ده وروسته په فاعل او مفعول کي له یوه، یا دواړو څخه حال واقع وي، یا دا چي مبتداء دصیغه اسم تفضیل په شکل وي او اضافت یې د مصدر حقیقي، یا تاویلي وطرفته سوی وي، بیا د دغه مصدر اضافت د خپل فاعل، یا مفعول وطرفته سوی وي، یا د دواړو وطرفته سوی وي (چي په دې حساب سره په اجمالي توګه (۱۲)

او په تفصیلي توګه (۳۶) صورتونه جوړېږي، د تفصیل لپاره د کافیه تقریر ص: ۱۲۷او ۱۲۸ وګورئ.

نو په دغو ټولو صورتونو کي ظرف د خبر پر ځای درېږي، پخپله خبر حذفول واجب دي، بیا د حال د ظرف پر ځای ددرېدو له وجې پخپله ظرف هم حذفول واجب دي، د مثال په توګه (ضربی زیدًا قائمًا) دا په اصل کي (ضربی زیدًا حاصلٌ اذا کان قائمًا) و، ترکیب یې په لاندي ډول دی:

ترکیب: (ضربی) مصدر مضاف د خپل فاعل و طرفته، (ی) ضمیر د متکلم مضاف الیه، مضاف سره له خپل مضاف الیه مبتداء (زیدًا) مفعول به، (اذا) ظرفیه، (کان) فعل تام، پکي (هو) ضمیر ذوالحال، (قائمًا) صیغه داسم فاعل، (هو) ضمیریې فاعل، اسم فاعل سره له خپل فاعل شبه جمله حال، ذوالحال سره له خپل حال د (کان) فعل تام لپاره فاعل (کان) فعل سره له خپل فاعل مظروف (اذا) ظرفیه سره له خپل مظروف متعلق سو تر (حاصلٌ) صیغه اسم فاعل پوري، پکي (هو) ضمیریې فاعل، اسم فاعل سره له خپل فاعل او متعلق شبه جمله خبر سو د مبتداء لپاره، مبتداء سره له خبره جمله اسمیه خبریه سوه.

غور وکړئ! دلته (حاصلٌ) کوم چي خبر دی حذف سوی (ذا کان) ظرف یې پر ځای درېدلی، نو جمله دا سي جوړه سوې (ضربی زیدًا اذا کان قائمًا)، بیا (ذا کان) ظرف هم حذف سوه، حال (قائمًا) یې پر ځای ودرېد، نو (ضربی زیدًا قائمًا) سو، ځکه نو مصنف رحمه الله علیه همدا مثال لیکلی دی.

یو سوال او جواب یې:

**سوال:** (اذا کانَ) ظرف ولي د (حاصلٌ) قائم مقام جوړ سوی دی، د دوی دواړو ترمینځ مناسبت څه دی؟

**جواب:** چي (ذا کان) ظرف دی او د ظرف او جار ومجرور متعلق موږ مخکي ویلی دی، چي دا دواړه د خپل ځان لپاره متعلق هرومرو غواړي او هغه متعلق به یا فعل وي، یا به شبه فعل وي، نو په دغه جمله کي همدا (حاصلٌ) شبه فعل و، لهذا موږ فکر وکړ، چي ظرف خو د خپل ځان لپاره متعلق ضرور غواړي، هغه که په لفظ کي وي، که نه، همدا ظرف پخپله د هغه پر موجودګۍ دلالت کوي او د

هغه له طرفه ګواکي چي د ترجمان کار کوي، نو له همدې وجې هماغه متعلق، کوم چي خبر و هغه حذف سو، ظرف کوم چي د ده متعلق دی موږ د ده قائم مقام جوړ کړ، بیا دا ظرف هم حذف کړل سو، حال یې پر ځای قائم مقام جوړ سو، ځکه چي د ظرف او حال په معنا کي څه ناڅه اشتراک او مشابهت سته، مثلاً د (لقیت زیدًا راکبًا) معنیٰ موږ داسي کوو (لقیتُ زیدًا فی زمان رکوبه).

دا خو د مصدر حقیقي مثال و، د کوم چي اضافت د فاعل او مفعول دواړو وطرفته سوی و او (قائمًا) حال و د مفعول، د کوم چي بیان الحمدلله په پوره تفصیل زموږ په وړاندي تېر سو.

او مصدر حقیقي کوم چي د فاعل طرفته مضاف وي او تر ده وروسته حال هم له دغه فاعل څخه واقع سوی وي، نو د هغه مثال دادی: (ذهابی راجلًا)، دا راز د مصدر تاویلي مثال (ان ذهبتُ راجلًا) دا مضاف دی د فاعل وطرفته او حال هم له فاعل څخه واقع سوی دی، دا راز د اسم تفضیل مثال (اکثر شربی السویق ملتوتًا) په دې کي اسم تفضیل مضاف دی د مصدر حقیقي وطرفته او هغه مضاف دی د خپل فاعل وطرفته او حال واقع سوی دی له مفعول څخه او په (اکثر ان ذهبتُ راجلًا) کي اسم تفضیل مضاف دی د مصدر تاویلي وطرفته او هغه مضاف دی دخپل فاعل وطرفته او حال واقع سوی دی له فاعل څخه (وقس علیها الامثلة الاخریٰ).

د خبر په وجوبي ډول د حذف کېدو دریم مقام:

و کل رجلٍ وضیعته: د دې مثال په ذریعه د خبر د حذف په وجوبي ډول دریم مقام بیانېږي، هغه دا چي هر هغه مبتداء د کومې په خبر کي چي د مقارنت معنا وي او پر هغه د داسي (واو) په ذریعه عطف سوی وي، کوم چي د (مع) په معنا وي او هغه واو په معنا د مع د دغې مبتداء پر خبر دلالت کوي، نو د داسي خبر حذفول واجب دي، لکه: (کل رجل وضیعته)، دا په اصل کی (کل رجل مقرون مع ضیعته) و، نو (مقرونٌ) کوم چي خبر دی هغه حذف کړل سو (ضیعته) یې قائم مقام سو، پر حذف یې قرینه داده، چي په (ضیعته) کي (واو) په معنی د (مع) دی، نو د عبارت تقدیر داسي کېږي (مع ضیعته) مضاف سره له مضاف الیه

ظرف جوړېږي او ظرف متعلق غواړي، حال دا چي مخکي داسي کومه کلمه نه وه چي موږ تر ظرف پوري متعلق کړي واى، نو مجبوره سو چي (مقرونٌ)، يا (مقترنٌ) محذوف را وباسو، د ظرف لپاره يې متعلق جوړ کړو.

دوهمه طرېقه دا هم د ه، چي محذوف عبارت داسي کېږي: (کل رجل وضيعته مقرونان يا مقترنان)، په دې صورت کي (کل رجلٍ) مضاف سره له مضاف اليه معطوف عليه جوړېږي، (واو) په معنى د (مع) عاطفه جوړېږي، (ضيعته) مضاف سره له مضاف اليه معطوف، معطوف عليه سره له خپل معطوف مبتداء او (مقرونان، يا مقترنان) يې خبر جوړېږي، په دې صورت کي ترجمه داسي کېږي: (هر سړى او دده کسب په خپلو کي سره يو ځاى کېږي)، نو (مقترنان) حذف کړل سو، (وضېعته) يې پر ځاى ودرېد.

د خبر په وجوبي ډول د حذف کېدو څلورم مقام:

لعمرک لأفعلنّ کذا: د دې مثال په ذرېعه د خبر په وجوبي ډول د حذف کېدو څلورم او اخيري مقام را ښيي، نو وايې: هر هغه ځاى چيري چي مقسم به مبتداء جوړ سوى وي، نو د دغې مبتداء خبر په وجوبي ډول حذف کېږي د قسم جواب يې پر ځاى درېږي، لکه (لعمرک لأفعلنّ کذا) دا په اصل کي (لعمرک قسمی لأفعلنّ کذا) وو، (لافعلنّ کذا) د قسم جواب يې قائم مقام سو، پخپله (قسمي) حذف کړل سو.

دلته قرېنه پر حذف د (لعمرک) (لام) ده، کومه چي دلالت کوي پر قسم، خلاصه دا چي د خبر پر محذوف کېدو قائم مقام او قرېنه دواړه موجود دي، قائم مقام جواب د قسم دى او قرينه د (لعمرک) (لام) دى.

الحمدلله له (۳۹م) درس څخه تر دې ځايه پوري په پنځو درسونو کي له مبتداء او خبر څخه له هريوه سره متعلق پنځه، پنځه اهمې مسئلې ذکر کړل سوي، دا په ښه توګه په ذهن کي ونيسئ.

## پنځه څلوېښتم (۴۵) درس

## دانّ او دانِّ داخواتو بيان

خبر اِنَّ و أخواتها: هوالمسند بعد دخول هذه الحروف، مثل: انَّ زيدًا قائمٌ و امره كأمر خبرالمبتداء الا فی تقديمه، الّا اذا كان ظرفًا.

**ترجمه**: له مرفوعاتو څخه د (انَّ) او د ده د اخواتو خبرهم دي، هغه د دغوحروفو تر داخليدو وروسته مسند وي، لکه: (اِنَّ زيدًا قائمٌ) او د دې معامله او مسائل د مبتداء د خبر د مسائلو په څېر ده، مګر دا چي دوی د ان پر اسم مقدم کېدای نسي، پرته له هغه چي هغه خبر د ظرف په صورت وي.

**تشريح**: د نن په سبق کي درې خبرې دي:

①: د حروف مشبه بالفعل تعريف، ②: په تعريف کي د قيدونو فائدې، ③: د حروف مشبه بالفعل له خبر سره تړلو څو مهمو مسئلو ته اشاره.

## حروف مشبه بالفعل او د تسميه وجه يې

**لومړۍ خبره**: حروف مشبه بالفعل او د تسميه وجه يې:

په (خبر انّ و اخواتها) سره د مرفوعاتو پنځم قسم يعني د حروف مشبه بالفعل خبر بيانوي او حروف مشبه بالفعل ټوټل شپږ دي، کوم چي شاعر په خپل يوه شعر کي جمع کړي دي:

اِنَّ بـــا أنّ لـــكنّ ليـــت لعـــلّ
ناصب اسمند و رافع درخبرضد ماولا

دغو حروف مشبه بالفعل ته ځکه مشبه بالفعل وايې، چي دوی له فعل سره په څو وجو مشابهت لري: ①: وضعًا، ②: وزنًا، ③: معنًا، ④: عملًا.

د وضع په اعتبار مشابهت يې په دې ډول دی، چي څرنګه په افعالو کي ځيني ثلاثي وي او ځيني رباعي وي، دا راز په دې حروفو کي هم ځيني ثلاثي او ځيني رباعي وي، مثلا: (اِنّ، أنّ، ليتَ) ثلاثي دي او (كأنَّ، لكنَّ، لعَلَّ) رباعي دي.

د وزن په اعتبار مشابهت يې په دې ډول دی: چي په دوی کي هر حرف په اصولي ډول د يو نه يوه فعل پر وزن راغلی دی، لکه (اِنَّ) پر وزن د (ضارِبْنَ)، (لعل)

خبر إنَّ و اخواتها: هوالمسند بعد دخول هذه الحروف، مثل: انَّ زيدًا قائمٌ و امره كامر خبرالمبتداء الا فى تقديمه، الّا اذا كان ظرفًا.

**ترجمه:** له مرفوعاتو څخه د (انّ) او د ده د اخواتو خبرهم دي، هغه د دغوحروفو تر داخلېدو وروسته مسند وي، لکه: (اِنّ زيدًا قائمٌ) او د دې معامله او مسائل د مبتداء د خبر د مسائلو په څېر ده، مګر دا چې دوى د ان پر اسم مقدم کېداى نسي، پرته له هغه چې هغه خبر د ظرف په صورت وي.

**تشریح:** د نن په سبق کې درې خبرې دي:

①: د حروف مشبه بالفعل تعريف، ②: په تعرېف کې د قيدونو فائدې، ③: د حروف مشبه بالفعل له خبر سره تړلو څو مهمو مسئلو ته اشاره.

## حروف مشبه بالفعل اود تسميه وجه يې

**لومړى خبره:** حروف مشبه بالفعل او د تسميه وجه يې:

په (خبر انّ و اخواتها) سره د مرفوعاتو پنځم قسم يعني د حروف مشبه بالفعل خبر بيانوي او حروف مشبه بالفعل ټوټل شپږ دي، کوم چې شاعر په خپل يوه شعر کې جمع کړي دي:

اِنّ بـــا آنّ لـــکنّ ليـــت لعـــلّ
ناصب اسمند و رافع درخبرضد ماولا

دغو حروف مشبه بالفعل ته ځکه مشبه بالفعل وايې، چې دوى له فعل سره په څو وجو مشابهت لري: ①: وضعًا، ②: وزنًا، ③: معنًا، ④: عملًا.

د وضع په اعتبار مشابهت يې په دې ډول دى، چې څرنګه په افعالو کې ځينې ثلاثي وي او ځيني رباعي وي، دا راز په دې حروفو کې هم ځيني ثلاثي او ځيني رباعي وي، مثلا: اِنّ، أنّ، ليتَ) ثلاثي دي او (كأنّ، لكنّ، لعَلّ) رباعي دي.

د وزن په اعتبار مشابهت يې په دې ډول دى: چې په دوى کې هر حرف په اصولي ډول د يو نه يوه فعل پر وزن راغلى دى، لکه (اِنّ) پر وزن د (ضارِبَنّ)، (لعل)

پر وزن د (دحرج)، ځکه چې دا په اصل کې (لعَلَلَ) او (لیت) پر وزن د (عَلَمَ) دا په اصل کې (عَلِمَ) و، د (شهد) په قانون (عَلِمَ) ځینې جوړ سو.

او د معنا په اعتبارې مشابهت په دې ډول دی: چې (إنّ او أنّ) دواړه د (حقّقتُ) په معنا دي، کوم چې فعل دی او (کأنّ) د (شبّهتُ) په معنا دی او (لیتَ) د (تمنّیتُ) په معنا دی او (لعلّ) د (ترجّیتُ) په معنا راځي، دا ټول افعال دي او څرنګه چې د دې ټولو افعالو اخیري مبنی پر فتحه دي، د اراز دا حروف هم ټول مبنی پر فتحه دي.

او د عمل په اعتبار مشابهت یې په دې ډول دی: لکه څرنګه چې فعل په دوو اسمونو کې عمل کوي، یعني فاعل ته رفع او مفعول ته نصب ورکوي، دا راز دا حروف هم په دوو اسمونو یعنی په مبتداء او خبر کې عمل کوي، مبتداء خپل اسم جوړوي، او نصب ورکوي او خبر خپل خبر جوړوي او رفع ورکوي.

دا د بصریینو او اکثره علماء نحو مذهب دی، خو کوفیین وایې، چې حروف مشبه بالفعل صرف په مبتداء کې عمل کوي، ځکه چې خبر خو له مخکې لا مرفوع وي، هغه د دوی عمل ته اړتیا نلري.

دلته دا شبه کېدای سي، چې جنابه! تا خو یوه طرفته دا حروف له فعل سره مشابه کړل او بل طرفته دي د دوی عمل د فعل په مقابل کې بلکل پر عکس کړل، ځکه چې فعل لومړي اسم ته رفع او دوهم ته نصب ورکوي او دا حروف لومړي اسم ته نصب او دوهم ته رفع ورکوي، نو مشابهت یې نه راغی.

د دې جواب دادی، چې که چېرې بعینه دغو حروفو ته د فعل عمل ورکول سي، نو د اصل او فرع تر مینځ فرق کول مشکل کېږي، نو د دوی دواړو تر مینځ د فرق کولو لپاره موږ داسې وکړل.

## د حروف مشبه بالفعل تعریف

**دوهمه خبره:** د حروف مشبه بالفعل تعریف:

**وهو المسند بعد دخول هذه الحروف:** په دې عبارت کې مصنف رحمة الله علیه د حروف مشبه بالفعل د خبر تعریف بیانوي، چې (إنّ) او داخواتو خبر یې هغه اسم دی،

کوم چي د دغو حروفو تر داخلېدو وروسته مسند وي، لکه په (انّ زیدًا قائمٌ) کي (قائمٌ) د (انّ) خبر دی، کوم چي مسند دی، یعنی د قائم اسناد کېږي د (زیدٌ) وطرفته.

په تعریف کی د قیدونو فائدې:

خبر انّ واخواتها: هو المسند بعد دخول هذه الحروف: په دې عبارت کي د (هو) ضمیر مرجع خبر دی، کوم چي معرف دی او له (المسند) څخه تر اخیره پوري یې تعریف دی، بیا په تعریف کي (المسند) جنس دی، کوم چي د مبتداء، خبر، حروف مشبه بالفعل، افعال ناقصه، لائ نفي جنس وغیره خبرونو ته شامل دی، ځکه هغه هم ټول مسند دي او (بعد دخول هذه الحروف) یې فصل دی، چي په ذریعه یې د حروف مشبه بالفعل له خبر پرته نور ټول خبرونه وزي، ځکه هغه که څه هم مسند دي، لیکن د دغو حروفو تر داخلېدو وروسته نه بلکي دمبتداء او افعال ناقصه او لاءنفي جنس وغیره تر داخلېدو وروسته وي.

یو سوال او جواب یې:

دلته سوال کېږي، چي جنابه! تا وویل، چي د انّ خبر د دغو حروفو تر داخلېدو وروسته مسند وي، حال دا چي موږ خو وینو چي د دغو حروفو تر داخلېدو مخکي دغه دواړه معمولونه په خپل مینځ کي مبتداء او خبر وي، نو خبر خو هغه وخت هم مسند وي؟

د دې جواب دادی، چي بېشکه! مخکي هم مسند وي، لیکن کله چي دغه حروف پر داخل سي، نو ګواکي چي هغه ترکیب یې اوس خراب کړ او هغه اسناد یې له سره ختم کړ، اوس له نوي سره بیا دا یوه جمله سوه، په کومه کي چي دغه خبر مسند جوړېږي.

**درېیمه خبره:** د خبر انّ او اخواتو له خبر سره متعلق څو اهم مسائل:

(وامره کامر خبر المبتداء) د حروف مشبه بالفعل خبر په اصل کي د مبتداء خبر وي، څرنګه چي هلته کوم مسائل او حکام نحویه ورسره تړلي وه (یعنی چي خبر مفرد او جمله، یو او متعدد، معرفه او نکره راتلای سي، او د جمله په صورت کي

عائد ضروري وي)، دا ټول مسائل او احکامات د حروف مشبه بالفعل له خبر سره هم متعلق دي، پرته له هغه چې مخکې د خبر متعلق موږ څلور صورتونه ویلې وه، په کومو کې چې خبر مقدم کول واجب و، لیکن دلته د حروف مشبه بالفعل خبر د دوی پر اسم په وجوبی ډول مخکې کول خو پرېږده، بیخې جائز نه دی، ځکه چې حروف مشبه بالفعل د فعل فرع دي او فرع په عمل کې ضعیف وي، نو د دغو حروفو اسم او خبر که چېري پر خپل ترتیب وي، نو عمل کولای سي، خو که چېري بې ترتیبه سي، نو دا عمل نسي کولای.

دلته له خبر سره د ټرلو مسئلو ځینی بېلګې وګورئ:

①: مثلاً د خبر په اړه موږ ویلې وه، چې (والخبر قد یکون جملةً مثل: زیدٌ ابوه قائمٌ و زیدٌ قامَ ابوه)، نو دلته هم د حروف مشبه بالفعل خبر جمله راتلای سي، لکه د الله جل جلاله په مبارک قول کې (اِنّا انزلناه فی لیلة القدر)، دلته د حروف مشبه بالفعل خبر جمله فعلیه راغلی دی.

②: د اراز په (و قد یُحذف) کې د حذف په هکله موږ ویلې وه، نو دلته هم داسې کېږي، لکه (ان السمن منوان بدرهم ای منه بدرهم).

③: د اراز (و ما وقع ظرفًا فالاکثر علیٰ انه مقدّرٌ بالجملة) دلته هم داسې کېږي، لکه (ان فی الدار زیدٌ، ای انه استقرّ فی الدار).

④: هلته دا هم موږ ویلي وه، چې (وقد یتعدّد الخبر) دلته هم تعدد د خبر جائز دی، لکه: (انّ زیدًا عاقلٌ صادقٌ عالمٌ).

⑤: دا راز مو دا هم ویلي وه، چې (وقد یتضمن المبتداء معنی الشرط فیصح دخول الفاء فی الخبر) دلته هم د (لیت ولعلّ) له خبرونو پرته د نورو لپاره همدا حکم دی، لکه د الله جل جلاله قول (ان الذین فتنوا المؤمنین والمؤمنات ثم لم یتوبوا فلهم عذاب جهنم).

(الّا اذا کان ظرفًا) دا استثناء مفرغ ده له هغه منفی کلام څخه کوم چې له مخکې کلام څخه فهمول سوی و، چې پوره عبارت یې دادی: (ولا یتقدم علیٰ اسمه الا اذا کان ظرفًا) یعنی په عامه توګه د حروف مشبه بالفعل خبر د دوی پر اسم نسي مقدم کېدای، خو که چېري خبر د ظرف په شکل وي او د (انّ) اسم

معرفه وي، نو په داسي ځای کي د ده پر اسم مقدم کول جائز دي، لکه د الله ﷻ قول (انّ الينا ايابهم) د دې (انّ ايابهم الينا) ويل هم جائز دي، ليکن د (انّ) اسم که چېري نکره و، نو تقديم د خبر واجب کېږي، لکه: (اِنّ لدينا انكالًا وجحيمًا) او (ان من الشعر لحكمة).

په ظرف کي د خبر د تقديم د جواز او وجوب وجه دا ښودل سوې، چي (يتوسع فى الظرف مالا يتوسع فى غيره) يعنى په ظرف کي هغه فراخي سته، چي په بل شي کي نسته، ځکه چي هېڅ فعل هم داسي نسته، چي د هغه لپاره ظرف واسطه نه وي، مثلا کوم کار چي ته کوي، نو هرومرو به هغه په يو زمانه کي وي او دا راز به په يوه نه يوه ځای کي وي، نو کله چي په ظرف کي دومره فراخي وه، نو پکي خبر هم مقدم کېدای سي.

خلاصه دا چي د مبتداء خبر او د حروف مشبه بالفعل خبر چي کله د ظرف په شکل وي، نو د دوی دواړو احکامات او مسائل بلکل يو رنګه دي، ليکن که چېري د ظرف په شکل نه وو، نو بيا هم د دواړو مسائل يو رنګه دی، ليکن د حروف مشبه بالفعل خبر د دوی پر اسم مخکي کېدای نسي.

## شپږ څلوېښتم (۴٦) درس

## د لائ نفې جنس د خبر بيان

خبر لا التى لنفى الجنس: هو المسند بعد دخولها، مثل: لا غلام رجلٍ ظريفٌ فيها، ويُحذف كثيرًا و بنوتميم لا يُثبتونه.

**ترجمه**: له مرفوعاتو څخه د هغې (لا) خبر هم دی، کومه چي د جنس صفت د نفي لپاره راغلې وي او هغه د دغې (لا) تر داخلېدو وروسته مسند وي، لکه

(لاغلام رجلٍ ظریفٍ فیها) او اکثره وختونه دا حذف کېږي او بنوتمیم یې له سره منې نه.

**تشریح:** د نن په سبق کې تر تمهید وروسته درې خبرې کېږي:

①: د لائ نفي جنس د خبر تعریف او د قیدونو فائدې، ②: د لائ نفي جنس د خبر حذفول، ③: پکې د بنوتمیم مذهب او د هغه وضاحت.

**تمهید:**

خبرلاالتی لفنی الجنس: دلته مصنف رحمه الله د څلورم مرفوع بیان کوي، د مصنف رحمه الله عبارت (لاالتی لفنی الجنس) محذوف المضاف دي، (یعني مضاف پکې حذف سوی دی)، ځکه چې دا په اصل کې (لا التی لنفی صفة الجنس) وو، ځکه چې په (لارجل قائمٌ) کې د جنس رجل نفي نه کېږي، بلکې له ده څخه د صفت (قیام) نفي کېږي.

دا د جامي د ملاصاحب رحمه الله قول دی، لیکن سمه او صحیح خبره داده، چې دا د جنس د نفي لپاره هم راځي، لکه (لارجل فی الدار، ای لا رجل موجودٌ فی الدار) او کله د جنس د صفت د نفي لپاره راځي، لکه (لارجل قائمٌ)، لیکن عام سوی لومړی قول دی، یعنې د ده نفي د جنس لپاره راتلل زیات مستعمل دی، په نسبت د دوهم (تسهیل شرح الجامی للشیخ محمد انورالبدخشانی حفظه الله وګورئ).

## دلانفی جنس دخبر تعریف

**لومړی خبره:** د لانفی جنس د خبر تعریف او د قیدونو فائدې:

(هوالمسندبعد دخولها) په دې عبارت کې د کافیه ملاصاحب رحمه الله د لائ نفی جنس د خبر تعریف بیانوي، چې د لائ نفی جنس خبر هغه اسم دی، کوم چې د لا تر داخلېدو وروسته مسند وي، لکه: (لا غلام رجلٍ ظریفٌ فیها) دلته د لائ نفي جنس تر داخلېدو وروسته (ظریفٌ) مسند سوی دی.

پردې ځای یو سوال کېږی کوم چې د حروف مشبه بالفعل په بحث کې تېر سو او جواب یې هماغه دی، کوم چې هلته تېر سو.

**په مذکوره تعریف کې د قیدونو فائدې:**

خبرلاالتی لنفی الجنس: هو المسند بعد دخولها: دلته د (هو) د ضمېر مرجع (خبرلا التی لنفی الجنس) ده، کوم چي معرف دی او (المسندبعددخولها) یې تعرېف دی، پکي (المسند) جنس دی، کوم چي ټولو خبرونو ته شامل و، (بعد دخولها) یې فصل دی، په ذرېعه یې هغه ټول مسندونه وزي، کوم چي که څه هم مسند خو وي، لېکن د لائ نفي جنس د داخلېدو په وجه نه، بلکي یا خو د مبتداء په وجه مسند وي، یا د حروف مشبه بالفعل په وجه، یا د افعال ناقصه وغیره په وجه سره وي.

**ترکیب:** لا غلام رجل ظریفٌ فیها (لا) د نفي جنس لپاره او (غلام رجل) مضاف و مضاف الیه یې اسم، (ظریفٌ) صفت مشبه، (هو) ضمېریې فاعل، صفت مشبه سره له خپل ضمېر فاعل شبه جمله خبر اول سو، (فیها) جار ومجرور متعلق کېږي تر (حاصلٌ) صیغه اسم فاعل پوري، (حاصلٌ) صیغه اسم سره له خپل ضمېر فاعل او متعلق شبه جمله د لائ نفي جنس لپاره خبر ثاني، لائ نفي جنس سره له خپل اسم او دواړو خبرونو جمله اسمیه خبریه کېږي.

**فائده:** په عامو کتابونو کي د دې لپاره (لارجل فی الدار) مثال لیکل سوی دی، په کوم کی چي په ډېره اسانی سره (رجل) د (لا) اسم او (فی الدار) د (لا) خبر جوړېږي، لیکن د مصنف رحمه الله په مثال کي یو اسم او دوه خبرونه جوړېږي، دا طرېقه مصنف رحمه الله ځکه غوره کړې، چی دنحوي عامو علماؤ چي کوم مثال راوړی، په هغه کي له موصوف صفت سره التباس لازمېدی، یعني بیخي ممکن وه، چي یو څوک ووایې چي (رجل فی الدار) موصوف او صفت د لائ نفي جنس اسم دی او خبر محذوف دی، حال دا چي د کافیه د ملاصاحب په مثال کي دا شبه نه کېږي.

بیا دا چي دوه خبرونه یې ولي بیان کړل؟، نو د دې جواب دادی، چي له دوو وجو یې داسي کړي:

**لومړی وجه:** دا چی په دې سره دا ښودل مقصود دي، چی د لائ نفي جنس خبر ظرف او غیر ظرف دواړه راتلای سي.

**دوهمه وجه**: دا چې که يې چيري خبرثاني يعني (فيها) نه وای راوړی، نو معنا خرابېده، هغه په دې ډول، چي (نسي کېدای د هيڅ سړي هيڅ مړيي خوشطبع)، ښکاره خبره ده، چي دا خبره له نفس الامراو ظاهر څخه خلاف ده او د خبرثاني تر راوړلو وروسته معنا داسي کېږي (نسته د هيڅ سړي هيڅ خوش طبع مړيي په دې کور کي).

دلته سوال کېدای سي، چي په عبارت کي د (فيها) ضمير مرجع خو هيڅ نسته، نو ولې راوړل سوی دی؟

د دې جواب دادی، چي دا جمله په اصل کي د سائل د سوال جواب ده، هغه داسي چي سائل پوښتنه وکړي (هل غلام رجل ظريفٌ فی الدار؟)، نو په جواب کي ويل کېږي، چي (لاغلام رجل ظريفٌ فيها)، نو د سائل په سوال کي د (الدار) ذکر و، هغه د ضمير مرجع ده.

## دلائ نفي جنس د خبر حذفول

**دوهمه خبره**: د لائ نفي جنس د خبر حذفول:

ويُحذف کثيرًا: د لائ نفي جنس خبر اکثره وخت حذف کېږي، او په عامه توګه دا هماغه خبر وی، کوم چي له افعال عامه څخه وي، يعنی (کون، حصول، وجود، وغيره)، لکه: (لا اله الاالله) دا په اصل کي (لا اله موجودٌ الاالله) و، دا راز (لا سيف الا ذوالفقار)، دا هم په اصل کي (لا سيف موجودٌ الا ذوالفقار)، (ذوالفقار د علي ﷜ د توري نوم و).

**دريیمه خبره**: د بنو تميم مذهب او د هغه وضاحت:

وبنوتميم لا يُثبتونه: شارحينو د دې دوه مطلبونه بيان کړي دي:

①: يو دا چي بنوتيم د لائ نفي جنس د خبر قائل خو دي، ليکن په لفظ کي يې نه ظاهروي، بلکي د دوی په نزد يې حذفول واجب دي.

②: دوهم مطلب يې دا بيان کړی، چي بنوتمېم له سره ددې خبر نه مني، نه لفظًا او نه تقديرًا، نو د دوی په نزد د (لا اهل و لامالَ) په څېر جملو لپاره د خبر را ايستلو ضرورت نسته، بلکي د دې معنا دا کېږي، چي (انفی المالُ والأهلُ).

او په کومو جملو کي چي خبر مذکور وي، نو دغو خلګو هغه د صفت په معنا اخستی، لکه (لارجل قائمٌ)، دلته (قائمٌ) د (رجلٌ) صفت کېږي، نه چي د (لا) لپاره خبر.

## اووه څلوېښتم (۴۷) درس

## د ما ولا مشابه بلیس د اسم بیان

اسم ما ولا المشبهتان بلیس: هو المسنداليه بعد دخولهما، مثل: ما زیدٌ قائمًا، ولا رجلٌ افضلَ منکَ، وهو فی لا شاذٌ.

**ترجمه**: له مرفوعاتو څخه د (ما ولا) له لیس سره مشابه (ورته) اسم هم دی او هغه د دې دواړو تر داخلېدو وروسته مسنداليه کېږي، لکه (ما زیدٌ قائمًا ولارجلَ افضل منکَ) او له (لیس) سره په عملی مشابهت کي ضرق (لا) شاذ ده.

**تشریح**: په مذکوره عبارت کي موږ څلور خبرې ذکر کوو:

①: د ما ولا مشابه بلیس تعریف او د قیدونو فائدې:

②: د ما ولا مشابه بلیس عمل او د تسمیه وجه یې، ③: د ما او لا تر مینځ فرق او ④: د (وهو فی لا شاذٌ) وضاحت.

### د ما ولا مشابه بلیس د اسم تعریف

**لومړۍ خبره**: د ما ولا مشابه بلیس د اسم تعریف:

و هوالمسنداليه بعد دخولهما: مصنف رحمة الله عليه په دې عبارت کي د (ما ولا) مشابه بلیس د اسم تعریف بیان کړی دی، هغه دا چي د ما و لا مشابه بلیس اسم هغه دی، کوم چي د دوی تر داخلېدو وروسته مسنداليه وي، لکه (مازیدٌ قائمًا) په دې کي (ما) مشابه بلیس، (زیدٌ) یې اسم او (قائمًا) یې خبر، (ما) مشابه بلیس سره له اسم او خبر جمله اسمیه خبریه جوړېږي.

دا راز په (لارجلٌ افضل منکَ) کی (لا) مشابه بلیس، (رجلٌ) یې اسم، (افضلُ) صیغه د اسم تفضیل، (هو) ضمیر یې فاعل، (منکَ) جار مجرور متعلق کېږي تر (افضل) صیغه اسم تفضیل پوري، (افضلُ) صیغه اسم تفضیل سره له خپل

ضمير فاعل او متعلق شبه جمله د (لا) مشابه بليس لپاره خبر، (لا) سره له خپل اسم او خبر جمله اسميه خبريه سوه.

پر دغه تعريف هماغه مخکني سوال کېږي، جواب يې هم هماغه کېږي، چي له مخکي نه که څه هم مسنداليه و، ليکن کله چي له (ماولا) څخه يو پر داخل سو، نو ګواکي چي لومړني ترکيب يې له مينځه ولاړ، اوس له نوي سره دا نوې جمله جوړه سوه، نو اوس دغه نوې جمله هم مسنداليه جوړېږي.

## په مذکوره تعريف کي د قيدونو فائدي:

اسم ما ولا المشبهتين بليس: هو المسنداليه بعد دخولهما:

دلته د (هو) ضمير کوم چي د ماولا وطرفته راجع دی، دا معرّف دی او (المسنداليه بعد دخولهما) يې تعريف دي، په تعريف کي (المسنداليه) جنس دی، کوم چي مبتداء او حروف مشبه بالفعل وغيره اسماؤ ته هم شامل و، (بعد دخولهما) يې لومړی فصل دی، په ذريعه يې د ما ولا مشابه بليس له اسم پرته نور ټول اسماء ووتل، ځکه هغه که څه هم مسنداليه ضرور دي، ليکن د ماولا د داخلېدو په وجه نه، بلکي د خپلو، خپلو عواملو د داخلېدو په وجه سره مسنداليه دي.

### دماولامشابه بليس عمل اود تسميه وجه يې

**دوهمه خبره:** د ماولا مشابه بليس عمل او د تسميه وجه يې:

له مرفوعاتو څخه د اووم مرفوع (ما اولا) اسم دی، (ما اولا) دا دواړه پر مبتداء او خبر داخلېږي، مبتداء ته رفع ورکوي، ورته د (ماولا) اسم ويل کېږي او خبر ته نصب ورکوي، دېته د دوی دواړو خبر ويل کېږي.

**ماولا المشبهتين:** دا له شبه يشبه تشبيهًا د تفعېل له باب څخه د اسم مفعول تثنيه مؤنث صيغه ده، په معنی د هم شکل (ورته) دی، نو (ما اولا) ته هم مشابه بليس ځکه ويل کېږي، چي دوی هم له (ليس) سره په دريو طريقو سره مشابهت لري ①: معنًا، ②: معمولًا، ③: عملًا:

**معنًا مشابهت:** داسي دى، چي (ليس) هم په كلام كي د نفي په معنا وي او دا دواړه هم د نفي لپاره راځي، لكه چي د (ما زيدٌ قائمًا و لا رجلٌ افضل منكَ) او (ليس زيدٌ قائمًا) يوه معنا ده.

**معمولًا مشابهت:** په دې ډول دى، چي دا د خپل معمول په اعتبار سره هم له (ليس) سره مشابهت لري، يعني لكه څرنګه چي (ليس) پر مبتداء او خبر داخل سي، هغه خپل معمول جوړوي، دا راز دا دواړه هم مبتداء او خبر خپل معمول جوړېږي، نه چي كوم بل شى.

**عملًا مشابهت:** په دې ډول دى، چي په عمل كي هم دواړه له ليس سره مشابهت لري، هغه داسي، چي (ليس) هم مبتداء ته رفع او خبر ته نصب وركوي او دا دواړه په مبتداء كي همدا عمل كوي.

ليكن دا مذهب د اهل حجاز دى، د دوى په مقابل كي بنوتميم د (ماولا) په عمل كولو له سره قائل نه دي، يعني كه چېري له دوى څخه كوم يو پر مبتداء او خبر داخل سي، نو د مبتداء او خبر تركيب هماغه دى، كوم چي د دوى تر داخلېدو مخكې و، د دوى دليل يو شعر دى:

و مُهفهفٍ كالغصن قلت له انتسب

فــاجــــاب ما قتل المحبّ حــرام

**وګوره!** (ما) كه چېري عامله واى، نو (ماقتل المحبّ حرامٌ) نه كېدى، بلكي (ماقتل المحبّ حرامًا) كېدى.

خو د اهل حجاز مذهب ځكه راجح دى، چي قرآنكريم د دوى پر لغت برابرېږي، په هغه كي (ما) ته عمل وركول سوى، لكه چي د الله ﷻ وينا ده (ما هذا بشرًا).

## دما اولا ترمينځ فرق

**درېيمه خبره:** د ما اولا ترمينځ فرق:

①: ما اولا كه څه هم يو شى يعنى د مبتداء او خبر عامل دي، ②: او د دواړو يو عمل دى، ③: او دواړه د نفي معنا وركوى، په دې دريو شيانو كي له متفق كېدو سره، سره بيا هم د دوى ترمينځ په څو وجو فرق سته:

①: یو دا چې د (لا) اسم د تل لپاره صرف نکره وي او د (ما) اسم معرفه او نکره دواړه کېدای سي، لکه: (ما زیدٌ قائمًا و مارجلٌ افضل منکَ)، دواړه صحیح دي، لیکن (لازیدٌ قائمًا) نسي ویل کېدای.

②: دوهم دا چې (ما) صرف د حال د نفې لپاره راځي، او (لا) د مطلق نفي لپاره راځي، لکه د (ما زیدٌ قائمًا) معنا ده، چې زید همدا اوس ولاړ نه دی او د (لارجلٌ افضل منکَ) معنا ده، چې په هېڅ زمانه کي، هېڅ سړی هم تر تا افضل او غوره نه دی.

③: درېیم دا چې د (لا) پر خبر باء حرف جر نسي داخلېدای، حال دا چې د (ما) پر خبر داخلېدای سي، لکه (ما زیدٌ بقائم) ویل خو جائز دي، لیکن (لارجلٌ بافضل منکَ) ویل نا جائز دي.

### د(وهوفی لاشاذ) وضاحت

**څلورمه خبره**: د (و هو فی لا شاذٌ) وضاحت:

(وهو فی لا شاذٌ)، په دې عبارت کي (فی لا) د (شاذٌ) لپاره ظرف مقدم دی او د مقدم راوړلو په صورت کي په د ه کي د حصر معنا پیداکېږي، هغه په دې ډول، چې له (لیس) سره په عملي مشابهت کي صرف (لا) شاذ ده، وجه یې داده، چې (لا) له (لیس) سره کامل مشابهت نه لري، ځکه (لیس) د حال د نفې لپاره راځي او (لا) د مطلق نفې لپاره راځي او بیا هم عمل د لیس په ډول کوي، ځکه چې دا شاذ ده.

**یادونه**: په اخیر کي یو سوال کېږي، چې د کافیه ملاصاحب رحمة الله علیه تو ټول اووه مرفوعات ذکر کړل، حال دا چې مرفوعات ټول اته دي، نو دا اوو ذکر کولو وجه څه ده؟

عامه شارحینو رحمهم الله دېته کوم تعرض نه دی کړی، خو د (معارف الکافیه وعوارف الجامي) ملاصاحب حفظه الله یې جواب کړی، چې کله مصنف رحمة الله علیه د (اسم ما ولا) مشابه (بلیس) ذکر وکړ، نو ګواکي چې له دې څخه دا خبره پخپله معلومه سوه، چې کله د مشبه (یعنی د ما ولا) اسم له مرفوعاتو څخه دی، نو په لازمي توګه د مشبه به (یعنی د افعال ناقصه) اسم هم له مرفوعاتو څخه دی،

څرنگه چې دا خبره په ضمني ډول پخپله معلومه سوې وه، نو د کافیه ملاصاحب رحمه الله پرېښوده، یایې د ده لپاره اوږد عبارت ذکر نکړل.

وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالصَّوَابِ وَعِلْمُهُ اَتَمُّ وَاَحْكَمُ

# اَلْمَنْصُوْبَاتُ

اته څلوېښتم (۴۸) درس

د مفعول مطلق بیان

هو ما اشتمل علیٰ علم المفعولية، فمنه المفعول المطلق: وهو اسم ما فعله فاعل فعل مذكورٍ بمعناه و قد يكون للتاكيد والنوع والعدد، نحو: جلستُ جلوسًا و جِلسَةً و جَلسةً، فالاول لا يُثنّى ولا يُجمع بخلاف اخويه.

**ترجمه:** منصوب هغه اسم دی، کوم چې د مفعولیت پر علامه مشتمل وی، بیا له دې منصوباتو نه یو مفعول مطلق دی او دا هغه اسم دی، کوم چې د همدغه ذکر سوي فعل فاعل کړی وي او کله دا دتاکید د معنی لپاره هم راځي او د نوع (هیئت) او عدد د بیانولو لپاره هم راځي، لکه (جلستُ جلوسًا وجِلسَةً وجَلسَةً) یعني کښېناستم زه په کښېنانستلو سره او کښېناستم زه په یو خاص ناستې سره او کښېناستم زه یو ځل.

**تشریح:** د نن په سبقه کي څلور خبرې دي:

①: د منصوباتو تعریف او د (علم المفعولیت) وضاحت، ②: د مفعول مطلق تعریف او د قیدونو فائدې، ③: د مفعول مطلق د استعمال طریقې.

### د منصوباتو تعریف او د علم المفعولیت وضاحت

**لومړۍ خبره:** د منصوباتو تعریف او د علم المفعولیت وضاحت:

د منصوبات او هو ما اشتعمل علی علم المفعولية په اړه پوره تفصیل هماغه دی، کوم چې د المرفوعات په ضمن کي تېر سو، لنډه دا چې دا د (منصوبٌ) جمع ده، نه د (منصوبةٌ)، وجه یې په تفصیل سره تېره سوې ده، پاتې سوه د ده جمع په الف او تاء سره، نو دا هم تېر سوي دي، چې په اصل کی دا د لایعقل جمع ده او د لایعقل جمع په الف او تاء سره راځي.

**فائده:** د کافیه ملاصاحب رحمه الله علیه منصوبات تر مرفوعاتو وروسته او تر مجروراتو مخکی راوړل، وجه یې داده، چې مرفوعات او منصوبات د یوه عامل معمول وي، لکه چې موږ وایو: (ضرب زیدٌ عمروًا) دلته زیدٌ او عمر دواړه د ضرب معمول دي، لومړي ته یې رَفع ورکړی، نو ځکه مرفوعات تر ټولو مقدم کړل سو او دوهم ته یې نصب ورکړی، ځکه یې نو منصوب په دوهم نمبر کي

راوړل او مجرورات یې بلکل په اخیر کي ځکه راوړل، چي د دوی عامل حروف جاره وي.
مصنف رحمه الله چي ویلي (هو ما اشتمل علی علم المفعولیة)، نو دا مشتمل کېدل به یا لفظي وي، لکه (رأیتُ زیدًا)، یا به تقدیري وي، لکه (رأیتُ فتًی) او یا به محلًا وی، لکه (رأیتُ هؤلآء).
**علم المفعولیة**: مطلب دا چی یو اسم چی پریو داسي علامه کومه چي د ده پر مفعول حقیقي )یعنی له مفاعیل خمسه څخه) پر کېدو، یا دده پر مفعول حکمي (یعنی له نورو منصوباتو څخه) پر کېدو دلالت کوي، دا راز د اتولې څلور علامې کېږي:
①: فتح: دا په څلورو قسمونو اسماؤ کي د مفعولیت علامه ده: ①: مفرد منصرف صحیح، ②: جاري مجرای صحیح، ③: جمع مکسر منصرف، ④: په غیرمنصرف کي، لکه: (رأیتُ زیدًا، وظبیًا و رجالًا و مساجدَ).
②: کسره: دا په جمع مؤنث سالمه کي د مفعولیت علامه وي، لکه (رأیتُ مسلماتٍ).
③: الف: دا په اسماء سته مکبره کي د مفعولیت علامه ده، لکه (زرتُ اباکَ و اخاکَ...الخ).
④: یاء: دا په تثنیه او د هغې په اخواتو کی او په جمع مذکر سالمه او دهغې په اخواتو کي د مفعولیت علامه وي، لکه: (رأیتُ مسلمَین و مسلمِیْنَ).

## د مفعول مطلق تعریف

**دوهمه خبره**: د مفعول مطلق تعریف:
د مفعول مطلق لغوی معنا داده، چی هغه اسم چي ازاد کړل سوی وي، او اصطلاحي معنا او تعریف یې دادي، چي (هو اسم ما فعله فاعل فعل مذکور)، یعنی مفعول مطلق هغه مصدر دی، چي د داسي فعل په معنا وي، د کوم چي

ذکر تر ده مخکی سوی وي، هغه که حقیقتًا وي، لکه (ضربتُ ضربًا او جلستُ جلوسًا) وغیره او که حکمًا سوی وي، لکه: (فضرب الرقاب)، دا په اصل کي (فاضربوا ضرب الرقاب) و، یعنی د (فاضربوا) ذکر په (ضربٌ) مصدر کي په حکمي ډول راغلی و.

## په تعریف کي د قیدونو فائدې:

هو اسم مافعله فاعل فعل مذکور بمعناه: په مذکوره عبارت کي (هو) ضمیر کوم چي د (المفعول المطلق) و طرفته راجع دی، دا معرّف دی او (له اسم ما څخه تر بمعناه) پوري یې تعریف دی، دلته (اسم ما) جنس دی، کوم چي ټولو مصدرونو ته شامل دی او (فعله فاعل فعل مذکور) فصل دی، ددې په ذریعه مفعول له وزي، ځکه هغه که څه هم مصدر دی، لیکن د فعل مذکور فاعل د ده لپاره فاعل نه کیږي.

### د مفعول مطلق د تسمیه او تقدیم وجه

**درېیمه خبره:** د مفعول مطلق د تسمیه او تقدیم وجه:

مفعول مطلق ته ځکه مفعول مطلق ویل کیږي، چی (مطلقٌ) له اطلَقَ یُطلقُ اطلاقًا باب اِفعال څخه د (مکرمٌ) په څېر د اسم مفعول صېغه دی، مصدري معنا یې ده ازادوَل او د ده په شروع کي چي کوم (الف لام) دی، دا د (الذی) په معنا دی، ځکه موږ ویلي دي، چي داسم فاعل او اسم مفعول په شروع کي چی کوم (الف لام) وي، هغه د (الذی) په معنا وي، نو د عبارت تقدیر داسي کیږي: (المفعول الذی اُطلقَ) یعني هغه مفعول کوم چي ازاد کړل سوی وي، څرنګه چی مفعول مطلق د نورو مفاعیلو (به، فیه، له او معه) له قیدونو څخه ازاد وی، ځکه نو ورته مطلق (ازاد کړل سوی) ویل کیږي.

پاتې سوه داخبره، چی دا یې پر نورو مفاعیلو ولي مخکی کړی دی؟ نو د دې جواب دادی، لکه څرنګه چی اوس معلومه سوه، چی دا د مطلق په درجه کي دی او پاتې نور مفاعیل د مقید په درجه کي دي، نو مطلق خو پر مقید مخکي کیږي، کوم چي یو مشهور اصول دی.

## د مفعول مطلق د استعمال طريقې

**څلورمه خبره:** د مفعول مطلق د استعمال طريقې:

و قد يكون للتاكيد: مصنف رحمه الله د مفعول مطلق د استعمال درې لارې را ښيي:

①: كله په كلام كى د تاكيد د معنى پيداكولو لپاره راوړل كېږي، لكه (جلستُ جلوسًا).

②: كله د نوع، يعني د يو شي د هيئت، كيفيت (ډول) بيانولو لپاره راوړل كېږي، او ددې د پېژندلو دوې طريقې دي:

يوه دا چي مصدر يې د (فَعْلَةٌ) پر وزن راغلى وى (كما درسنا عنها فى علم الصيغة)، لكه چى ويل كېږي (لا تمش مِشية المختال) يعني د تكبر كوونكې په تګ مه ځه.

دوهمه دا چي له دغه مفعول مطلق سره پر كوم نوعيت او خاص كيفيت دلالت كوونكى يو صفت لګول سوى وي، لكه (ضربتُ ضربًا شديدًا).

③: او كله دا دفعل مذكور د عدد بيانولو لپاره راوړل سوى وي، او د دې د پېژندلو درې لارې دي:

**يوه:** دا چي مصدر يې د (فَعْلَةٌ) پر وزن راغلى وي (كما درسناعنها فى علم الصيغة) لكه (ضربتُ ضربةً) يعنى وواهو ما يو ځل.

**دوهم:** دا چي مصدر يې د تثنيه، يا جمع په شكل راغلى وي، لكه (جلستُ جَلستَين يا جلسات).

**دريم:** دا چي له دغه مفعول مطلق سره پر كثرت دلالت كوونكى يو صفت لګول سوى وي، لكه: (ضربتُ ضربًا كثيرًا).

## نه څلوېښتم (۴۹) درس

## له مفعول مطلق سره تړلې څو ضروري مسئلې

فالأول لا يُثنّى و لا يُجمع بخلاف اخويه و قد يكون بغير لفظه نحو: قعدتُ جلوسًا وقد يُحذف الفعل لقيام قرينةٍ جوازًا، كقولك لمن قدم: خيرمقدمٍ و وجوبًا سماعًا،

مثل: سقیًا و رعیًا وخیبةً و جدعًا و حمدًا و شکرًا وعجبًا وقیاسًا فی مواضع، منها: ما وقع مثبتًا بعد نفيٍ او معنی نفيٍ داخلٍ علی اسمٍ لا یکون خبرًا عنه، او وقع مکررًا، نحو: ما انت الا سیرًا و ما انت الا سیرالبرید، وانما انت سیرًا وزیدًا سیرًا سیرًا.

**ترجمه:** نو لومړی قسم د تثنیه او جمع په صورت نسي راتلای په خلاف ددهٔ د دوو اخوینو او کله کله دا (مفعول مطلق) د فعل مذکور له مادې څخه مغائر هم راځي، لکه (قعدتُ جلوسًا) او کله د یو قرینې د موجودګۍ له کبله په جوازي توګه د ده فعل حذف کېږي، لکه یو را رسېدونکي ته ستاسو دا ویل: چې (خیرمقدمٍ) او کله د وجوب سماعي په ډول حذف کېږي، لکه (سقیًا، و رعیًا و خیبةً وجدعًا، وحمدًا و شکرًا و عجبًا) او په څو ځایونو کې په وجوبي قیاسي ډول هم حذف کېږي، له دې ډلې نه هغه مفعول مطلق هم دی، کوم چې تر نفي وروسته مثبت واقع سوی وي، یا د داسې معنی تر نفي وروسته واقع وي، کوم چې پر داسې اسم داخل وي، چې مفعول مطلق د هغه خبر نه وي، یا مفعول مطلق مکرر راغلی وي، لکه (ما انت الا سیرًا و ما انت الا سیرالبرید، وانما انت سیرًا وزیدًا سیرًا سیرًا).

**تشریح:** په مذکوره عبارت کې مصنف رحمه الله د مفعول مطلق د دریو قسمونو لپاره د استعمال په اعتبار سره پنځه مسئلې بیانوي:

**لومړۍ مسئله:** فالأول لا یُثنّٰی ولا یُجمع:

د مفعول مطلق لومړی قسم یعني مفعول مطلق د تاکید لپاره لومړۍ مسئله داده، چې دا کله هم د تثنیه او جمع په شکل نسي راتلای، شارحینو د دې دوې وجې لیکلې دي:

**لومړۍ وجه:** دا چې فعل اصل دی او مصدر یې فرع دی، نو څرنګه چې فعل تثنیه او جمع نسي راتلای، نو مصدر (چې فرع) دی دا خو په طریقه اولی نسي راتلای، که نه د اصل پر فرع زیاتوب لازمېږي.

دوهمه وجه: دا ده چي د مفعول مطلق دغه قسم صرف پر ماهیت دلالت کوي، نه چي پر تعداد، حال دا چي په تثنیه او جمع کي تعداد وي، ځکه یې نو دلته وویل، چي دا تثنیه او جمع نسي راتلای.

**بخلاف اخویه**: په مفعول مطلق تاکیدي کي خو تثنیه او جمع نسي راتلای، خو په پاتې نورو کي راتلای سي، ځکه چي مفعول مطلق عددي وي، د عدد لپاره خو عدد دوه کېدای سي او تر دوو زیات هم، لکه (جلستُ جلستین او جلسات) او مفعول مطلق نوعي، یعني کوم چي د نوع ښودلو لپاره راځي، نو په هغه کي هم تثنیه اوجمع ځکه راتلای سي، چي د یو شی انواع څو قسمه کېدای سي.

**دوهمه مسئله**: و قد یکون بغیر لفظه:

دوهمه مسئله دا بیانوي، چي کله کله مفعول مطلق د فعل مذکور له مادې پرته له بلې مادې څخه هم راځي، لکه: (جلستُ قعودًا او قعدتُ جلوسًا) وغیره، دېته (مفعول مطلق من غیر لفظه او مفعول مطلق مغائر عن فعله) هم ویل کېږي، یاد ساتئ، چي د مغائراتو درې صورتونه دي:

①: المغائرة فی المادة فقط: یعني مفعول مطلق د فعل مذکور له مادې څخه نه وي، بلکي له کومې بلې مادې څخه وي، لکه: (جلستُ قعودًا او قعدتُ جلوسًا) وغیره.

②: المغائرة فی الباب فقط: یعني د فعل مذکور او مفعول مطلق ماده یوه خو وي، لیکن باب یې بېل، بېل وي، لکه (انبت الله نباتًا) دلته (انبت) د افعال له باب څخه ده او (نباتًا) د نصر ینصر له باب څخه ده.

③: المغائرة فی المادة والباب کلیهما: یعني د مفعول مطلق او فعل مذکور دواړو ماده هم بیله، بیله وي او باب یې هم بېل، بېل وي، لکه (فاوجس فی نفسه خیفة موسی) دلته د (فاوجس) ماده هم بیله ده، د افعال له باب څخه ده او (خیفة) کوم چي مفعول مطلق دی، د دې ماده هم بیله ده او د فتح یفتح له باب څخه ده.

د مغائرت دا درې سره طریقې جائزي دی، وجه یې داده، چي په دغو درې سره طریقو کي ماده که څه هم بدله ده، لیکن د مصنف رحمه الله علیه لګول سوی (بمعناه)

شرط په سبب کي راځي، یعني په دریو سره صورتونو کي مفعول مطلق د ماقبل فعل په معنا دی، که څه هم د هغه له مادې او باب څخه نه دی.

**دریمه مسئله:** وقد یُحذف الفعل لقیام قرینة جوازًا:

دریمه مسئله داده، چې له اصل طریقې پرته د مفعول مطلق د فعل په هکله یوه طریقه دا هم ده، چې که چیري د ده پر حذف کېدو کومه قرینه موجوده وه، نو د کلام د مختصر جوړولو لپاره دده حذفول جائز دي، لکه چي یو څوک له سفر څخه راځي، نو د ده لپاره وویل سي (خیرمقدم) دا په اصل کي (قدمتَ قدومًا خیرمقدم) و، دلته که چېري فعل حذف هم کړل سي، نو د ده پر موجود کېدو له موږ سره قرینه حالیه موجوده ده او هغه داده، چي ددغه مسافر را رسېدل او دده د راتلو حالت پخپله دلالت کوي، چي دلته فعل محذوف دی.

بیا چي دغه فعل موږ حذف کړ، نو د عبارت تقدیر داسي کېږي: (قدومًا خیر مقدمٍ) بیا (قدومًا) هم حذف کړل سو، (خیرمقدم) یې قائم مقام جوړ سو، ځکه چي (خیرمقدم) مضاف مضاف الیه صفت جوړېږي، د (قدومًا) مصدر لپاره او د موصوف او صفت حکم یو وی، ځکه نو دی د هغه قائم مقام جوړ سو.

که یو څوک سوال وکړي، چي دلته (خیرمقدم) صیغه داسم تفضیل ده، کومه چي په اصل کي (اخیرٌ) و، دا مفعول مطلق څرنګه جوړ سوی؟، حال داچي د مفعول مطلق مصدر کېدل ضروري دي؟

د دې دوه جوابونه دی: یو دا چي دا که څه هم پخپله مصدر نه دی، لېکن تر ده مخکي (قدومًا) محذوف دی او دا یې صفت دی او د موصوف او صفت حکم یو وي او هغه چونکه مصدر دی، نو دا هم مصدر کېږي.

دوهم جواب دادی، چي (خیرٌ) مضاف دی د (مقدمٍ) وطرفته، کوم چي مصدر دی او د مضاف و مضاف الیه حکم یو وي، او هغه حذفول یا خو سماعي وي، یا قیاسي، سماعي دا معنا، چي چیري دفعل پر حذف کولو کومه قاعده، یا قانون دلالت نه کوي، یوازي داچي له عربو څخه موږ داسي اورېدلی دی، یا د دوی په کتابونو کي لیکلی په لاس راغلی، نو څرنګه چي هغوی اهل لسان دي، ځکه نو په داسي شیانو کي موږ د دوی اتباع کوو.

او قیاسي دا معنا، چي د فعل پر حذف کېدو له موږ سره کومه قاعده او قانون شتون لري.

د سماعي مثال، لکه: (سقیًا) دا په اصل کي (سقاک الله سقیًا) و او (رعیًا) په اصل کي (رعاک الله رعیًا) او (خیبةً) په اصل کي (خاب خیبةً) و او (جدعًا) (جدعَ جدعًا) او (حمدًا) په اصل کي (حمدتُ حمدًا) و او (شکرًا (شکرتُ شکرًا) او (عجبًا) په اصل کي (عجبتُ عجبًا) و، نو په دې ټولو ځایونو کي د فعل حذفول واجب دی، وجه یې څه ده؟، نو هغه زموږ په پوهه کی نسته، ځکه چي سماعي دي او په سماعي شیانو کي موږ د عقل نېلی نسو زغلولای.

**پنځمه مسئله:** و قیاسًا في مواضع:

له دې ځایه د مفعول مطلق لپاره پنځمه مسئله بیانوي، چي اووه قسمه مقامات داسي دي، چیري چي په قیاسي توګه یعنی د قانون او قاعدې له مخې دا فعل حذف کېږي.

### د فعل په وجوبي توګه د حذفولو لومړی مقام

د فعل په وجوبي توګه د حذفولو لومړی مقام:

ما وقع مثبتًا بعد نفيٍ او معنیٰ نفي داخل علیٰ اسم لا یکون خبرًا عنه:

لومړی مقام دا دی، چي چیري مفعول مطلق تر (الا) وروسته مثبت واقع سي او تر ده مخکي داسي اسم منفي سوی وي، د کوم لپاره چي دا مفعول مطلق خبر نسي کېدای، دا راز که چیري مفعول مطلق تر (انّما) وروسته مثبت واقع سوی وي او تر ده مخکي داسي اسم وي، له کوم څخه چي د دغه مفعول مطلق خبر کېدل صحیح نه وي، نو په دې دواړو صورتونو کي د فعل حذفول واجب دي، د لومړي صورت لپاره د کتاب مصنف رحمه الله دوه مثالونه راوړي دي:

په لومړی مثال کي مفعول مطلق د نکره مفرده په صورت دی او په دوهم کي د مرکب اضافي او معرفه په صورت کي ده، لکه (ما انتَ الّا سیرًا) او (اما انتَ الّا سیرَ البرید)، نو په دې سره دا ښودل غواړي، چي مفعول مطلق که معرفه وي، یا نکره او مفرد وي، یا مرکب په هر صورت کي د ده فعل حذف کېږي، لکه (ما انْتَ الّا سیرًا)، دا په اصل کي (ما انتَ الّا تسیرُ سیرًا) و، دلته (سیرًا) مفعول مطلق تر

(الّا) وروسته مثبت واقع سوی دی او ترده مخکې (ما انتَ) اسم منفي راغلی دی او ځيني (سيرًا) خبر نسي جوړېدای، نو په اخير کي (تسيرُ) فعل حذف کړل سو.

**قرينه:** پر دې حذف قرينه د ده د قائمقام (سيرًا) موجود کېدل دي، ځکه (سيرًا) ته که چېري وکتل سي، نو دا په دغه جمله کي له مذکوره کلماتو څخه د يوې لپاره هم معمول نسي کېدای او بل طرف چي کله موږ وکتل، نو په ده کي عمل سوی دی، ځکه چي منصوب دی، نو په لازمي توګه موږ وويل، چي د ده منصوب کېدل د کوم عامل ناصب پر موجودېدو دلالت کوي او هغه (تسيرُ) فعل کېدای سي، ځکه چي په عواملو کي قوي عامل فعل دی.

نو خلاصه دا راوزي، چي په داسي ځايونو کي که چېري موږ په عبارت کي فعل و نه ليکو، نو هم هلته د ده پر موجود کېدو د (سيرًا) په څېر کوم مصدر دلالت کوي، ځکه نو د داسي فعل حذفول واجب وي.

**دوهمه وجه:** د دغه فعل پر حذف کېدو داده، چي په داسي جملو کي زموږ مقصد دوام او استمرار وي، او په فعل کي دوام او استمرار نه وي، بلکي هغه پر حدثي معنا دلالت کوي، نو ګواکي چي هغه زموږ د مقصدي معنیٰ په مراد اخستلو کي يو خنډ جوړېدی، ځکه نو هغه په وجوبي ډول حذف کړل سو، د دې لپاره چي خنډ نسي.

**دوهم مثال:** (ما انتَ الّا سيرَالبريد) دا په اصل کي (ما انتَ الّا تسيرُ سيرَالبريد) و، په دې کي هم هماغه تفصيل دی، کوم چي په مخکني مثال کي تېر سو، لنډه دا چي د (سيرالبريد ماانتَ) لپاره خبر نسي جوړېدای، او د جمله په مذکوره کلماتو کي کوم عامل ناصب هم داسي نسته، چي ده ته يې نصب ورکړی وي، نو له مجبوری څخه موږ وويل، چي دا هم پر فعل محذوف دلالت کوي او هغه (تسيرُ) دی.

دريم مثال (انّما) د نفي معنیٰ ورکوي (انّما انتَ سيرًا) دا هم په اصل کي (انّما انتَ تسيرسيرًا) و په دې کی هم هماغه مخکنی تفصيل دی.

## د فعل په وجوبي توګه د حذف کېدو دوهم مقام

د فعل په وجوبي توګه د حذف کېدو دوهم مقام:

**او وقع مکرّرًا:** دوهم هغه مقام چیرې چې د مفعول مطلق د فعل حذفول واجب وی، هغه دادی، چې یو ځای مفعول مطلق مکرر راغلی وي، تر ده مخکی داسې اسم وي، کوم چې مبتداء وي او د خبر غوښتنه هم کوي، لیکن سره له دې هغه مفعول مطلق دده لپاره خبر نسي جوړېدای، لکه (زیدٌ سیرًا سیرًا) دا په اصل کې (زیدٌ یسیرُ سیرًا) و، (سیرًا) فعل حذف کړل سو، (سیرًا) یې قائم مقام سو، نو (زیدٌ سیرًاسیرًا) سو.

دلته د فعل د حذف او بیا د مفعول مطلق دده پر ځای د درېدو قرینه داده، چې له داسې جملې راوړلو څخه مقصود زموږ دوام او استمرار وي او فعل له استمرار سره مخالف وي، ځکه نو د ده حذفول واجب وبلل سوه.

چېرې چې مفعول مطلق مکرر خو وي، لیکن تر ده مخکی هېڅ اسم نه وي، بلکې فعل وي، نو په داسې ځای کې فعل نه حذف کېږي، بلکی پر خپل حال به پاتېږي، لکه د الله جل جلاله وینا (کلا اذا دُکّتِ الارض دکًا)، ځکه چې موږ شرط لګولی وو چې تر مکرر مفعول مطلق مخکی داسې اسم وی، چې مبتداء وی او د خبر غوښتنه کوي، لیکن دلته تر مفعول مطلق مخکې فعل مجهول واقع سوی دی، کوم چې مبتداء نسي کېدای.

## پنځوسم (۵۰) درس

## د قیاسي وجوبي حذف درېیم او څلورم ځای

و منها ما وقع تفصیلًا لأثر مضمون جملة متقدّمةٍ، مثل: (فشدُّوا الوثاق فاما منًّا بعد واما فداءً) و منها ما وقع للتشبیه علاجًا بعد جملة مشتملة علیٰ اسم بمعناه و صاحبه، نحو: مررت به فاذا له صوتٌ صوتَ حمارٍ و صراخٌ صراخَ الثکلیٰ.

**ترجمه:** او له هغو اوو ځایونو څخه چیرې چې د فعل حذفول واجب دي، هغه مفعول مطلق هم دی، کوم چې له مخکنی جملې څخه د راوتلي مصدر د غرض او غایې د تفصیل بیانولو لپاره راوړل سوی وي، لکه: (فشدُّوا الوثاق فاما منًّا بعد

واما فداءً)، یعنی هغه مشرکان ټېنګ وتړئ، بیا تر دې وروسته یا د احسان معامله کول دی، یا فدیه اخستل دی او (ځلورم) په دوی کی هغه مفعول مطلق دی، کوم چي د تشبیه لپاره وی، او له افعال جوارح څخه د یو فعل مصدر وي او دا تر داسي جمله وروسته راغلی وي، کومه چي پر داسي اسم مشتمله وي، کوم چی د مفعول مطلق په معنا وی او د اسم پر صاحب مشتمل وي، لکه: (مررت به فاذا له صوتٌ صوتَ حمارٍ و صراخٌ صراخَ الثکلی).

**تشریح:** له دې ځایه د فعل د وجوبي قیاسي حذف درېیم او ځلورم صورت بیانوي:

د فعل د حذف وجوبي درېیم مقام:

منها ما وقع تفصیلا لأثر مضمون جملة متقدّمةٍ: چېري چي تر مفعول مطلق مخکي داسي جمله فعلیه وي، له کومې څخه چي فهمول سوئ مصدر د خپل فاعل، یا مفعول وطرفته مضاف وي او پوره مطلب و غرض و غایه یې په پوهه کی نه راځي (ځکه چی دا مرکب اضافي وي، د مرکب ناقص په حکم کي وي) او د ده دتفصېل او غرض د انواعو د بیانولو لپاره مخکي مفعول مطلق راغلی وي، نو د داسي مفعول مطلق د فعل حذفول واجب دی، لکه: (فشدُّوا الوثاق فاما منًّا بعد واما فداءً) په دې کی د جمله متقدمه مصداق (فشدوا الوثاق) دی، پکي (فشدّوا) فعل او فاعل دي او (الوثاق) مفعول به دی، فعل سره له خپل فاعل او مفعول به جمله فعلیه دي.

د شَدَّ یشدّ مصدر (شدًّا) راځي، نو ګواکي چي له مذکوره جمله متقدمه څخه همدا مصدر وفهمول سو، د خپل مفعول وطرفته مضاف کړل سو، نو (شدّوا الوثاق) جوړ سو، په معنا د غاړو تړلو.

نو سوال پیدا کېدی، چي د غاړو د تړلو غرض او غایه څه دي؟، په وروسته کي یې مفعول مطلق راوړ، د هغه تفصېل یې وکړ، چي (فاما منابعد) چی زمابندګانو! د دې مقصد دادی، چي تر تړلو وروسته یې یا ازاد کړئ، احسان پر وکړئ، نو د

(الانسان عبدالاحسان) په مخته ښودلو سره به یا دا مشرکين بنديان مسلمانان سي، يا به لږ تر لږه په راتلونکي کي تاسو ته تکاليف خو نه رسوي.
(و اما فداءً) په دې کي دوهم مقصد دا بيانوي، چي له دوی څخه فديه واخلئ، دوی پرېږدئ، لهذا د آيت مبارکه تقدير داسي کېږي: (فشدُّوا الوثاق تمنُّون منًّا واما تفدون فداءً) ترجمه يې داسي کېږي: نو مشرکين ټينګ وتړئ، بيا يې تر تړلو وروسته يا خو پرېږدئ، احسان ورباندي وکړئ، په احسان کولو سره، يا فديه ځيني واخلئ په فديه اخستلو سره.
و هکذا (جلسَ زيدٌ فاما اکلًا بعد و اما شربًا) دلته هم جمله متقدمه (جلس زيدٌ) ده، له کومې نه چي د حاصل (راوتلې) مصدر اضافت داسي سوی (جلوس زيد فاما اکلًا و اما شربًا).
دلته سوال کېږي، چي د (فشدّوا الوثاق) رنګه هرومرو مرکب اضافي جوړوئ، حال دا چي پر خپل حال پرېښودل سي، نو مرکب مفيد کېږي، دومره تکلفاتو ته ضرورت نه و؟
د دې جواب دادی، چي جنابه! ستا خبره بلکل سمه ده، ليکن په دې پسې په (فاما منًّا بعد واما فداءً) سره يې تفصيل بيان کړی دی، حال دا چي تفصيل د اجمال کېږي او مذکوره جملې که چېري پر خپل حال پاتې سي، نو پکی اجمال نه پاتېږي، لکه چي تاوېل او که اجمال نه وي، نو وروستنی تفصيل بېکاره ثابتېږي، حال دا چي قرآنکريم له داسي عيبونو څخه پاک دی، نو دا خبره ثابته سوه، چي په مخکی کي اجمال ومنو او هغه مرکب اضافي سي، نه چي مرکب مفيد او بيا د دغه اجمال تفصيل را روان مفعول مطلق وکړي.
نو ګواکی چي د (فاما منًّا بعد) د تفصيل لپاره کېدلو د فعل د مصدر په تاويل پر کېدلو او د خپل فاعل، يا مفعول وطرفته پر مضاف کېدو دلالت وکړ.
تر دې وروسته دا خبره په ذهن کی ونيسئ، چي په داسي ځای کي د فعل په وجوبي ډول د حذف کېدو دوې وجې دي:

①: لومړی دا چي که چیري فعل حذف نسي، نو تحصیل د حاصل او اشتغال په ما لا یعني لازمېږي، ځکه چي له (منًا او فداءً) دواړو څخه مذکوره مطلب او غرض و غایبت پخپله معلومېږي، نو فعل ذکرکولو ته ضرورت نه پاتېږي.
②: دوهم دا چي دلته که څه هم فعل پخپله ذکر سوی نه دی، لېکن قائم مقام او د ده له طرفه ترجماني کوونکی مفعول مطلق موجود دی او د فعل پر حذف کېدو قرینه هم موجوده ده (یعنی د مفعول مطلق منصوب کېدل)، ځکه چي دلته له فعل محذوف پرته بل هېڅ عامل ناصب نسته.
اوس د عبارت د کلماتو هرې یوې بیل، بیل مطلب واضح کېږي:
جملةٌ متقدمة: یعنی تر مفعول مطلق مخکی یوه جمله راغلې وي.
له مضمون څخه مراد دادی، چي له مخکنۍ جملې څخه د راوتلي مصدر اضافت دخپل فاعل، یا مفعول وطرفته سوی وي.
له اثر څخه مراد غرض و غایه دي.

**د فعل په وجوبي ډول د حذف کېدو څلورم مقام**

د فعل په وجوبي ډول د حذف کېدو څلورم مقام:
و منها ما وقع للتشبیه علاجًا بعد جملة مشتملة علیٰ اسم بمعناه وصاحبه:
په دې عبارت کي د فعل په وجوبي ډول د حذف کېدو څلورم مقام ذکر کېږي، چي هرهغه مفعول مطلق کوم چي له افعال جوارح څخه د کوم فعل مفعول وی او مشبه به وي، یعني له ده سره د یو شی تشبیه ورکول سوي وي او دا مفعول مطلق تر داسي جملې وروسته واقع سوی وي، په کومه کی چي د دغه مفعول په معنا اسم هم وي او صاحب اسم هم، نو د داسي مفعول مطلق د فعل حذفول واجب دي، لکه (مررت بزید فاذا له صوتٌ صوتُ حمار).
دلته په وجوبي ډول پر حذف کېدو قرینه او قائم مقام دواړه سته، قرینه خو د مفعول مطلق منصوب کېدل دي، کوم چي د خپل عامل ناصب تقاضا کوي او په پوره جمله کي د ده لپاره کوم نصب ورکوونکی عامل نسته، کوم چي ده ته نصب ورکړی وي، نو موږ مجبورًا فعل محذوف ومانه، او قائم مقام هم دلته همدا مفعول مطلق دی.

وګورئ! (صوت حمارٍ) مضاف سره له مضاف الیه مفعول مطلق دی او دا مشبه به دي، ځکه چې ورسره د مخکني اسم (صوت) تشبیه ورکول سوې ده او تر ده مخکې د مخکې جمله متقدمه مصداق (فاذا له صوتٌ) دی، کوم چې د مفعول مطلق په معنا پر اسم یعنی (صوتٌ) او پر صاحب اسم یعنی (له) مشتمل دی، نو یکې (یصوتُ) فعل په وجوبي ډول محذوف دی، د اراز په (مررت به فاذا له صراخ کصراخ الثکلی) کې (یصرخ) فعل په وجوبي ډول محذوف دی.

**فائده ①:** مصنف رحمه الله علیه مسئله یوه او مثالونه دوه ځکه بیان کړې، چې دا وښیي چې د مفعول مطلق د ذوی العقول وطرفته هم اضافت کېدای سي، لکه په دوهم مثال کې او دغیر ذوی العقول وطرفته هم، لکه په لومړي مثال کې.

دوهمه وجه دا چې مصنف رحمه الله علیه غواړي را وښیي چې دا د معرفه وطرفته هم مضاف کېدای سي، لکه په دوهم مثال کې او دنکره وطرفته هم لکه په لومړي مثال کې.

**فائده ②:** د مفعول مطلق په هکله موږ ویلې وه، چې دا کله کله د عدد د بیانولو لپاره راځي او کله کله د نوع د بیانولو لپاره او کله، کله د تاکید لپاره راځي، دلته په پورتنیو دوو مثالونو کې د نوع د بیان لپاره دی.

## یو پنځوسم (۵۱)

## د حذف وجوبي پنځم، شپږم، او هفتم ځای

و منها ما وقع مضمون جلمة لا محتمل لها غیره، نحو: له علیَّ الف درهمٍ اعترافًا و یسمّٰی تاکیدًا لنفسه، و منها ما وقع مضمون جملةٍ محتمل غیره، نحو: زیدٌ قائمٌ حقًّا و یسمّٰی تاکیدًا لغیره ومنها: ما وقع مثنّٰیْ، مثل: لبّیک و سعدَیک.

**ترجمه:** او له دغو ځایونو څخه هغه مفعول مطلق هم دی، چې د داسي جملې مضمون واقع سوی وي، په کوم کی چې له ده پرته بل احتمال نه وي، لکه (له

عليَّ الف درهمٍ اعترافًا) او نومول سوی په تاکید لنفسه سره او له دغو ځایونو څخه هغه مفعول مطلق هم دی، کوم چې د داسې جملې مضمون واقع سوی وي، په کومه کی چي له ده پرته د غیر احتمال هم وي، لکه (زيدٌ قائمٌ حقًا) او نومول کېږي دا په تاکید لغیره سره او له دغو ځایونو څخه هغه مفعول مطلق هم دی، کوم چې تثنیه واقع سوی وي، لکه (لبّیک وسعدَیک).

**تشریح:** د نن په سبقه کي مصنف رحمه الله د مفعول مطلق د فعل په وجوبي ډول د حذف کېدو پنځم، شپږم او اووم مقام بیانوي:

## د مفعول مطلق د فعل په وجوبي توګه پنځم مقام

د مفعول مطلق د فعل په وجوبي توګه پنځم مقام:

ومنها ما وقع مضمون جملة لا محتمل لها غيره: چې مفعول مطلق د داسي جملې ماحصل او خلاصه وي، په کوم کي چي د مفعول مطلق له جوړېدو پرته د بل کوم شی ګنجائش نه وی، نو د داسي مفعول مطلق فعل حذفول واجب دي، لکه (له عليَّ الف درهم اعترافًا) دا په اصل کي (له عليَّ الف درهم اعترفت اعترافًا) و، په دې جمله کي (اعترافًا) مفعول مطلق دی، کوم چې د مخکنۍ پوره جملې خلاصه او ځینی راوتلی دی، ځکه د (له عليَّ الف درهم) مطلب هم اعتراف او اقرار کول دي او د (اعترافًا) خو معنی ده اعتراف کول، په دې کي د مفعول مطلق خلاف ګنجائش بلکل نسته، ځکه چې د اعتراف په مقابله کي انکار او دروغ راځي او په مذکوره جمله کي د دې دواړو هېڅ ګنجائش نسته.

یسمّیٰ تاکیدًا لنفسه: داسي مفعول مطلق ته تاکید لنفسه هم ویل کېږي، ځکه چې د دواړو مدلول او مقصد یو دی.

## د مفعول مطلق د فعل په وجوبی د حذفولو شپږم ځای

د مفعول مطلق د فعل په وجوبی د حذفولو شپږم ځای:

ومنها ما وقع مضمون جملة لها محتمل غيره: یعني مفعول مطلق د داسي جملې ماحصل او خلاصه وي، په کومه کي چي له مفعول مطلق پرته د بل کوم شی هم ګنجائش وي، لکه (زيدٌ قائم حقًا) دا په اصل کي (زيدٌ قائم احقُّ حقًا) و، (حَقًا)

مفعول مطلق دی، کوم چي د (زیدٌ قائمٌ) خلاصه او ماحصل دی، لیکن په (زیدٌ قائمٌ) کي له ده پرته یعني د ده د ولاړېدو هم احتمال و، ځکه چي دا جمله خبریه ده او په جمله خبریه کي د صدق او کذب دواړو احتمال وي، نو د عبارت تقدیر داسي کېږي: (زیدٌ قائمٌ کذبًا وبَاطِلًا)، لیکن (حقًا) مفعول مطلق کوم چي د تاکېدلپاره دی، نوی راغی، د دروغو احتمال یې ختم کړ او د رشتیا د احتمال تاکید یې وکړ.

و یسمّیٰ تاکیدًا لغیره: چي دا راز مفعول مطلق ته تاکید لغیره هم ویل کېږي، ځکه چي څرنګه دا د خپل فعل د تاکید لپاره راځي، همدا راز د غیر دا احتمال په تاکید سره د دفع کېدو لپاره هم راځي.

### د مفعول مطلق د فعل په وجوبي توګه د حذف کېدو اووم مقام

د مفعول مطلق د فعل په وجوبي توګه د حذف کېدو اووم مقام:

و منها ما وقع مثنّی: په دې عبارت کي د پوهې دوې خبرې دي: ①: د اووم ځای وضاحت، ②: د لبیک وسعدیک تحقیق:

**لومړۍ خبره**: د اووم ځای وضاحت:

مصنف رحمه الله علیه د مفعول مطلق د فعل د حذف کېدو اووم ځای بیانوي، چي هر هغه ځای چېري چي مفعول مطلق دتثنیه په شکل واقع سوی وي او مراد په تثنیه سره تثنیه نه وي، بلکي کثرت او تکرار وي، په دې شرط چي اضافت یې د فاعل، یا مفعول وطرفته سوی وي، د داسي مفعول مطلق د فعل حذفول هم واجب دي، لکه: (لبّیک وسعدیک)، د حذف وجه یې هماغه لومړۍ وجه ده، چي پخپله مفعول مطلق د فعل محذوف قائم مقام دی او منصوب کېدل یې د فعل پر حذف قرینه ده، چي تفصیل یې تېر سوی دی.

### د لبیک او سعدیک تحقیق

**دوهمه خبره**: د لبیک او سعدیک تحقیق:

لبیک: دا مرکب اضافي دی، هغه مصدر چي دتثنیه اضافت یې د خپل مخاطب وطرفته سوی دی، دا په اصل کي (اِلبُ لک البابَین)، معنا یې: ده د طاعت لپاره

چمتو اوسېدل، لکه چې د (البّ) فعل حذف کړل سي، مفعول مطلق يې پر ځای ودرېږي، نو (لک البابَینِ) سو، تر دې وروسته ثلاثي مزيد د (اِفعال د باب) مصدر د مجرد (نصرينصر) وطرفته واپس کړل سو، نو (لَبَّین) سو، بيا زوائد يعنې لام حرف جر حذف کړل سو، اضافت يې د خپل مفعول (کاف ضمير مخاطب) و طرفته وسو، نو نون د تثنيه يې ځيني وغورزاوه، (لَبَّيکَ) جوړ سو.

**د فعل د حذف قرينه:**

لکه څرنګه چې ته پوهېږې، چې په اصل کې دا (اِلبُّ لک البابَینِ) و، لومړی فعل حذف کړل سو، بيا له مزيد څخه د مجرد وطرفته راغی او له مينځ څخه يې زوائد حذف کړل سو، نو دا دومره مراحل د دې لپاره طی (پَل) کړل سو، چې مخاطب ته کله هم وويل سي، نو هغه سمدستي جواب ورکولو ته چمتو سي او حکم پر ځای کړي، که نه نو که چېري دی پر خپل اصل پاتې سي، نو د امر پر ځای کول سمدستي محال کېږي، ځکه نو په اسم کي ترمېم او تسهيل وکړل سو، لبيک ځيني جوړ سو (وقس علیٰ هذا کلمة سعديک)، صرف دومره فرق يې سته، چې (لَبَّيکَ) په اصل کي تر فعل وروسته لام جاره منل کېږي (کما فی البِّ لک)، حال دا چي په (سعديک) کي دا راز نه دی، ځکه چي (اسعدَ يُسعد اسعادًا) متعدي بنفسه او (البَّ يُلبُّ البابًا) متعدي باللام دي.

**فائده:** لبيک بېله سعديک استعمالول جائز دي، لېکن د دې پر عکس جائز نه دی، ځکه چي (سعديک) که چېري ته ووايې، نو تر دې مخکي (لبيک) ويل ضروري دي.

دا دواړه که څه هم تثنيه دی، ليکن مراد ځيني کثرت او تکرار دي، له همدې وجې د (لبيک) معنا داسي کېږي: (البُّ بطاعتک البابًا بعد البابِ) او د (سعديک) معنا داسي کېږي: (اسعد اسعادًا بعد اسعادٍ).

**درېيمه خبره:** يو سوال او د ده جواب:

دلته سوال کېږي، چي جنابه! ته له څو ورځو نه د مفعول مطلق کوم چي د تاکيد لپاره وي مسائل او احکامات بيانوي، ليکن څرنګه چي دا مسائل پای ته

ورسېدل، نو تا تر ټولو مخکي د لومړی مسئلې خلاف ورزی پیل کړه، هغه په دې دول چې دلته تا مفعول مطلق تاکیدد تثنیه په صورت کي راوړی، حال دا چې هلته خو موږ ویلې وه، چې فالاول لا یُثنیٰ ولا یُجمع؟
د دې جواب دادی، چي جنابه! هلته چې د کومې تثنیه او جمع نفې سوې وي، له هغه څخه د حقیقي تثنیه او جمع نفې مراد وي، پاتې سو دلته، نو دا که څه هم په لفظي توګه تثنیه دي، لېکن په حقېقت کي تثنیه نه ده، بلکې له دې څخه مراد تکرار او کثرت دي.
**یادونه:** د حاشیه والا د هندي په حواله دلته یوه نکته لیکلې ده، چې په داسې ځای کي د مفعول مطلق فعل حذفول که څه هم وجوبي قیاسي دی، لیکن پر داسي مصادرو تاسو مصادر نسي قیاسولای، ځکه چې مصادر پخپله سماعي وي.

## دوه پنځوسم (۵۲) درس
## د مفعول به بیان

المفعول به: وهو ما وقع علیه فعل الفاعل، نحو: ضربتُ زیدًا، وقد یتقدّم علی الفعل، نحو: زیدًا ضربتُ، وقد یُحذف الفعل لقیام قرینةٍ جوازًا، کقولک: زیدًا، لمن قال: من أضرب؟، و وجوبًا فی اربعة مواضع: الاول سماعیٌّ، نحو: امرأو نفسه، و(انتهوا خیرًالکم)، واهلًا و سهلًا.
**ترجمه:** مفعول به هغه اسم دی، پر کوم چې د فاعل فعل واقع سوی وي، لکه (ضربتُ زیدًا) او کله کله پر خپل فعل مخکي کېږي هم لکه: (زیدًا ضربتُ) او کله کله د قرینې په وجه په جوازي ډول حذف کېږي هم، لکه چې تاسو دا وواياست (زیدٌ) د هغه چا په جواب کي چې پوښتنه وکړي (من اضرب؟) یعنی ما څوک وواهه او په وجوبی ډول یې د حذف کېدو څلور ځایونه دي: لومړی په دوی کي سماعي دي، لکه: (امرأونفسه) او (انتهوا خیرًالکم) واهلا و سهلاً.
**تشریح:** د نن په سبقه کي دوې خبرې دي:

①: د مفعول به تعریف او د قیدونو فائدې، ②: له مفعول به سره ترلې څه مهمې مسئلې.

## د مفعول به تعریف

**لومړۍ خبره:** د مفعول به تعریف:

**المفعول به:** د دې لغوي تحقیق دادی، چې (المفعول) د اسم مفعول صیغه ده، په پیل کې چې کوم (الف لام) راغلی دی، هغه د (الذی) په معنا دی او په (به) کې (باء) د سببیت ده او ((ها)) ضمیر دغه (الف لام) ته راجع دی، کوم چې د (المفعول) په پیل کې دی، او د (الذی) په معنا دی، نو اوس د عبارت تقدیر داسې کېږي: (المفعول به، ای الذی فعل الفعل لاجله)، یعني هغه شی، د کوم له وجې چې یو کار سوی وي.

او اصطلاحي معنا یې بخپله مصنف رحمة الله علیه بیان کړې، چې (هو ما وقع علیه فعل الفاعل)، یعني مفعول هغه اسم دی، چې د فاعل فعل، هغه که منفي وي، یا مثبت واقع سوی وي، لکه: (ما ضربَ زیدٌ عمروًا او ضرب زیدٌ عمروًا).

د قیدونو فائدې:

په مذکوره عبارت کې د (هو) ضمیر مرجع (المفعول به) ده، کوم چې معرّف دی او (ما وقع علیه فعل الفاعل) یې تعریف دی، بیا په دې تعریف کې (ما) جنس ده، کوم چې هر قسم اسماؤ ته شامل ده، (وقع علیه فعل الفاعل) دا فصل دی، له وجې یې له مفعول به پرته پاتې ټول اسماء ووتل.

**دوهمه خبره:** له مفعول به سره ترلې څو مهمې مسئلې:

**لومړۍ مسئله:** د مفعول به پر خپل فعل (عامل) مخکی کېدل:

وقد یتقدّم علی الفعل: مصنف رحمة الله علیه په دې عبارت کې له مفعول به سره ترلې لومړۍ مسئله بیانوی، چې کله کله مفعول به پر خپل فعل (عامل) مخکې کېږي، د مصنف رحمة الله علیه د دې مطلق بیانول دېته اشاره ده، چې د مفعول به مخکې کول کله په جوازي ډول وي، او کله په وجوبي ډول، د جوازي مثال، لکه (ضربتُ زیدًا) او لکه چې د حضرت حسان بن ثابت رضی الله عنه په قصیده کی هم دي:

وَاَحْسَنُ مِنْکَ لَمْ تَرَ قَطُّ عَیْنٌ * وَ اجْمَلُ مِنْکَ لَمْ تَلِدَالنِّسَاءُ

**ترجمه**: تر تا ښائسته هېڅکله سترګو لیدلی نه دی او تر تا ښائسته هېڅ مور زېږولی نه دی.

او د وجوبي پېژندګلوي په دې ډول ده، چې په مفعول کې د استفهام معنا موجوده وی، لکه چې یو څوک پوښتنه وکړي: من رأیتَ؟، دلته مَنْ د استفهام معنا ته متضمن دی او مفعول به دی، کوم چې مخکې سوی دی، ځکه چې حروف استفهام د کلام صدارت غواړي، دلته که چېرې مفعول به مخکې نکړل سي، نو د کلام صدارت له مینځه ځي.

د مفعول مخکې کول که جوازي وي، که وجوبي، دا ځکه ممکن دي، چې په ټولو عواملو کې فعل یو قوي عامل دی، یعنی که یې معمول مخکې وي، نو هم دی پکې عمل کولای سي او که وروسته وي، نو هم خپل عمل کولای سي (کما لاحظتَ فی الأمثلة آنفا).

## د مفعول به د عامل په جوازی ډول حذفول

**دوهمه مسئله**: د مفعول به د عامل په جوازی ډول حذفول:

و قد یُحذف الفعل لقیام قرینة جوازًا:

یعني کله کله (چې قرینه حالیه، یا مقالیه موجوده وي) د مفعول به عامل حذف کېږی، مثلاً یو سړی سوال وکړي، چې (مَنْ اضرب؟)، نو په جواب کې یې وویل سي: (زیدًا)، وګوره! دلته مفعول منصوب دی، لیکن د ده کوم ناصب عامل نه ښکاري، ځکه چې هغه حذف کړل سوی دی، او پر حذف یې قرینه مقالیه (یعني د سوال کوونکي سوال) دی او دا قاعده مخکې تېره سوه، چې (المذکور فی السؤال کالموعود فی الجواب) او په سوال کې اضرب فعل عامل موجود دی، نو ګواکي چې هغه دلته هم موجود دی، لېکن په تقدیري ډول، نو په لفظي توګه یې ذکر کولو ته کوم ضرورت پاتې نسو، ځکه حذف کړل سو.

او د قرینه حالیه مثال دادی، چې یو سړی د سفر سامان تیار کړي او احرام وتړي او (لبیک اللّٰهم لبیک ، لبیک لا شریک لک لبیک، ان الحمد والنعمة لک

والملک، لا شریک لک) په لوړ اواز په شدت او شوق سره وایې، تر سترګو یې ځاځکې، ځاځکي اوښکې هم څڅېږي، په دې کي یو څوک راسي، پوښتنه ځیني وکړي: (مکة؟)یا (حجّ البیت؟)، د ده په جواب کی هغه ووایې (نعم الحمد لله) اوس وګوره! (مکة) او (حجّ البیت) دواړه منصوب دی، سره له دې چي تر دوی مخکي هیڅ عامل ناصب نه لیدل کېږي او بیا هم موږ وایو، چی منصوب کېدل یې صحیح دي، ځکه چي تر دې مخکی (اتُسافر؟، یا أترید؟ فعل ناصب محذوف دی او د هغه پر حذف کېدو قرینه حالیه موجوده ده، ځکه دا حالت پخپله دا ښیي، چی دا سړی د حج په سفر روان دی.

## د مفعول به دعامل په وجوبي ډول حذفول

**دریمه مسئله**: د مفعول به دعامل په وجوبي ډول حذفول:

ووجوبًا فی اربعة مواضع:

دلته د کتاب مصنف رحمة الله علیه دریمه مسئله بیانوي، چي څلور قسمه داسي ځایونه دی، چېري چي د مفعول به عامل په وجوبي ډول حذف کېږي، په هغو څلورو کي لومړی سماعی او پاتې درې یې قیاسي دي.

سماعي دا معنا، چی پر حذف یې له موږ سره کومه قاعده او قانون شتون نلري، بس موږ یا خو له عربو حضراتو نه داسي اورېدلي وی، یا د دوی په کتابونو کي هداسي لیکلي وي، له همدې وجې مصنف رحمة الله علیه څلور مثالونه ذکر کړي دي:

**لومړی مثال**: امرأ ونفسه: یعنی دی او خپل ذات سره پرېږده، دلته تر (امرأ) مخکی (اترُکْ) فعل ناصب محذوف دی، چی له وجې یې (امرأ) منصوب معلومېږي، تر دې وروسته په (واو) کي دوې خبرې دي:

یوه دا چی (واو) د عطف لپاره سي، په دې صورت کي لکه څرنګه چي (امرأ) د (اترُکْ) په وجه منصوب دی، دا راز (نفسه) هم دده په وجه منصوب دی، ګواکی چی د دغو دواړو عامل محذوف دی.

دوهمه داچي دا (واو) د (مع) په معنا دی، نو بیا دا د مفعول معه کېدو په وجه منصوب دی، په دې صورت کي صرف د لومړي اسم (امرأ) فعل عامل محذوف کېږي.

**دوهم مثال:** (انتهوا خیرًا لکم) دلته (خیرًا) مفعول به دی، چي عامل ناصب يې محذوف دی، که چېري یو څوک ووایې، چي دا دي د (انتهوا) لپاره مفعول جوړ سي، د دې پر ځای چي د فعل محذوف لپاره مفعول جوړ سوی دی؟

د دې جواب دادی، چي جنابه! په دې صورت کي معنا خرابېږي، مثلا په دې صورت کي معنا داسی کېږي: (له هغه شی څخه منع سئ، کوم چي ستاسو لپاره غوره وي)، له دې خرابۍ څخه د ژغورنې لپاره موږ د ده اصل را وایست (انتهوا عن التثلیث وقصدوا خیرًا لکم) یعني ای نصاراوو! تاسو د تثلیث له عقېدې څخه منع سئ او د هغه شی قصد و هوډ وکړئ، چي ستاسو لپاره غوره وي، وګوره دلته د (خیرًا) عامل ناصب (اقصدوا) دی، کوم چي محذوف دی.

**درېیم او څلورم مثال:** اهلاً و سهلاً، دا دواړه هم منصوب دي او عامل ناصب مذکور نه دی، ځکه چي په اصل کي دا (اتیتَ اهلاً و وطئتَ سهلاً) و، یعنی تاسو خپل کورته راغلاست او تاسو پسته او نرمه مځکه پل کړه.

عرب حضرات خپل مېلمانه ته د ښه راغلي په مهال دا جمله وایې، په دې کي (اهلا او سهلا) د واړه مفعول به دي، عامل ناصب يې د مسافر د حال په قرینه حذف کړل سوی دی، او پر دې حذف له موږ سره کومه قاعده او قانون شتون نلري، بلکي له عربو څخه همداسي اورېدل سوي دي.

## دري پنځوسم (۵۳) درس

### دفعل په وجوبي، قیاسي ډول د حذف کېدو لومړی ځای (منادٰی)

والثانی المنادی، وهو المطلوب اقباله بحرف نائب مناب ادعو لفظًا او تقدیرًا، ویُبنی علی ما یُرفع به ان کان مفردًا معرفةً نحو: یازیدُ و یارجلُ ویازید ویازیدان و یازیدون، و یُخفض بلام الاستغاثة نحو: یا لزیدٍ و یفتح لالحاق الفها و لا لام فیه، نحو: یازیداه، ویُنصب ماسواهما، نحو: یاعبدَالله، ویاطالعًا جبلًا، ویا رجلًا لغیر معیّن.

**ترجمه:** او دوهم ځای منادیٰ ده او منادیٰ هغه اسم دی، په کوم سره چې متوجه کول د داسي حرف په ذريعه مطلوب وي، کوم چي د (ادعو) فعل قائم مقام وي، هغه که په لفظي ډول وي، که په تقديري ډول وي او منادیٰ مبني د رفع پر علامه وي، که هغه مفرد معرفه وه، لکه (یازیدُ ویارجلُ ویازیدان و یازیدون) او منادیٰ ته جر ورکول کېږي په لام استغاثه سره، لکه: (یالَزیدٍ) او منادیٰ ته فتح ورکول کېږي د الف استغاثه په لاحق کېدو سره او په دې وخت کې لام استغاثه نه کېږي، لکه (یازیداه) او له دې پرته نورو صورتونو ته نصب ورکول کېږي، لکه: (یا عبدَالله، ویا طالعًا جبلاً و یارجلًا).

**تشريح:** د نن په سبقه کي درې خبرې دي:

①: د فعل د حذف کېدو د دوهم ځای وضاحت، ②: د منادیٰ لغوي او اصطلاحي تعریف، ③: د منادیٰ قسمونه او اعراب یې.

**لومړی خبره:** د فعل د حذف کېدو د دوهم ځای وضاحت:

والثانی المنادیٰ: تر دې مخکي مصنف رحمه الله ويلې وه، چي (وَ وجوبًا فی اربعة مواضع)، نو له دغو څخه لومړی قسم کوم چې سماعی و، هغه تېر سو، اوس د قیاسي له دريو قسمونو څخه لومړی قسم بیانوي. او هغه دادی، چي چېرې منادیٰ مفعول به واقع سوي وي، نو په داسي ځای کي د عامل ناصب حذفول واجب دي، لکه (یازیدُ)، دا په اصل کي (ادعو زیدًا) و، نو (ادعو) فعل (عامل ناصب) حذف کړل سو، (یا) حرف نداء یې قائم مقام سوه، ځکه د نداء استعمال ډېر کېږي او ډېر استعمال د اختصار تقاضا کوی او اختصار د (ادعو) پر ځای په (یا) کي په پوره طریقه سره راځي.

## د منادیٰ لغوي او اصطلاحي تعریف

**دوهمه خبره:** د منادیٰ لغوي او اصطلاحي تعريف:

المنادیٰ: دا د مفاعلې له باب څخه د اسم مفعول صیغه ده، په معنا د را بلل سوي، د دې په پیل کي (الف لام) په معنا د (الذی) اسم موصول ده او پخپله منادیٰ دده صله ده، نو د عبارت تقدير داسي کېږي: (الاسم الذی يُنادیٰ).

او د نحاة په اصطلاح کې يې تعريف هماغه دی، کوم چې مصنف رحمة الله عليه بيان کړی دی: (هوالمطلوب اقباله بحرفٍ نائبٍ مناب ادعو لفظًا اوْ تقديرًا) يعنی منادٰی هغه اسم ده، په کوم سره چې ځان ته متوجه کول مطلوب او مقصود وي، او دا متوجه کول د داسې حرف په ذريعه وي، کوم چې د (ادعو) فعل قائم مقام وي، هغه قائم مقام حرف که په لفظ کې وي، لکه (يازيدُ) چې په اصل کې (ادعو زيدًا) و، يا په تقديري ډول وي، لکه (يوسف اعرض عن هذا) چې په اصل کې (يايوسف ا عرض عن هذا) و، او په هر يوه کې د متکلم مقصد د مخاطب ځان ته متوجه کول دي.

**بيا دا توجه پر دوه قسمه ده:** ①: توجه حقيقي، ②: توجه حکمي.

که چېرې منادٰی روح لرونکی شی وي، نو دېته توجه حقيقي ويل کېږي، لکه (يا داوٗدُ انا جعلناک خليفةً فی الارض) او که چېرې روح لرونکې نه وي، نو ورته توجه حکمي ويل کېږي، لکه (يا جبال اوبی معه والطّير).

بيا توجه حقيقي پر دوه قسمه ده: ①: توجه وجهي، ②: توجه قلبي.

توجه وجهي دا معنا چې ستا مخاطب بېله کومې پردې ستا په مخکې وي، د ده د را بللو مقصد دا وي، چې هغه تا ته مخ را واړوي، لکه چې عمر ستا په مخکې وي او ته هغه په (ياعمر) را وبلې، نو دېته توجه وجهي ويل کېږي.

او توجه قلبي دا معنا چې له مخکې نه ستا د مخاطب مخ ستا پر طرف وي، ليکن د هغه زړه بل لور ته وي، په داسې وخت کې ده ته اواز کول، چې د ده زړه ستا طرفته متوجه سي، دېته توجه قلبي ويل کېږي.

## د منادٰی قسمونه او اعراب يې

**درېيمه خبره:** د منادٰی قسمونه او اعراب يې:

له (ويبنی علىٰ ما يرفع به) څخه واخله تر (لغير معين) پورې مصنف رحمة الله عليه د منادٰی شپږ قسمونه او د هر يوه اعراب بيانوي:

**لومړی قسم:** منادٰی مفرده معرفه او اعراب يې:

ویبنی علی ما یرفع به: د منادی د لومړی قسم منادی مفرده معرفه مطلب دادی، چي یو اسم مفرد وي، یعنی مضاف، یا شبه مضاف نه وی، که څه هم تثنیه، یا جمع وي او د معرفه مطلب دادی، چي د حرف نداء تر داخلېدو وروسته هغه اسم معرفه سي، تر دې مخکي هغه معرفه وي، یا نکره وی، د هغه هیڅ اعتبار نه کېږي، لکه (یازیدُ ویارجلُ) دلته لومړی مثال د حرف نداء تر داخلېدو مخکي هم معرفه و او اوس هم معرفه دی او مضاف، یا شبه مضاف هم نه دی او په دوهم مثال کي (رجلٌ) مخکي نکره و، خو اوس د حرف نداء تر داخلېدو وروسته معرفه سوی دی او مضاف یا شبه مضاف هم نه دی، د دې اعراب دادی، چي هغه مبني پر علامه د رفع کېږي، لکه (یاسعیدُ) او دا خبره مخکي تېره سوه، چي علامه د رفع دري دي، رفع، واو او الف، لکه (یازیدُ و یازیدان و یازیدون)، نو ځکه مبني پر علامه د رفع سو.

**فائده:** د منادیٰ دغه قسم مبني بلل سوی دی، ځکه چی په (یازیدُ) کي زید منادیٰ دی او د کاف اسمی پر ځای واقع سوی دی، یعني د (ادعوک) د کاف پر ځای او دغه کاف د (ذالک) له کاف حرفي سره مشابهت لري، نو څرنګه چي حروف مبني وي، نو د منادیٰ دغه قسم هم مبنی سو.

## منادیٰ بلام الاستغاثة او اعراب یې

**دوهم قسم:** منادیٰ بلام الاستغاثة او اعراب یې:

ویخفض بلام الاستغاثة: په لومړي قسم کي منادیٰ مبني وه، اوس په دوهم قسم کي منادیٰ معربه ده، نو د دې اعراب بیانوي، چی کله پر منادیٰ د استغاثه لام داخل سي، نو مجروره کېږي، لکه چی یو سړی د کوم مظلوم لپاره له قوم څخه مرسته غواړي، نو ووایې: (یا لَلقومِ لِلمظوم) وګوره! دلته منادیٰ مجروره ده.

په منادیٰ مستغاثه کي څلور شیان وي: ①: استغاثه، ②: مستغیث، ③: مستغاث له، ④: مستغاث.

①: استغاثه: دا د استقامهٔ په څېر د استفعال د باب مصدر دی، په مجردو کي یې ماده (غ، ی، ث) ده، له باب د ضرب یضرب څخه ده، معنا یې ده (مرسته کول)، کله چي د دې ماده د استفعال له باب څخه راوړل سي، نو پکی د طلب معنا

پیدا کېږي، نو اوس یې معنی داسې کېږي: (له فریاد سره مرسته غوښتل)، یا چې کله پر مستغاث له (لام) داخل سي، نو د دې لپاره د استغاثه علامه کېږي، له همدې وجې ورته لام استغاثه ویل کېږي.

②: مستغیث دا له هماغه باب څخه د اسم فاعل صیغه ده، په معنا د (مرسته کوونکي).

③: مستغاث له، دا د اسم مفعول صیغه ده او ورسره په (له) کي لام اجلیه لګول سوی، نو معنا یې داسې کېږي: (د چا لپاره چي مرسته غوښتل سوې وي).

④: مستغاث به، دا هم د اسم مفعول صیغه ده او ورسره (منه) لګول سوی دی، نو معنا یې داسې کېږي: (هغه سړی په کوم سره چي مرسته غوښتل سوې وي).

## منادی په الف الاستغاثه

**درېیم قسم**: منادی په الف الاستغاثه:

و یفتح لالحاق الفها ولا لامَ فیه:

د منادی په درېیم قسم کي دا بیانېږي، چي د ده په اخیرپوري الف استغاثه نښتل سوی وي، نو په داسې صورت کي دوې خبرې دي، یوه دا چي په دې صورت کي منادی منصوبه وي، ځکه الف د خپل ماقبل فتحه غواړي، دوهمه دا چي په داسې صورت کي دده په شروع کي لام استغاثه رانسي، ځکه لام استغاثه دده مجرور کېدل غواړي او الف یې مفتوح کېدل، حال دا چي دا دواړه سره ضد دي (والضدان لا یجتمعان)، لکه: (یازیداه) دلته (زیدٌ) منادی مستغاث بالالف دی او د الف ورپوري نښتل کېدو په وجه مفتوح دی او په اخیر کي یې د وقف (هاء) ده.

د منادی څلورم، پنځم، او شپږم قسم:

وینصب ماسواهما: مصنف رحمه الله وایې: چي له مذکوره دوو قسمونو پرته چي څومره قسمونه او صورتونه دي، په هغو ټولو کي منادی منصوبه کېږي:

دلته یو سوال کېدای سي، چي مخکي خو درې قسمونه بیان سوي دي، نو مصنف رحمه الله (ماسواهما) ولې وویل او (ماسواها) یې ولې ونه ویل؟

د دې جواب دادی، چي بېشکه مخکي درې قسمونه بیان سوي دي، خو مصنف رحمه الله دوهم او درېیم قسم یو قسم شمېرلي دي، ځکه یې نو (ماسواهما) وویل.

په (ماسوهما) کې درې صورتونه راتلای سي، مثلاً څلورم قسم د منادیٰ مضاف دی او پنځم د منادیٰ شبه مضاف او شپږم قسم د منادیٰ نکره غیر معینه، په دغو کې د هریوه لږغوندې تفصیل ته غوږ سئ:

منادیٰ مضافه هغه اسم ته وایې، کوم چې مضاف وي د یو دوهم اسم وطرفته لکه: (یا عبدَ الله).

منادیٰ شبه مضافه هغه اسم دی، د کوم چې پوره معنا ترهغه وخته په پوهه کې نسي راتلای ترڅو چې له ده سره تر ده وروسته اسم یو ځای نکړل سي، یعنی څرنګه چې مضاف په پوره معنا ورکولو کې مضاف الیه ته محتاج وي، دا راز دا هم په خپله پوره معنا ورکولو کې وروستني اسم ته محتاج وي، لکه (یاطالعًا جبلاً).

دلته سوال کېږي، چې جناب! ته دېته شبېه بالمضاف ولې وایې، مضاف مضاف الیه ورته ووایه؟

ددې جواب دادی: چې دا په معنوي توګه خو د مضاف مضاف الیه په ډول دي، لیکن په لفظ کې په عملي ډول د هغه په ډول نه دي، ځکه چې مضاف الیه همېشه مجرور وي، حال دا چې دا همېشه منصوب وي، له همدې وجې موږ ورته شبه بالمضاف وویل او بعینه مضاف مو ورته ونه ویل.

منادیٰ نکره غیر معینه: د دې مطلب دادی، چې منادیٰ مفرد وي، یعنی مضاف یا شبه مضاف نه وي او نکره وي، په عامه توګه خو چې پر کومه نکره هم حرف نداداخل سي، نو هغه دغه نکره معرفه کوي، لیکن دلته د حرف نداء له داخلېدو سره، سره هم هغه نکره پاتې سوې دی، هغه په دې ډول چې یو ړوند سړی بېله کوم تعیین څخه یو سړي ته په مخاطب کولو اواز وکړي (یارجلًا خذ بیدی)، نو دلته خو ړوند سړی هغه سړي نهویني، چاته چې یې اواز کړی، بلکې هغه بېله تعیین څخه هغه راوباله، نو ځکه موږ وویل، چې هغه څوک را وباله هغه منادیٰ نکره غیر معین کېږي.

**څلور پنځوسم (۵۴) درس**

**د منادیٰ مبني د توابع مفرده بیان**

و توابع المنادی المبنی المفردة من التاکید والصفة وعطف البیان والمعطوف بحرف الممتنع دخول (یا) علیه تُرفع علیٰ لفظه، و تُنصبُ علیٰ محلّه، مثل: یازیدُ العاقلُ والعاقلَ والخلیل فی المعطوف یختار الرّفع، وابو عمرو النّصب وابوالعباس ان کان کالحسن فکالخلیل والّا فکابی عمرو، والمضافة تنصب.

**ترجمه:** او د منادیٰ مبني پر رفع مفرد توابع یعنی تاکید، صفت، عطف بیان، او داسي معطوف بالحرف، پر کوم چي حرف نداء داخلیدای نسي، دېته رفع د منادیٰ پر لفظ په حمل کېدو سره ورکول کېږي او نصب ورکول کېږي د منادیٰ پر محل په حمل کېدو سره، لکه: (یازیدُالعاقلُ او یازیدالعاقلَ) او امام خلیل په معطوف بالحرف کي رفع ورکول غوره او خوښ ګڼلي دي او امام ابوعمرو نصب او امام ابوالعباس مبرد وایي، چي منادیٰ که چېري د (الحسن) په څېر کوم اسم وي، نو هغه ته دامام خلیل په ډول رفع ورکول اولیٰ ده او که نه وي، نو د ابوعمرو په څېر نصب ورکول.

**تشریح:** د نن په سبق کي درې خبرې دي:

①: د منادیٰ مفرد معرفه توابع، ②: د دغو توابع په اعراب کي اختلاف، ③: د منادیٰ مضاف د توابع اعراب.

## د منادیٰ مفرد معرفه توابع

**لومړۍ خبره:** د منادیٰ مفرد معرفه توابع:

مصنف رحمه الله چي کله د منادیٰ له احکامو او مسائلو څخه فارغ سو، اوس د منادیٰ توابع بیانوي، (توابع، تابعةٌ) صیغه داسم فاعل جمع ده، په معنیٰ د تابعداري کولو، لکه چي (ضوارب جمع ده د ضاربةٌ) صیغه اسم فاعل، مصنف رحمه الله د منادیٰ د لومړی قسم منادیٰ مفرد معرفه څلور توابع ذکر کوي، یعنی تاکید، صفت، عطف بیان او هغه عطف بالحرف پر کوم چي یاء داخلېدل منع وي، یعنی معطوف معرف باللام وي او د توابع بیان که څه هم په مستقله توګه را روان دی، لېکن دلته د منادیٰ مفرد معرفه د تابع کېدو په وجه د منادیٰ د توابعو څېنی

خاص احکامات ومسائل سته، یعنی پر دوی د رفع او نصب دواړو جائز کېدل، حال دا چي په عامه توابعو کي داسي نه وی، ځکه نو دلته د هغه ذکر کېږي.
**فائده:** له تاکېد څخه مراد تاکېد معنوي دی، نه چي تاکید لفظي، ځکه چي تاکید لفظي صرف د لفظ تابع وي، او له صفت او عطف بیان څخه مراد عام دی، هغه که صفت بحاله وی، یا صفت بحال متعلقه وي، دا راز عطف بیان که معرف باللام وی، یا غیر معرف باللام وي.

### د توابع منادیٰ اعراب او پکي د نحوي د علماؤ اختلاف

**دوهمه خبره:** د توابع منادیٰ اعراب او پکي د نحوي د علماؤ اختلاف:
ترفع علیٰ لفظه وتنصب علیٰ محله: دا عبارت مصنف رحمة الله علیه تر (والا فکأبی عمرو) پوري د دې لپاره راوړي، چي د منادیٰ مذکوره د څلورو توابعو اعراب بیان کړی، په دې کي یې څلور اقوال ذکر کړي دي:
**لومړی قول:** د کافیه د ملاصاحب رحمة الله علیه:
لومړی قول، کوم چي د کافیه ملاصاحب رحمة الله علیه خوښ کړی، هغه دادی، چي دا په دوو طریقو سره ویل جائز دي، یو دا لکه څرنګه چي د ده متبوع مبنی پر علامه د رفع وي، دا راز دی هم د هغه پر لفظ په محمول کولو سره مرفوع ویل کېږي، بیا که دا منادیٰ مرفوع لفظًا وي، یا تقدیرًا وي، یا محلًا و په هر حال کي دا مرفوع ویل کېږي، لکه: یازیدُالعالمُ و یا قاضیُ العالِمُ ویا هؤلاءِ الکرامُ او دوهم دا چي د ده د هغه پر محل په حمل کولو سره منصوب ویل کېږي، ځکه محلًا منادیٰ منصوبه وي، نو د دې توابع هم منصوب وي.
دلته دا شبه نه کېږي، چي مبنی پر اعراب لفظي او تقدیري څرنګه راځي، حال دا چي د مبني اعراب خو محلي وی؟
ځکه چي د منادیٰ مبني کېدل اصل نه دي، بلکي عارضی دی او پر مبنی عارض دا اعراب راتلای سي.
**دوهم قول:** د امام خلیل:
ده ویلي دي: چي د مذکوره قسمونو مرفوع ویل اولیٰ دي، ځکه چي دا هم مستقل منادیٰ وي، صرف دا چي پر دوی حرف نداء نسي داخلېدای، ځکه بیا

دوې علامې د تعریف یعنی د معرّف باللام او حرف ندا جمع کېدل لازمېږي، کوم چي ممنوع دی.

**درېیم قول**: د ابوعمرو المازني:

امام ابوعمرو بن العلاء المازني وايې: چي د دوی منصوب ویل اولیٰ او غوره دي، ځکه چي کله پر دوی حرف نداء نسي داخلېدای، نو دا منادیٰ نسي جوړېدای، بلکي د معطوف په حکم کی وي او د معطوف د معطوف علیه پر محل محمول کېږي، نو دلته هم داسي سوې، څرنګه چی دلته معطوف علیه منادیٰ محلًا منصوب دی، نو دا هم منصوب کېږي.

**څلورم قول**: د امام مبرد:

ابوالعباس محمد بن یزید المبرد وايې: چي منادیٰ که چېري د (الحسن) په ډول وي، یعني په اصل وضع کي ورسره الف لام نه وی، بلکی وروسته ورباندي لګول سوی وي، نو ګواکی چي د اسي الف لام راوړل او نه راوړل دواړه برابر دي، نو د ده په شروع کي د حرف نداء راوړل صحیح وي او حرف نداء چي کله پر داخله سي، نو دا د مستقل منادیٰ په حکم کي کېږي او منادیٰ مفرد معرفه چونکه مرفوع وي، ځکه نو دا هم د دې د تابع کېدو په وجه مرفوع کېږي، لکه چي امام خلیل صاحب رحمة الله عليه د ده مرفوع ویل اولیٰ او غوره ښودلی دی.

او کوم اسم چی داسي وي چي په اصل وضع کي ورسره الف لام وی، نو داسي اسم له الف لام پرته نه مستعملېږي، بلکی همیشه معرف باللام استعمالېږي او پر داسي اسم چونکه د حرف نداء داخلېدل ممتنع وي، نو ګواکی چي د ده منادیٰ نه کېږي او معطوف کېدل متعین کېږي او پورته قاعده تېره سوه، چی د معطوف حمل د همېشه لپاره د معطوف علیه پر محل کېږي او معطوف علیه چونکه محلا منصوب دی، نو دا هم منصوب کېږي، لکه چي ا مام ابوعمرو بن العلاء المازنی ویلی دي، همدا مطلب د مصنف رحمة الله عليه د قول (ان کان کالحسن فکالخلیل والا فکأبی عمرو).

## د منادیٰ مضاف د توابع اعراب

**درېیمه خبره**: د منادیٰ مضاف د توابع اعراب:

نو دې ځایه د منادیٰ مفرد معرفه مبني پر علامه د رفع د هغو څلورو توابعو بیان کېدی، کوم چي مفرد وي، اوس د هغو توابعو بیان کېږي، کوم چي مضاف وي په اضافت حقیقیه سره، یاد لرئ، چې دلته کوم نوی شی نه بیانېږی، بلکي هماغه مذکوره قسمونه بیانېږي، فرق یې صرف دومره دی، چي مخکی ټول مفرد وه، او دلته ټول مضاف دي.

نو وایې: (والمضاف تُنصب) یعنی که چېري همدا څلور قسمونه مضاف راسي، نو د دوی حکم دادی، چي دوی منصوب ویل کېږي، مثلا د تاکید مثال (یاتیمُ کلُهم او یا طُلّابُ کلُکم).

او صفت چي مضاف تابع سی، د هغه مثال (یازید ذا المال او یا بکر اعلمَ الناس).

دا راز که عطف بیان د کوم اسم وطرفته مضاف سي او بیا د منادیٰ تابع سي، د هغه مثال (یارجل اباعبدالله) دی.

له مخکني قسمونو څخه څلورم قسم معطوف معرّف باللام هم و، لیکن د معرف باللام کېدو په وجه سره د ده اضافت نسي کېدای، ځکه نو په دغو قسمونو کی نسي شاملېدای، ځکه دلته د مضاف بیان کېږي.

## پنځه پنځوسم (۵۵) درس

## دمنادیٰ د پاته توابعو اعراب

والبدل والمعطوف غیر ماذُکر حکمُه حکم المستقل مطلقًا والعلم الموصوف بابن او ابنة مضافًا الی علمٍ، یُختار فتحه.

**ترجمه:** او بدل او هغه معطوف کوم چی له هغه څخه غیر وی، دکوم چی حکم ذکر کړل سو، د هغه حکم د مستقل منادیٰ د حکم په ډول دی او هغه نوم د کوم چی په (ابنٌ یا ابنةٌ) سره صفت بیان سوی وی، په داسي حال کي چی هغه (ابنٌ یا ابنةٌ) د کوم بل چا د نامه طرفته مضاف وی، نو پر ده فتحه ویل اولیٰ او غوره بلل سوی دی.

**تشریح:** د نن په سبقه کي درې خبرې دي:

①: د بدل او معطوف غیر معرف باللام اعراب:

②: د مذکوره اعراب وجه، ③: د علم چي (موصوف په ابنٌ او ابنةٌ) سره وي اعراب او وجه يې.

**لومړۍ خبره:** د بدل او معطوف غير معرف باللام اعراب.

مصنف رحمه الله تر دې ځايه پورې د منادٰی هغه څلور توابع بيانول، کوم چي مفرد وه، بيا يې له هغه وروسته هغه قسمونه مضاف جوړ کړل، د هغوی اعراب يې بيان کړ، نو له دوی پرته دوه صورتونه پاتې سوه، يعني بدل او معطوف غيرمعرّف باللام، د نن په سبق کي د همدغو دوو بيان کېږي:

نو وايې، چې (والبدل والمعطوف غير مذکور حکمه حکم المستقل مطلقًا) يعني د بدل او معطوف غير معرف باللام اعراب د مستقل منادٰی د اعراب په ډول دی، يعنی د منادٰی چي کوم خپل اعراب دی، هماغه اعراب دوی ته هم ورکول کېږي.

د کافيه د ملاصاحب رحمه الله مطلقًا ويل، چې د منادٰی اعراب بيانېږي، ټولو صورتونو ته اشاره ده، يعني که دا بدل او معطوف مفرد معرفه وی، يا مضاف، يا مشابه بالمضاف وي، يا نکره غيرمعينه وي، په دې ټولو صورتونو کي د دوی اعراب هماغه کېږي، کوم چی د مستقل منادٰی وی، د مثال په ډول:

①: که بدل مفرد معرفه وی، نو په داسي صورت کي منادٰی مستقله مرفوع وی، نو دا بدل هم مرفوع کېږي، لکه (يازيدُ بکرُ) او دا راز معطوف غيرمعرف باللام هم مرفوع کېږيو لکه (يازيد واخاعمرو).

②: بدل چی کله مضاف وی، نو په داسي صورت کي منادٰی مستقل منصوب وی، نو دا بدل هم منصوب کېږي، لکه (يازيد اخاعمرو) دا راز معطوف غير معرف باللام هم منصوب کېږي، لکه (يازيد واخاعمرو).

③: کله چي بدل مشابه بالمضاف وي، نو دا هم په مستقل منادٰی کی منصوب وي. ځکه نو دلته هم منصوب کېږی، لکه (يازيد طالعًا جبلاً) او معطوف غير معرف باللام هم منصوب کېږيو لکه (يازيد وطالعًا جبلاً).

④: کله چي بدل نکره غير معين وي، نو چونکه د منادیٰ مستقل کېدو په صورت کي دا مرفوع وي، نو دلته هم مرفوع کېږي، لکه (يازيدُ رجلاً صالحًا). دا راز معطوف غير معرف باللام هم مرفوع کېږي، لکه (يازيدُ و رجلاً صالحًا).

⑤: دا راز د بدل مثال کله چي له ده سره لام استغاثه وی، نو څرنګه چي هلته مجرور وی،نو دلته هم مجرور کېږي، لکه (ياالزيد لعمرو) اود معطوف غير معرف باللام مثال (ياالزيد ولعمرو).

⑥: کله چي د بدل په اخير کي الف استغاثه وی، نو چونکه هلته منصوب وي، ځکه نو دلته هم منصوب کېږي، لکه (يازيداه سعيداه) او د معطوف غيرمعرف مثال لکه (يازيداه وسعيداه).

غرض دا چي چېرې، چېر د منادیٰ کوم اعراب وی، هلته که چېري له دغو دوو څخه کوم يو تابع جوړ سي، نو د دغو دواړو هم بعينه هماغه اعراب کېږي (کما مثّلنا لکل احد فی کل صورةٍ).

**دوهمه خبره**: د مذکوره اعراب وجه:

بدل او معطوف غير معرف باللام ته يې په مذکوره ټولو صورتونو کی بعينه د منادیٰ اعراب ولي ورکړ؟، د دې يې دوې وجې بيان کړی دي:

لومړی وجه يې داده، چي بدل او معطوف د عامل د تکرار په حکم کي وی، يعني کوم عامل چي پر متبوع داخل سي، په هغه کي عمل وکړي، ګواکی هماغه عامل دوهم ځل مکرر سو، په بدل او معطوف کی يې هم هماغه عمل وکړ.

دوهمه وجه داده، چي له بدل او مبدل منه څخه مقصود بدل وي، نو ګواکی چي د مبدل منه عامل په حقيقت کي پر همدغه بدل داخل دی، نو کله چي هماغه عامل په غيرمقصود (مبدل منه) کي عمل کوي، نو په مقصودي شی (بدل) کي خو په طريقه اولیٰ سره عمل کوي، لکه (يازيد بکرٌ)، دلته ګواکي چي (يا) حرف نداء پر (بکر) داخله ده، ځکه اواز ده ته سوی دی، له همدې وجې يې ده ته رفع ورکړې ده.

او معطوف ته يې د معطوف عليه اعراب ځکه ورکړی، چي په دوی دواړو کي هر يو مقصود بالذکر وي او په شروع کي داخلېدونکی عامل ګواکي چي پر

دوارو یو ډول داخل دی، لهذا د دغه عامل په وجه ځرف معطوف علیه ته عمل ورکول او معطوف هسي پرېښودل ترجیح بلامرجح کېږي، لکه چي په (یازید وبکرُ) کي (یاء) حرف نداء څرنګه پر (زید) داخله سي، د منادی مفرد معرفه کېدو په وجه رفع ورکول کېږي، بعینه همداسي پر (بکر) هم داخله ده، د منادی مفرد معرفه کېدو په وجه دېته هم رفع ورکول کېږي.

درېیمه خبره: د هغه علم، چي موصوف په ابن او ابنة سره وي اعراب او وجه یې:

والعلم الموصوف بابن او ابنَة مضافًا الیٰ علم آخر یُختار فتحه.

د کافیه ملاصاحب رحمة الله علیه دلته د استثناء په ډول څو صورتونه بیانوي، کوم چي له مخکي بیان سویو اصولو څخه منستثنیٰ دي، له کومو څخه چي به یو صورت موږ د نن په سبقه کی بیان کړو، پاتې به انشاء الله د صبا په سبقه کی بیان کړو:

مثلا د منادی متعلق لومړی اصول موږ دا بیان کړی و، چي که چېري منادی مفرد معرفه وي، نو هغه به مبني پر علامه د رفع وي، لیکن که چیري تر دغه منادی مفرد معرفه د وروسته لفظ د (ابنٌ یا ابنةٌ) په ذرېعه د دغې منادی صفت بیان کړی و، او د دغه (ابن یا ابنة) اضافت د یو بل علم وطرفته سوی وي، نو د داسي منادی مفرد معرفه مرفوع ویل هم جائز دی او منصوب ویل یې هم، لیکن د مرفوع پر ځای یې مفتوح ویل زیات اولیٰ او ښه دي، لکه: یا سعدَبنَ سلیمٍ او یا زینبَ بنتَ سعیدٍ.

وجه یې داده، چي د عربو په کلام کي د داسي منادی استعمال په کثرت سره کېږی او د کثرت وجه یې داده، چي د عربو اکثره نومونه په کنیه سره مقید وی، خالي نوم ډېر لږ وي، نو کثرت چونکه د خفت او اسانی تقاضا کوي او فتحه اخف الحرکات ده، له همدې وجې د اسي منادی مفتوحه ویل مختار او خوښ بلل سوي دي.

## شپږ پنځوسم (۵۶) درس

### د منادی معرف باللام د نداء طرېقه او دهغې د توابعو حکم

و اذا نودیَ المعرَّف باللام قیل: یا ایّهاالرَّجلُ و یا هذا الرَّجلُ و یاایّها هذاالرَّجلُ والتزموا رفع الرجل، لأنّه المقصود بالنداء و توابعه، لانّها توابع معرب، وقالوا: یا الله خاصةً.

**ترجمه:** او کله چي د معرف باللام د نداء اراده وکړله سي، نو ویل کېږي: (یا ایهاالرّجلُ، ویا هذا الرّجلُ و یاایّها هذا الرّجلُ) او عربو پر ځان د (الرجل) رفع لازمه کړي، ځکه چي دا مقصود بالنداء دی او د ده د توابعو هم، ځکه چي دا د معرب توابع دي او عربو (یاالله) په خاصه توګه ویلی دی.

**تشریح:** د نن په سبقه کي درې خبرې دي:

①: د منادٰی معرف باللام صورتونه، ②: د منادٰی معرف باللام او ددې دتوابعو اعراب، ③: اسم ذاتي یعنی د الله جل جلاله د لفظ د منادٰی کېدو په مهال د استعمال طریقه.

## د منادٰی معرف باللام صورتونه

**لومړۍ خبره:** د منادٰی معرف باللام صورتونه:

مخکی پر (والمعطوف بحرف الممتنع دخول یاء علیه) کي موږ دا خبره کړې وه، چي پر معرف باللام له حروف نداء څخه هېڅ نسي داخلېدای، ځکه چي بیا د تعریف د دوو حرفونو جمع کېدل لازمېږي، ځکه یو خو الف لام پخپله هم حرف تعریف دی او دوهم حرف نداء هم حرف تعریف دی او د دې دواړو په یوه ځل پر اسم داخلېدل منع دي، نو زما خواږه طالبان پرېشانه سو، چي که چېري موږ داسي خلګو ته نداء کوو، چي د معرف باللام مصداق وی، نو په داسي صورت کي به موږ څه کوو، ځکه چي یوه طرفته وکتل سي، نو دوی ته له نداء پرته چاره نسته، او بل طرفته که وکتل سي، نو دوی په نداء کولو د کافیه ملاصاحب رحمة الله علیه ناراضه کېږي، چي تاسو زما په وړاندي سوي قاعده عمل ونکړ.

نو په (و اذا نودی المعرف باللام) عبارت سره دا ښیي، چي خوږو طالبانو تاسو مه خفه کېږئ، ځکه ستاسو د دغې مسئلې حل له ما سره سته او هغه دا چي که چېری داسي اسم منادٰی سي، نو د دې درې طریقي دي:

①: قیل: یا ایها الرجل، یعنی لومړی طریقه یې داده، چې براه راست داسي اسم منادیٰ مه جوړوئ، بلکې په شروع کې یې یو مبهم اسم راوړئ، هغه منادیٰ جوړه کړئ، بیا دغه معرف باللام ددغه مبهم اسم صفت جوړ کړئ، لکه (یاایها الرجل او یا ایّهاالناس وغیره).

②: یا هذا الرجل یعني د ده په شروع کې اسم اشاره راوړه، هغه منادیٰ جوړه کړه، لکه (یا هذا الرجل او یا هذه المرأة).

③: یا ایهذا الرجل: دریمه طریقه یې داده، چې د ده په شروع کې اسم مبهم او اسم اشاره سره ګډ راوړه، منادیٰ ځیني جوړه کړئ او معرف باللام یې صفت جوړ کړئ، لکه: (یا ایّهذاالرجل او یا ایّهذه البنت)، وګورئ! په ټولو مثالونو کې معرف باللام صفت جوړ سوی دی او ترده مخکې اسم موصوف دی او د موصوف و صفت یو حکم وی، لهذا دلته چې موصوف منادیٰ سي، نو د صفت منادیٰ کېدل هم معلومېږي.

په بل عبارت مذکوره درې طریقې په لنډو الفاظو زده کړئ، چې د (یا) حرف نداء او منادیٰ معرف باللام ترمینځ فاصله وکړه او دا فاصله په دریو اسمونو کې په یوه سره کېږي:

یا خو (ایّها او ایتها) راوړه، لکه (یا ایّهاالرجل، یا ایها الناس او یا ایتهاالمرأة وغیره).

یا د اسم اشاره په ذریعه سره، لکه: (یا هذا الرجل او یا هذه المرأة).

یا دواړه سره یو ځای کړه د منادیٰ او حرف نداء ترمینځ یې فاصل جوړ کړه، لکه: (یا ایّهاالرجل او یا ایهذه البنت).

## د منادیٰ معرف باللام او ددې د توابعو اعراب

**دوهمه خبره:** د منادیٰ معرف باللام او د دې د توابعو اعراب:

والتزموا رفع الرجل: دا هم د یوه سوال جواب او د استثناء یو صورت دی، سوال دادی، چې جنابه! تا مخکې د همداسې اسم، یعنی د منادیٰ مفرد معرفه د صفت په هکله ویلې وه، چې (ترفع علیٰ لفظه و تنصب علیٰ محله) او د دې مثال هم تا

په دوه طرزه راوړي و (یا زیدالعاقلُ او یا زید العاقلَ)، لیکن دلته خو ستا لهجه بدله سوه، ځکه چي تا وویل: (والتزموا رفع الرجل) چي په داسي صورت کي معرف باللام اسم کوم چي د منادیٰ موصوف تابع وي، د هغه په رفع ویل لازمي او ضروري دي، حال داچي مخکي تا دواړه صورتونه جائز بللي وه؟

نو جواب یې دادی (لان المقصود بالنداء) چي جنابه! ستا خبره بلکل سمه ده، خو کوم مثال چي تا وړاندي کړی، په هغه کي مقصود بالنداء (زید) دی او (العاقل) یو زائد او تابع اسم صفت وو لیکن دلته که څه هم په لفظي توګه موصوف منادیٰ ده، خو په اصل کي مقصود بالنداء په داسي ټولو ځایونو کي صفت وي او مقصود بالنداء چي کله صفت وي، نو ګواکي چي په دې سره د منادیٰ مفرد معرفه صورت جوړېږي، لیکن دومره فرق د دواړو ترمینځ ضرور سته، چي دا چونکه مستقل منادیٰ نه ده، ځکه دا که څه هم مرفوع ده لیکن معرب ده او منادیٰ مفرد معرفه مستقل منادیٰ وي، ځکه نو مبني پر علامه د رفع کېږي.

و توابعه، لانّها معرب: اوس چي کله موږ (الرجل) موصوف معرف باللام مقصود بالنداء وګرزاوه، ومو ویل چي دا مرفوع کېږي او دده توابع هم مرفوع کېږي، نو پر دې سوال کېږي، چي جنابه! د منادیٰ مفرد معرفه په تابع کي موږ دوې وجې ویلې وي، نو تا د (وتوابعه) عطف پر (الرجل) کړی، دا مو په التزام د رفع کي څرنګه شامل کړی؟

د دې جواب دادی، چي هو کې! موږ داسي کړي دي، ځکه چي کوم احکام مخکي تېر سوي دي، هغه د منادیٰ مبني د توابع وو او کوم چي دلته ذکر کېږي، دا د منادیٰ معرب د توابعو دي، لکه د مفرد مثال (یا ایها الرجلُ الکریمُ) او د مضاف مثال (یا ایها الرجل صاحب الفرس) په دې دواړو کي (الرجلُ) معرب دی.

**د منادیٰ په مهال د الله جل جلاله د لفظ د استعمال طریقه**

**دریمه خبره:** لفظ د الله جل جلاله چي منادیٰ سي، د استعمال طریقه یې:

مخکي موږ قاعده بیان کړه، چي کوم اسم معرف باللام وي، نو پر هغه براه راست حرف نداء نسي داخلېدای، او اوس وایو، چي مخکي کومه قاعده وه، هغه د

عامو اسماؤ لپاره وه، پاتې سو اسم ذاتي، يعني د الله جل جلاله اسم، نو هغه تر دې قاعده لاندې نه دی، بلکی بېله واسطي حرف نداء ورباندی داخلېدای سي، او يکی د اسم مبهم، حرف تنبيه او اسم اشاره راوړلو ضرورت نسته، لکه (یاالله)، نو داسې موږ له دوو وجو کړې دي:

**لومړۍ وجه**: دا چې د الله جل جلاله ذات مشهور دی او په ذات مشهوره کي د اسم مبهم راوړل، د هغه د قدر نه پېژندل دي.

د دې تفصيل دادی، چي له مخکنيو اسماؤ څخه که چېرې د مثال په توګه (ایّ) موږ دده په شروع کی راوړو، نو داسې کول صحیح نه دی، ځکه چی (ایّ) د تعداد لپاره راځي او الله جل جلاله له تعداد څخه پاک دی.

دوهم په دې کی (ها) لپاره د تنبيه ده او د الله جل جلاله ذات له تنبيه څخه هم پاک دی، ځکه تنبيه د غافل لپاره وی او الله جل جلاله له غفلت څخه پاک دی، کما قال: (ولا تحسبنّ الله غافلًا عما يعمل الظالمون).

دریيم په دوی کي اسم اشاره دی او د اسم اشاره استعمال د حسي شيانو لپاره وي، حال دا چي الله جل جلاله له دې څخه هم پاک دی، لکه چي د يوه مؤحد شاعر په شعر کي دي:

ته په زړه کي خو راځی، په پوهه کي نه راځې
بس زه پوهېږم، چي ستا پېژند ګلــــوي همداده

**دوهمه وجه**: داده، چی په اسم ذاتي يعنی په الله جل جلاله کي چي کوم الف اولام دي، هغه د همزې په عوض کی راغلی دی او همزه اصلي وه، نو اوس دا دواړه له ده سره داسي لازم سوي دي، چي کله هم نه ځيني بېلېږي، نو د دوی دواړو عوضی او لازمي کېدل دواړه لازم سو او چېري چي الف لام عوضی هم وی او لازمي هم وي، نو پر هغه حرف نداء بېله واسطه داخلېدای سي، هوکې! چېري چی صرف لازمي وی، يا صرف عوضي وی، نو په داسي صورتونو کي حرف نداء او دده په مينځ کی فاصله راوړل کېدای سي.

**اووه پنځوسم (۵۷) درس**

**د منادی مکرر او ياء متکلم ته د مضاف اعراب او د استعمال طريقه**

ولک فی مثل: یا تیم تیمَ عدیٍّ الضمُّ والنّصب والمضاف الیٰ یاء المتکلم یجوز فیه: یا غلامِیْ و یا غلامَی و یا غلامِ و یاغلامَا و بالهاء وقفًا، وقالوا: یا ابِیْ و یا امّیْ و یاأبَتِ ویا امَّتِ فتحًا وکسرًا و بالالف دون الیاء و یاابن امّ و یاابن عمَّ خاصةً، مثل: باب غلامي و قالوا: یا ابن امَّ و یا ابن عمَّ.

**ترجمه:** او ای مخاطبه! ستا لپاره د یا تیمُ تیمَ عدیّ په څېر مثالونو کی مضموم او منصوب ویل دواړه روا دي او کوم اسم چي د یاء متکلم وطرفته مضاف وي، نو په هغه کي (پنځه طریقې) جائز دي، لکه: یا غلامِی، یا غلامِیْ و یا غلامَی و یا غلامِ و یاغلامَا او په دې څلورسره صورتونو کي د وقف هاء لګول هم روا دي او عربو دا هم ویلي دي: یا ابِیْ و یا امّیْ و یاأبَتِ ویا امَّتِ د تاء په فتحه او کسره سره او تر تاء وروسته په الف سره هم نه چی په یاء سره او په خاصه توګه (یاابن امّ و یاابن عمّ) د (یاغلامي) په څېر دي او عرب یې یاابن امّ او یا ابن عمّ هم وایې.

**تشریح:** د نن په سبقه کي مختصري شپږ خبري دي:

①: د منادیٰ مفرد معرفه (کله چي مکرره وی) اعراب، ②: د مذکوره صورت د اعراب په علت کي اختلاف، ③: په عبارت کي د ذکرسوي مثال وضاحت، ④: د منادیٰ مضاف ویاء متکلم ته اعراب، ⑤: د اَمّ او اَبّ مضاف ویاء متکلم ته اعراب، ⑥: لفظ د ابن چی مضاف وي، د اَمّ یا عمّ وطرفته اعراب.

**لومړی خبره:** د منادیٰ مفرد معرفه (کله چي مکرره وی) اعراب:

ولک فی مثل: یا تیمُ تیمَ عدیّ الضمّ والنّصب: د کافیه ملاصاحب رحمه الله علیه وایې، چي هر هغه جمله په کومه کی چي منادیٰ مفرد معرفه صورةً مکرره راغلي وي او تر هغه وروسته یو اسم مضاف الیه هم موجود وي، لکه (یاتیمُ تیمَ عدیّ) په دې کي (تیمُ) منادیٰ مفرد معرفه ده او دوهم (تیم) یې تاکید ده او تر دې وروسته (عدیّ) مضاف الیه دی، نو د داسي مثالونو په هکله ویل سوي دي، چي په دې کي د لومړي اسم مضموم او منصوب دواړي طریقې ویل جائز دي، ځکه چی د دې دوه حیثیتونه وي:

یو دا چې دا منادی مفرد معرفه وي، په دې حیثیت سره مبني پر علامه درفع وي او دوهم حیثیت یې دادی، چې دا منادی مضاف واقع سوی وي، ځکه لومړی (تیمُ) مؤکد او دوهم یې تاکید دی او قاعده ده، چې تابع او متبوع دواړه د شئ واحد په حکم کی وي، نو دا دواړه هم د شئ واحد په حکم کی کېږي، د (عدیّ) وطرفته مضاف کېږي، نو دا د منادی مضاف صورت جوړېږي، له همدې وجې بیا منصوب کېږي.

**دوهمه خبره**: د مذکوره صورت د اعراب په علت کې اختلاف:

د منادی د مذکوره قسم تراعراب وروسته داخبره په ذهن کي ونیسئ، چې د دې د منصوب کېدو په علت کی د امام سیبویه او امام مبرد اختلاف دی:

امام سیبویه خو هماغه راز وایې، څرنګه چې پورته تېر سول، چې لومړی تیم د (عدیّ) وطرفته مضاف کېږي او دوهم تیم یې تاکید جوړېږي.

پر دې که څېړي یو څوک سوال وکړي، چې مجرور خو صرف متصل وي، حال دا چې دلته خو د مضاف او مضاف الیه ترمینځ فاصله لازمېږي؟

د دې جواب دادی، چې په حقیقت کي خو کومه فاصله سته نه، ځکه چې دا دواړه د شئ واحد په حکم کی دي (کمامرّ)، لېکن صورتًا چې کومه فاصله راغلې ده، د هغه جواب دادی، چې دا فاصله بالاجنبي نه ده، بلکي فاصله بالتابع لمتبوعه ده، کومه چې جائز ده.

او امام مبرد صاحب وایې: منصوب خو یې زه هم منم، لیکن له دې وجې څخه نه کومه چې ذکر سوې، بلکي له دې وجې، چې لومړی (تیمُ) مضاف ده د (عدیّ) محذوف وطرفته او دوهم (تیمُ) مضاف ده د (عدیّ) مذکور وطرفته نو په دې صورت کي لومړی (تیم) د منادی مضاف کېدو په وجه منصوب کېږي او دوهم مضاف د تابع کېدو په وجه منصوب کېږی، لکه چې تر دې مخکي په (والمضاف تُنصبُ) کي تېر سول.

خلاصه داچي د لومړي د مرفوع او د دوهم د منصوب په ویلو کي د علماء نحو هېڅ اختلاف نسته، خو د لومړي د منصوب ویلو په علت کي د امام مبرد او امام سیبویه ترمینځ اختلاف دی.

**درېیمه خبره:** د مذکوره مثال وضاحت:

مصنف رحمه الله چي کوم مثال وړاندي کړی دی، هغه د مشهور شاعر جریر د یوه شعر ټوټه ده، پوره شعر په لاندي ډول دی:

یاتیمُ تیمَ عدیٍّ لا ابالکم * لا یُلقِیَنَّکُم فی سوءة عمرُ

په عربو کي د تیم په نامه څو قبیلي دی، لکه قبیله تیم بن غالب بن مُرّة او قبیله تیم بن عبدمناف، دا رازیوه قبیله د تیم بن عدی په نامه هم مشهوره ده، څرنګه چي د دې قبیلې یوه شاعر عمرو تیمی کله د جریر د هجو (سپکاوی) اراده وکړه، نو جریر د هغه تر هجو او سپکاوي مخکي د هغه د پوره قبیله په مخاطب کولو وویل: خبراوسئ ای د تیم بن عدیّ ټبره! ستاسو خو له مخکي نه هم کوم پلار نه وو، بلکي تاسو ټوټل حرموني واست، اوس عمرو تیمی منع کړئ، چي زما له سپکاوي څخه لاس واخلي، که نه نو تاسو ته تر حرامی النسل ویلو وروسته هم زه داسي سپکاوی کوم چي له وجې به یې تاسو ټوټل عیبجن سئ.

**د منادٰی مضاف ویاء متکلم ته اعراب**

**څلورمه خبره:** د منادٰی مضاف ویاء متکلم ته اعراب:

والمضاف الیٰ یاء المتکلم یجوز فیه: یا غلامیْ الخ: دلته یو بل صورت د استثناء بیانوي، هغه داسي، چي مخکی مو ږ ویلې وه، چي منادٰی کله مضاف وی، نو هغه منصوب وی، لیکن دلته وایو، چي مخکی د اضافت کومه خبره سوې وه، هغه عامه وه او اوس وایو، چي په خاصه توګه که چېرې د یاء متکلم وطرفته د یو اسم اضافت سوی وی، نو د منادٰی په صورت کي د دې څلور رنګه ویل جائز دي:

①: د یاء متکلم په سکون سره، لکه: یاغلاميْ ②: د یاء متکلم په فتحه سره، لکه یا غلاميَ، ③: په کسره په اکتفاء کولو او د دې د یاء متکلم قائم مقام جوړول، پخپله یاء حذفول، لکه: یاغلامِ، ④: د یاء په الف بدلول، د ماقبل کسره دالف د مناسبت په وجه مفتوح ویل، لکه: یا غلامَا.

⑤: په (و بالهاء وقفًا) سره وایې، چي د دې ټولو صورتونو په اخیر کي هاء د وقف لپاره لګول هم جائز دي، لکه: یا غلامِهْ، و یاغلامِیَهْ، و یا غلامهْ ویا غلامَاه.

## دام او ابْ مضاف وياء متكلم ته اعراب

**پنځمه خبره**: دام او ابْ مضاف وياء متكلم ته اعراب:

و قالوا يا أبي و يا أمي: د كافيه ملا صاحب رحمه الله ويلي دي، چي لفظ د (ابُ) او (امّ) كه چيري د ياء متكلم وطرفته مضاف سي، نو په څو طريقو يې ويل جائز دي، يعني مذكوره لومړی څلور طريقې او پر هغو سربېره پنځمه طريقه يې داده، چي ياء متكلم په تاء سره بدله كړل سي، په فتحه او كسره دواړو ويل كېږي، لكه: يا ابتِ و ياابتَ و ياامتِ وياامَّتَ او شپږم صورت دادی، چي تر دغه تاء وروسته الف زيات كړل سي، يا ابتا او يا امّتا ويل هم جائز دي.

دون الياء: كله چي تاسو ياء متكلم په الف يا تاء بدله كړئ، نو بيا دوهم ځل همدا ياء ذكر كول، يا ابتیْ او يا امّتیْ او يا امتای او يا ابتای ويل جائز نه دي، ځكه چي دلته كوم الف او تاء راغلي دي، هغه د دغې ياء متكلم په عوض كي راغلي دي، نو كه چيري په اخير كي هم ياء راوړل سي، نو د عوض (الف او تاء) او معوض (يا) جمع كېدل لازمېږي، كومه چي جائز نه ده.

### اته پنځوسم (۵۸) درس

### دمنادی د ترخیم تعریف اوحکم یې

و ترخيم المنادى جائز و في غيره ضرورةً وهو حذف في آخره تخفيفًا وشرطه: ان لا يكون مضافًا و لا مستغاثًا ولا جملةً و يكون اما علمًا زائدًا علىْ ثلاثة احرف واما بتاء التأنيث.

**ترجمه**: او په منادی كي ترخيم (مطلقًا) جائز دی او له دې پرته په غير كي د ضرورت پر وخت او هغه حذفول د منادی له اخير څخه د تخفيف په ډول او د دې شرط دادی، چي هغه (منادی) نه خو مضاف وي او نه مستغاثه وي او نه كومه جمله وي او دا چي منادی يا خو داسي علم وي، كوم چي تر دريو حرفونو زيات وي، يا داسي اسم وي، له كوم سره چي تاء تانيث لګېدلي وي.

**تشريح**: د نن په سبقه كي انشاء الله تعالیٰ دري خبري كېږي:

①: د ترخیم لغوي او اصطلاحي تعریف، ②: د ترخېم حکم، ③: د منادیٰ د ترخیم شرطونه.

## د ترخېم لغوی او اصطلاحي تعریف

**لومړۍ خبره:** د ترخېم لغوی او اصطلاحي تعریف:

ترخېم د تفعېل دباب مصدر دی، لغوي معنا يې ده نرمی او اساني کول او په اصطلاح د نحو کې يې معنا داده، چې د کومې کلمې د اسانه کولو لپاره د دې له اخیر څخه یو یا د وه حرفونه، یا ځیني یوه کلمه حذفول، لکه له حارث څخه یاحارُ او له عثمان څخه یا عثمُ او له بعلبکٌ څخه یا بعلُ.

دوهمه خبره: د ترخېم حکم:

وترخیم المنادی جائز و فی غیره ضرورةً: په دې عبارت کې د ترخېم حکم بیانېږي چې په منادیٰ کې ترخېم مطلقًا جائز دی، وجه يې داده، چې یو خو د دې استعمال زیات دی او دوهمه وجه يې داده، چې په منادیٰ کې اصل منادیٰ له وی، یعنی هغه خبره، د کومې خواته چې اواز کېږي، هماغه اصل وي، نو د منادیٰ کوشش داوي، چې په یوه نه یوه طرېقه هغه له نداء او منادیٰ څخه ژر فارغه سي او مقصودي خبره وکړي، نو علماء نحو او اهل لغت د دې اجازه ورکړې، چې د مذکوره مقصد د حاصلولو لپاره دي د منادیٰ په اخیر کی ترخېم وکول سي.

او پاتې سو له منادیٰ پرته په نورو اسماؤ کي ترخېم کول، د هغو په هکله د کافیه ملاصاحب رحمۃ اللہ علیہ ویلي دي: (و فی غیره ضرورةً) یعني له منادیٰ پرته په نورو اسماؤ کي چي کله ضرورت وي، نو جائز دی او که ضرورت نه وي، نو نه ده روا، د ضرورت مطلب دادی، چي د وزن شعري برابرول وي، نو په داسي ځای کي جائز دی، له دې پرته په نثر کي جائز نه دی.

## د منادیٰ د ترخېم شرطونه

**درېیمه خبره:** د منادیٰ د ترخېم شرطونه:

له و شرطه ان لا یکون مضافًا څخه تر اما بتاء التانیث پوري په عبارت کي مصنف رحمۃ اللہ علیہ د ترخېم لپاره پنځه شرطونه بیانوي، له کومو څخه چي څلور عدمي متعین دي او یو ثبوتي غیر معین دی.

**لومړی شرط:**

وشرطه ان لایکون مضافًا: لومړی شرط دادی، چي په منادٰی کي ترخیم هغه مهال جائز دی، کله چي هغه د کوم بل اسم وطرفته مضاف نه وي، وجه یې داده، چي د منادٰی مضاف دوه حیثیتونه دي: لفظي او معنوي:

په لفظي اعتبار سره خو هغه دوې کلمې د ي، ځکه مضاف بېله کلمه ده او مضاف الیه بېله، لېکن په معنوي اعتبار سره دا دواړې د یوې کلمې په حکم کي دي، ځکه لکه څرنګه چي د یوې کلمه د ټولو اجزاء له یوځای کولو پرته پوره معنا په پوهه کي نه راځي، بلکل همدا راز له مضاف سره د مضاف الیه له یو ځای کېدو پرته هم د مضاف پوره معنا په پوهه کي نه راځي، نو که چېري په مضاف کي موږ ترخیم کوو، نو په لفظي اعتبار خو صحیح دی، لېکن په معنوي اعتبار سره صحیح نه دی، ځکه معنًا خو دا یوه کلمه ده، نو ګواکی چی موږ د کلمه په مینځ کي ترخیم وکړ، حال دا چي ترخیم د منادٰی په اخیر کي کېږي.

او که چېري په اخیر کي یعني د مضاف الیه په اخیر کي ترخیم وکړو، نو په معنوي اعتبار سره داسي کول که څه هم صحیح دي، ځکه چي په معنوي اعتبار سره دا دواړه یوه کلمه دي، لېکن په لفظي اعتبار سره داسي کول صحیح نه دي، ځکه چي دا دوې کلمې دي او په دواړو کي مقصود بالنداء مضاف ده او ترخیم موږ د مضاف الیه په اخیر کي کوو، نو دا صحیح نه دی.

خلاصه: دا چي که چېري په مضاف کي ترخیم کوي، نو په معنوي اعتبار سره صحیح نه دی او که یې چېري د مضاف الیه په اخیر کي کوي، نو په لفظي اعتبار سره صحیح نه دی، ځکه غوره همداده، چی له سره دا ناجائز وبلل سي.

**دوهم شرط:**

و لا مستغاثًا: د کافیه ملاصاحب رحمة الله علیه د منادٰی د ترخیم لپاره دوهم شرط دا بیان کړی، چي هغه منادٰی به مستغاث نه وي، وجه یې داده، چي مستغاث پر دوه قسمه دی، مستغاث بالالف او مستغاث باللام، که چېري منادٰی مستغاث بالالف وي، نو پکي په ترخیم کولو دوې خرابیانې لازمېږي:

لومړی دا چي په منادیٰ مستغاثه بالالف کي مقصود مدصوت (یعنی د اواز اوږدېدل) وي، حال دا چي د ترخیم په صورت کي دا مقصد فوتېږي.

او دوهمه خرابي دا چي که چېري په داسي منادیٰ کي ترخیم وسي، نو له مفرد معرفه سره التباس لازمېږي، مثلا په (یازیداه) کي تر ترخیم وروسته (یازیدُ) پاتېږي، کوم چي منادیٰ مفرد معرفه دی، نو د دواړو تر مینځ فرق کول مشکل کېږي.

او که چېري هغه منادیٰ مستغاث باللام وی، نو هم پکي ترخیم ځکه جائز نه دی، چي په داسي صورت کي د لام استغاثه (یعني جرورکول) ختمېږي، چي له کبله یې موږ ته معلومېږي، چي دا لام د مستغاث دی، که د مستغاث له.

**درېیم شرط:**

ولا جملةً: درېیم شرط یې دا بیان کړی، چي هغه منادیٰ مرخم داسي جمله نه وي، کومه چي د یو چا نوم وي، ځکه چي په داسي جمله کي هم په ترخیم کولو دوې خرابیاني لازمېږي:

لومړی دا چي کومه جمله د یو چا علَم جوړه سي، نو هغه مبني وي او د مبني اخیر هم نه بدلېږي، نو که چېري د ده په اخیر کي موږ ترخیم وکړو، نو د مبني د حکم یعني (المبنی ما لا یختلف آخره بدخول العوامل المختلفة علیه) خلاف ورزي لازمېږي.

او دوهمه خرابي دا لازمېږي، چي جمله د یو چا ځکه نوم ښودل کېږي، چي هغه پر یو غریب او عجیب قسم قصه دلالت وکړي، لکه: تأبّط شرًّا.

له همدې نوعې څخه یوه قصه زموږ یوه پښتنانه ملګري ته ورپېښه سوه، هغه دا چي ده ټولو کلیوالو ته ویلي وه، چي زه سعودي عرب ته ځم، نو که کوم څوک لیک وغیره لېږی، نو ماته دي راکړي، بیا له کومې وجې هغه نه ولاړ، اوس نو هغه په پوره کلي کي د (خط به وړي) په نامه مشهور سو، نو که چېري په داسي نومونو کي ترخیم وکړل سي (یاتأبط) او (یاخط به) وویل سي، نو دا بیا پر غریبه

او عجیبه قصه دلالت نسي کولای، د کومې له وجې چي دی په دغه نامه مشهور سوی و.

**څلورم شرط:**

و یکون اما علمًا زائد علیٰ ثلاثة احرف: څلورم شرط کوم چي وجودي دی، دا لګېږي، چي هغه منادیٰ داسي علم وی، چي تر درې حرفونو زیات وي، وګوره په دې کي دوه شیان بیانېږي، یو دا چي هغه به علم وي، دوهم دا چي هغه زائد علی الثلاثة وي، نو د علم کېدو شرط ځکه ورسره لګول سوی، چي په اعلامو کي په عامه توګه اشتباه ډېره لږ کېږي، دوهم دا چي اعلام اکثره منادیٰ جوړېږي، نو کثرت استعمال د تخفیف تقاضا کوي، نو د ترخیم لپاره د علمیت شرط د تخفیف له وجې لګول کېږي.

او د زائد علی الثلاثة کېدو شرط ځکه د ده لپاره لګول سوی، چي په داسي صورت کي تر ترخیم وروسته هم د اسم معرب بناء لږ تر لږه پر درېو حرفونو پاتېږي، کومه چي صحیح ده، لیکن که چېري له مخکې څخه هماغه درې حرفونه وي، نو تر ترخیم وروسته د معرب بناء صرف پر دوو حرفونو پاتېږي، کومه چي ناجائز ده.

محشي صاحب د غایة التحقیق په حواله لیکلي دي، چي کوم اسم درې حرفیز وي، لیکن متحرک الاوسط وي، خو د مینځ حرکت د څلورم حرف قائم مقام جوړ سوی وي، په داسي اسم کي د کوفیینو په نزد ترخیم جائز وي، لکه له (یاعُمَرُ) څخه (یا عُمَ)، لېکن د غایة التحقیق ملاصاحب پخپله دا رد کړی او ضعیف یې بللی دی، جواب یې ورکړی، چي داسي کول د غیرمنصرف په بحث کي خو صحیح دی، لیکن له هغه پرته په نورو مباحثو کي د اهل عربو په نزد عام نه دی او کوم حضرات چی په ساکن الاوسط کي ترخیم جائز بولي، هغوی (یازیدُ) (یازَی) وایي، نو د دوی دغه قول د اسم تفضیل له صیغې سره اضف بلل سوی دی.

**پنځم شرط:**

واما بتاء التأنيث: که چېري کومه کلمه نه خو د چا علم وي او نه زائد على الثلاثة وي، نو لږترلږه د دې په اخير کي تاء تانيث ضروري وي، تر څو چې پکي ترخيم کېدای سي، که نه نو ناجائز دی.

د مذکوره شرط د لګېدو وجه داده، چې تاء تانيث د زوال په محل کي وي، ځکه چي يو خو هغه زائده وي، دوهم دا چي هغه د وقف په محل کي وي، نو زائد کول يې او د وقف په محل کي کېدل دواړه د ده د زوال تقاضا کوي، نو دا منادیٰ مرخم جوړول، له اخيره څخه يې تاء تانيث حذفول په طريقه اولیٰ سره جائز دي، لکه له (یاثُبَةُ څخه یا ثُبُ).

دلته يو سوال کېږی، چي جنابه! دلته خو د معرب بناء پر دوو حرفونو پاتېږي، کومه چي تاسو ناجائز بللې ده؟

د دې جواب دادی، چي موږ د هغه اسم دوه حرفېزه کېدل جائز بولو، کوم چي د ترخيم په وجه دوه حرفېزه پاتې سوې وي، پاتې سو دلته نو دا خو تر ترخيم مخکی دوه حرفونه وه، ځکه چي تاء خو له مخکي څخه لا زائده وه.

**د حاشيه ملاصاحب ويلي دي:** چي د دې تانېث لپاره شرط دادی، چي هغه په کوم صفت کي نه وی، لکه په (فاسقةٌ فاجرةٌ) کي چی دی، ځکه که چېري له دا سي اسماؤ څخه تاء حذف کړل سي، (يافاسقُ، يا فاجرُ) وويل سي، نو بيا د مذکر اومؤنث صېغي د يوې له بلې سره التباس رائحي او فرق کول يې ستونزمن کېږي، چي دا د مؤنث صېغه ده، که د مذکر.

## نه پنځوسم (۵۹) درس

## په منادیٰ کي د ترخېم صورتونه او د هغه اعراب

فان كان في آخره زيادتان في حكم الواحدة كاسماء ومروانَ، او حرفَ صحيح قبله مدَّةٌ و هو اكثر من اربعة احرفٍ حُذفتا، و ان كان مركبًا حذف الاسم الأخير وان كان غير ذلک فحرفٌ واحدٌ، وهو في حكم الثابت على الاكثر، فيقال: ياحارِ و يا ثمُوْ و ياكرَوَ، وقد يُجعل اسمًا برأسه، فيقال: ياحارُ ويا ثمیْ و يا کرا.

**ترجمه**: نو که چېرې د ده په اخير کې داسې دوه حرفونه زائد وي، کوم چې د يوه زيادتي په حکم کې وي، لکه (اسماء او مروان)، يا دده په اخير کې داسې حرف صحيح وي، تر کوم مخکې چې حرف مده وی، په داسې حال کې چې هغه تر څلورو حرفونو پر زياتو مشتمل وی، نو داسې دواړه حرفونه حذف کېږي او که چېرې هغه منادیٰ مرکبه وی، نو اخيری اسم حذف کېږي او که چېرې داسې نه وي، نو صرف يو حرف حذف کېږي او هغه حذف سوی حرف د اکثره علماء نحو په نزد د ثابت حرف په حکم کې دی، نو ويل کېږی: (ياحارِ، ويا ثموُ، ويا كَرَوَ) او كله كله منادیٰ مرخم مستقل اسم بلل کېږي، نو ويل کېږي: (ياحارُ ويالمیُ و يا كرَا).

**تشريح**: د نن په سبقه کې صرف دوې خبرې دي:

①: په منادیٰ کې د ترخيم صورتونه، ②: د منادیٰ مرخم اعراب.

**لومړۍ خبره**: په منادیٰ کې د ترخيم صورتونه:

د منادیٰ په اخير کې ترخيم کول، يا خو يو حرف حذ کېږي، يا دوه ، يا يوه پوره کلمه، نو د دې لپاره مصنف رحمه الله له (فان كان فى آخره زيادتان) څخه تر (وان كان غير ذالک فحرفٌ واحدٌ) پورې په عبارت کې د منادیٰ پنځه صورتونه او د ترخيم درې قسمونه بيانوي، په لومړيو دوو صورتونو کې دوهم قسم، په دريم کې دريم قسم، او په څلورم صورت کې د لومړي قسم بيان کېږي.

**لومړی او دوهم صورت**:

له فان كان فى آخره زيادتان څخه تر (او حرف صحيح قبله مدّةٌ) پورې په عبارت کې مصنف رحمه الله لومړی او دوهم صورت بيانوی، نو وايې: چې که چېرې په منادیٰ کې دوه حرفونه زائد وي، ليکن هغه دواړه حرفونه د يوه زيادتي په حکم کې وي، مثلاً الف او نون زائدتان، يا الف ممدوده د منادیٰ په اخير کې وي؛ لکه: مروان او اسماء، يا هغه داسې تر څلورو حرفونو زيات اسم وي، چې په اخير کې يې حرف صحيح وي، لېکن تر دې مخکې حرف صحيح نه وي، بلکې حرف مده (واو، الف او ياء) وي، نو په دې صورتونو کې په منادیٰ کې ترخيم کېږي او له اخېر څخه يې دوه حرفونه حذف کېږي، لکه له يا مروان څخه يا مروُ او له يا

اسماءُ څخه یا اسمُ او له یا منصورُ څخه یا منصُ او له یا ادریسُ څخه یا ادرِ او له یا عمّارُ څخه یا عمّ ویل جائز دي..

حاشیه والا نور مثالونه هم راوړي دي، لکه د (بصریّ) په اخیر کي یاء مشدده نسبتیه کومه چي په حقیقت کي دوې یاءان دي، خو په حکم کي یوه ده د دې منادیٰ مرخمه جوړیږي، (یابصرُ) ویل کیږي، دا راز له (یازیدَان) او (یازیدون) څخه یازیدُ او له (یاهنداتّ) څخه (یاهندُ) ویل کیږي.

د کتاب مصنف رحمة الله علیه د دې قول (فی حکم الواحدة) مطلب دادی، چي زائد حرف خو دوه وي، لیکن هغه دواړه د یوه حرف زائد په حکم کي وي، یعنی داسي نه کیږي، چي په کوم اسم کي له دوی دواړو څخه یو وي او دوهم نه وي، بلکي یا خو دواړه په یوه وار موجودیږي، یا محذوف، یعني د هغه کېدل او نه کېدل دواړه یو ډول وي.

**دریم او څلورم صورت:**

وان کان مرکبًا حذف الاسم الاخیر: له دې ځای څخه د منادیٰ دریم او څلورم صورت بیانوي، چي که چیري هغه منادیٰ مرکب منع صرف وي، یا مرکب بنائي وي، نو په دغو دواړو صورتونو کي په باقاعده ډول دوهمه پورهٔ کلمه حذف کیږي، لکه له (بعلبکّ) څخه یا بعلُ او له حضرموت څخه یا حضرَ او له خمسة عشر څخه خمسة.

وجه یې داده، چي د مرکب په دغو دواړو قسمونو کی دوهم اسم په منزله د تاء تانیث زائده ده، کوم چي په اصل کي خو یوه مستقله کلمه ده، لیکن د شدت اتصال او په یوځل د کثرت استعمال په وجه ګواکي چي دا یوه کلمه جوړ سوی او دوهمه کلمه ګواکی چي د همدغې یوې کلمه یو جزء جوړ سوی، نو په منادیٰ مرخم کي چونکه د کلمې اخیري جزء حذف کیږي، نو له ده څخه هم د همدې کلمې کومه چي په منزله د یوه جزء ده حذف کیږي.

**پنځم صورت:**

و ان کان غیرذالک:

که چېرې يو داسي صورت وي، کوم چي له مخکنيو څلورو صورتونو غير وي، هغه چي څرنګه هم وي، نو له داسي اسماء څخه صرف يو حرف حذف کېږي، لکه له (ياحارث څخه ياحارِ او له يا شعيبُ څخه يا شعَي او له يا ثمود څخه ياثمو ويل کېږي.

## د منادیٰ مرخم اعراب

**دوهمه خبره:** د منادیٰ مرخم اعراب:

و هو فی حکم الثابت علی الاکثر: د کافیه ملاصاحب رحمه الله په دې عبارت کې د منادیٰ مرخم اعراب را ښيي، په دې کې د نحوي د علماؤ دوه مذهبونه دي:

د نحوي جمهور علماء وايي، چي تر ترخيم مخکي څرنګه حرکت وي، هماغسي اوس هم پاتېږي، ځکه چي کوم حرف حذف سي، نو هغه ګواکې چي تر اوسه قائم او دائم دی، مثلا په (ياحارثُ) کي پر (راء) د کسري حرکت و، نو تر ترخيم وروسته هم هماغه حرکت وي، نو (ياحارثُ ياحارِ) ويل کېږي او په (ياثمودُ) کي واو ساکن وو، نو تر ترخيم وروسته هم ساکن پاتېږي، لکه يا ثمُوْ او يا کروانُ ياکروَا.

و قد يُجعل اسمًا برأسه: د نحوي ځيني علماء وايي، چي کله کله تر ترخيم وروسته باقي پاتې حروف هم مستقل اسم مثل کېږي، نو تر ترخيم مخکی چی د دوی کوم اعراب و، هماغه اعراب اوس هم ويل کېږی، نو مذکوره مثالونه د دوی په نزد داسي کېږي له (ياحارثُ څخه يا حارُ او له ثمود څخه ياثَمُوْ) په دې کي واو په طرف کی د واقع کېدو په وجه په ياء بدلېږي، بيا د ياء د مناسبت په وجه د ماقبل ضمه په کسره بدلېږي، بيا د (يدعوو يرمي) په قانون سره د ياء حرکت غورزول کېږي، (ياثَمِیْ) ځيني جوړېږي.

او (ياکروانُ يا کَرَوْ) ويل کېږي، بيا واو متحرک ماقبل يې مفتوح و، نو د (قال باع) په قانون سره الف جوړ سو، نو (ياکَرَا) سو.

## شپېتم (۶۰) درس

### د مندوب تعريف او ضروري مسائل يې

و قد استعملوا صيغة النداء في المندوب، وهو المتفجَّع عليه بيا او واو واختص بواو وحكمه في الاعراب والبناء حكم المنادٰى، و لك زيادة الالف في آخره، فان خفت اللبس قلتَ واغلامكيه، واغلامكموه، ولك الهاء في الوقف و لاينُدب الاالمعروف، فلا يقال وارجلاه، وامتنع وازيدالطويلاه، خلافًا ليونس.

**ترجمه:** او په یقیني توګه اهل عرب حروف ندا په مندوب کي هم استعمالوي او هغه نوم دی دهغه شی، پر کوم چي واویلا او درمندي کېږي د (یاء) یا (وا) په ذریعه او له مندوب سره (وا) خاص سوی دی او د ده حکم په اعراب او بناء کي د منادٰی د حکم په څېر دی او ای مخاطبه! ته (الف) زیاتولای سي د دوی په اخیر کي، لیکن که چیري د التباس وېره وي، نو داسي یې ویلای سي: واغلامکموه، او ستا لپاره د وقف په حال کي (هاء) زیاتول هم جائز دي او مندوب نسي کېدای، پرته له معروف څخه، نو داسي نسي ویل کېدای، وارجلاه او ناجائز دی: وازیدالطویلاه، په دې کي امام یونس مخالف دی.

**تشریح:** د نن په سبقه کي یو تمهید او څلور خبرې دی:

①: د مندوب تعریف او حروف ندبه، ②: د مندوب حکم، ③: د مندوب د استعمال طریقه، ④: د مندوب لپاره ضروري قاعدې.

**تمهید:**

و قد استعملوا صيغة النداء في المندوب: د مندوب تر تعریف مخکی د کافیه ملاصاحب رحمة الله عليه دا عبارت د تمهید په ډول راوړي دي، وایې: چي عرب حضرات په حروف نداء کي (یاء) دمندوب لپاره هم استعمال کړې ده، د دې لپاره چي د مندوب څه ناڅه مناسبت له منادٰی سره پیداسي، نو د کافیه ملاصاحب رحمة الله عليه مناسب وبلل چي د ده هم څه ناڅه یادونه د منادٰی په بحث کي وکړي.

## د مندوب تعریف او حروف ندبه

**لومړی خبره:** د مندوب تعریف او حروف ندبه:

وهو المتفجّع علیه بیا او واو: په دې عبارت کې مصنف رحمه الله علیه د مندوب تعریف بیانوي، مندوب له (ندب، یندب ندبًا وندبةً) څخه د اسم مفعول صیغه ده، لغوي معنا یې ده: هغه مړی، د کوم چې د ښېګڼو پر یادولو اه او زاری کېږي او له وارثینو سره د درمندۍ څرګندونه کېږي او پرې ژړاکوونکي په ژړا کې معذور بلل کېږي، دا خو لاڅه چې اورېدونکی داسې ګڼي، چې په یقیني توګه د مړه سوي مرګ یوه عظیمه پېښه او واقعه ده.
او د نحوي په اصطلاح کې مندوب هغه دی، پر کوم چې په (یاء او واو) سره آه و زاری کېږي، بیا متفجع علیه عام دی، چې د ده پر وجود آه وزاری کېږي، یا یې پر عدم موجودګۍ کېږي، د وجوب مثال: (واحسرتاه وامصیبتاه)، لکه زموږ په هېواد کې چې غدار، ظالم د غریبانو پوستونه وکاږي او وربادنۍ مشرسي، چې تر هر موجوده اولس مشر وروسته د یو ښه او عادل اولس مشر انتظار کېږي، خو لکه څرنګه چې وي هماغسې چلېږي او تر ده وروسته دوهم تر ده لوی ظالم راسي، نو ټول غریبان وایې (واحسرتاه وامصیبتاه)، چې های مصیبت او های افسوس! دا خو ګواکې چې تر ګټري وروسته خنزیر راسي اود (فَخَلَفَ مِنْ بَعضدِهِمْ خَلْفٌ) مصداق سو، ای خدایه! اوس به له دې څخه کله ځان وژغورو.
او د عدم موجودګۍ مثال داسې دی، چې د مثال په توګه زید مړ سي او یو څوک ووایې: (وازیداه او واحسرتاه)، یعنی د ده پر مرګ د افسوس او غم څرګندونه وسي او د افسوس دا راز اظهار کول، هغه که د چا پر موجودګۍ وي، یا پر عدم موجودګۍ د (یا حرف ندا) او (واحرف ندبه) په ذریعه کېږي.
دلته یو سوال کېږي، چې د کتاب مصنف رحمه الله علیه خو مخکې (وقد استعملوا صیغة الندا) وویل، کوم چې مطلق دی او ټولو حروف نداء ته شامل دی او دلته ته وایې، چې (و هو المتفجع علیه بیاء) نو دلته یوازې د (یاء) له خاص والي څخه مراد څه دی؟
د دې جواب: بلکل سمه ده د کتاب مصنف رحمه الله علیه (وقد استعملوا صیغة النداء) ویلي دي، لېکن د مطلق په هکله یوه قاعده مشهوره ده، چې (المطلق اذا یُطلق

يراد به الفرد الكامل) او دا ښكاره خبره ده، چې په حروف نداء كي فرد كامل (يا ء) ده، نو ځكه يې خاص كړې ده.
واختصّ بوا: (وا) صرف له مندوب سره خاص ده او (يا) عامه ده، د منادٰی او مندوب دواړو لپاره کارېږي.

## د مندوب حکم

**دوهمه خبره:** د مندوب حکم:

وحكمه في البناء والاعراب حكم المنادٰى: په دې عبارت كي د مندوب د مبني او معرب كېدو په اعتبار او د اعراب په اعتبار حكم بيانېږي، هغه په دې ډول چې د مندوب حکم بعينه هماغه دی، کوم چې مخکي موږ په منادٰی کي بيان كړ، مثلا موږ ويلي وه، چې منادٰی مفرد معرفه مرفوع وي، مبني وي پر علامه د رفع، نو دا راز كه چېري همدا مفرد معرفه مندوب جوړ سي، نو دا هم مبني پر علامه د رفع كېږي، لكه له (يازيدُ) څخه (وازيدُ).

## د مندوب د استعمال طريقه

**دريمه خبره:** د مندوب د استعمال طريقه:

ولك زيادة الألف في آخره: په دې عبارت کی د مندوب د استعمال طريقه را ښيي:
يوه طريقه خو داده، چې د مندوب په اخير كي (الف) رائجي، ځكه چې په مندوب كي اواز لوړول مقصود وي او دا مقصد د (الف) راوړلو په صورت كي په پوره توګه ترسره كېږی او په دې صورت كي د ده په اخېر كی (ها) د وقف هم لګول كېږي، (د كومې چې لږ مخكي مصنف رحمه الله عليه پخپله بيان وكړ)، چې (ولك الهاء في الوقف) او دا ځكه راوړل كېږي، چې حرف مده په ښه توګه ادا سي، لكه له (يازيدُ) څخه (يازيداه).

فان خفتَ اللبس قلتَ: واغلامكيه، په دې عبارت كي مصنف رحمه الله عليه وايې: چې د مندوب په اخير كي الف راوړل جائز او صحيح دي، لېكن چېري چې د ده له لوېدو (اوړېدو) څخه د يوې صيغې له بلې سره التباس لازمېږي، نو هلته الف

نه زیاتیږي، د مثال په توګه چي د یو واحده مؤنثه مخاطبه مرېيي مړسي، یا نه پر هغه ندبه کوي، نو (واغلامکِ، یا یا غلامکِ) ویل کیږي، لیکن که چیري د ده په اخیر کي الف اوږد کړي، تر هغه وروسته (هاء) د وقف لپاره هم ولګول سي، نو (واغلامکاه) جوړیږي او بعینه همدا صورت هغه وخت هم جوړیږي، کله چي د واحد مذکر حاضر پر مرېيي دا راز ندبه کیږي، نو د دواړو تر مینځ التباس (ګډوډی) رائحي، نو له دغه التباس څخه د ځان ساتلو لپاره د ده په اخیر کي د الف پر ځای یاء ساکنه لګول کیږي، (یاغلامکیه) ویل کیږي.

دا راز که چیري د جمع مذکر حاضر پر مرېيي ندبه کول وی، او په اخیر کی یې الف ولګول سي، نو له (واغلامکم) څخه (واغلامکماه) جوړیږي، کوم چي له تثنیه مذکر حاضر سره ملتبس کیږي، نو له دغه التباس څخه د ځان ساتنې لپاره په اخیر کي (واو)، تر هغه وروسته (هاء) دوقف لپاره لګول کیږي، (واغلامکموه) ویل کیږي.

**څلورمه خبره:** د مندوب لپاره دوې ضروري قاعدې:

ولا یُندب الا المعروف: په دې عبارت کي د مندوب لپاره یوه قاعده بیانیږي، هغه دا چي ندبه صرف پر معروف (معلوم) شخص کیږي، پر کوم مجهول او نامعلوم سړي نسي کیدای، ځکه چي د معلوم شخص صفات هم معلوم وي، نو ندبه کوونکي چي کله د ده صفات یادوي او ژاړي، نو اوریدونکی دی په ژړا کي واقعي معذور ګڼي او که پر معلوم سړي نه وي، نو اوریدونکی همداسي وایې چي دا لېوني ولې ژاړي؟ او پر چا ژاړي؟، نو له همدې وجې دا شرط ولګول سو چي ندبه پر معلوم سړي کیږي، نو (وارجلاه) ویل صحیح نه دي.

وامتنع وازیدالطویلاه: په دې عبارت سره دوهمه قاعده بیانوي، لکه څرنګه چي ندبه پر معلوم کیږي، پر مجهول او نامعلوم نه کیږي، نو همدا راز که چیري پر موصوف ندبه کول وي، نو د ده په اخیر کي خو (الف او هاء) راوړل جائز دي، لیکن دده د صفت په اخیر کي دا دواړه نسي راوړل کیدای، نو (وازیداه الطویل)

ويل خو جائز دي، ليکن (وازيداه الطويلاه) ويل جائز نه دی، دا خو د نحويې د جمهورو علماؤ مذهب دی.

او امام يونس رحمه الله وايې، چي (الف او هاء) د صفت په اخېر کي هم راتلای سي، پر دغه دعوی له ده سره دوه دلېلونه سته، يو عقلي او دوهم نقلي:

عقلي دلېل: لکه څرنګه چي مضاف مندوب وی، نو (الف او هاء) يې له مضاف اليه سره راتلای سي، سره له دې، چي مضاف او مضاف اليه يو له بل سره غير وی، نو موصوف او صفت کوم چي دواړه ذات واحده وي، په دوی کي خو يې په طرېقه اولیٰ سره راوړل جائز دي، نو د ده په نزد لکه (واغلامکاه) ويل چي روا دي، دا راز (وازيدالطويلاه) ويل هم جائز دي.

نقلي دلېل: له يوه اعرابي (صحرايي) څخه دوې پيالې ورکې سوې، تر ډېرې پلټنې وروسته چي يې پيدا نکړې، نو يې دندبه کولو پر مهال وويل: (واجُمْجُمَتَيَّ الشَّامِيَتَيْنَاهُ) يعني های زما دوو شامي پيالو!

دلته وګوره! ندبه پر (جمجمتين) کوي، ليکن (الف اوهاء) يې پر صفت (الشاميتين) راوړي دي.

خو د نحوي جمهور علماء د لومړي دلېل جواب داسي ورکوي، چي مضاف او مضاف اليه ګواکي چي يو اسم دي، ځکه مضاف په خپله معنا ورکولو کي مضاف اليه ته محتاج دی، نو ګواکي چي مضاف اليه د مضاف يو جزء دی، ځکه نو پکي د (الف اوهاء) راوړل جائز دی، ليکن د دې پر خلاف د موصوف او صفت معامله داسي نه ده، بلکي هغه دواړه بېلې، بېلې مستقلی کلمی دی، او صفت صرف د موصوف د وضاحت لپاره راوړل کېږي، نو پر مضاف او مضاف اليه قياس کول قياس مع الفارق دی او بطلان يې ښکاره دی.

او د دوهم دلېل جواب يې داسي کړی، د علماء نحو په مقابله کي د يوه اعرابي قول څرنګه وړاندې کېدای سي، حال دا چي هغه قول شاذ هم دی.

## يوشپېتم (۶۱) درس

### د حرف نداء او منادیٰ د حذف بيان

و یجوز حذف حرف النداء الا مع اسم الجنس، والاشارة، والمستغاث والمندوب، نحو: (یُوسُفُ اَعْرِضْ عَنْ هٰذَا) وایهاالرّجل وشذّ اصبح لیلُ، وافتدِ مخنوق، واطرق کرا، وقد یحذف المنادٰی لقیام قرینة جوازًا، مثل الا یا اسجدوا.

**ترجمه:** او روا دي، د حرف نداء حذفول پرته له هغه نداء چې له اسم جنس، اشاره، مستغاث او مندوب سره وي، لکه (یُوسُفُ اَعْرِضْ عَنْ هٰذَا) وایهاالرّجل او شاذ دی اصبح لیلُ او افتدِ مخنوق او اطرق کرا او کله کله (چې قرینه وي) په جوازي توګه منادٰی حذف کېږي، لکه الا یااسجدوا.

**تشریح:** د نن په سبق کي درې خبرې دي:

①: د حرف نداء حذفول، ②: له دغې قاعدې څخه د څو صورتونو استثناء، ③: د منادٰی حذفول.

**لومړۍ خبره:** د حرف نداء حذفول:

و یجوز حذف حرف النداء: د ټول درس په اخېر کي تاسو دوې قاعدې بیان کړې وی، نن د کافیه ملاصاحب رحمه الله په دې عبارت کي درېیمه قاعده بیان کړې او بېرته د منادٰی اصل بحث ته تللی دی، قاعده داده، چې په منادٰی کی دننه که چېري کومه قرینه موجوده وی، نو له هغې څخه حرف نداء حذفول جائز دي، لکه (یوسُفُ اَعْرِضْ عَنْ هٰذَا)، دلته د قرینې د موجودېدو له وجې (یاء) حرف نداء حذف سوې ده، د یاء د حذف کېدو قرینه دلته داده، چې که چېري تر (یوسف) مخکي (یاء) حرف نداء محذوف ونه منل سي، نو دا خبره لازمېږي، چې (یوسف) مبتداء ده او مبتداء خبر غواړي او دلته له (اعرِضْ عَنْ هٰذَا) پرته له موږ سره بل شی نسته او دا خبر نسي کېدای، ځکه چې دا جمله انشائیه ده او د خبر لپاره د جمله خبریه کېدل ضروري دی.

د دې په مقابله کي د حرف نداء د محذوف منلو په صورت کی هېڅ خرابي نه راځي، ځکه چې دواړې جملې انشائیه جوړېږي، (یُوْسُف) سره له (یا) محذوفه منادٰی جوړېږي او دوهمه جمله یعنی (اعرض عن هذا) یې جواب د نداء جوړېږي.

دا راز په (ایهاالرجل) کي هم قرینه موجوده ده، هغه دا چي پر معرف باللام چي کله (ایها) داخل سي، حال دا چي پرده تر دې مخکي یاء حرف نداء داخله وي، نو دلته خو کوم حرف نداء نه لیدل کېږي، او بیا هم (ایها) پر داخل دی، نو په لازمي توګه به منو، چي دلته حرف نداء محذوف ده.

**دوهمه خبره:** له مذکوره قاعدې څخه د څو صورتونو استثناء:

الا مع اسم الجنس والاشارة والمستغاث والمندوب:

مصنف رحمة الله علیه په دې عبارت کي له مذکوره قاعدې څخه د څلورو شیانو استثناء کوي: (۱، ۲) الا مع اسم الجنس، والاشارة، چي اسم جنس او اشاره منادٰی جوړ سي، له دې څخه حرف نداء نسي حذف کېدای، وجه یې داده، چي اسم علم خو په عامه توګه منادٰی جوړېږي، لېکن په مقابله کي یې اسم جنس او اسم اشاره ډېر لږ منادٰی جوړېږي، نو د دغه قلیل الاستعمال کېدو سره، سره که چېري حرف نداء هم ځیني حذف سي، نو کتونکی دا راز اسم جنس نکره او اسم اشاره هماغه زوړ اسم اشاره بولي، مثلاً له (یارجل او یا هذا) څخه چي یا حرف نداء حذف کړل سي، (رجل او هذا) پاتېږي، چي پته یې نه لګېږي، چي آیا دا منادٰی دي، که نکره، ځکه نو په دغو دواړو ځایونو کي د حرف نداء ذکر کول ضروري سو، د دې لپاره چي مذکوره خرابي لازمه نسي.

(۳، ۴): والمستغاث والمندوب: درېیم او څلورم صورت داچي له منادٰی مستغاث او مندوب څخه هم د حرف نداء حذفول جائز نه دي، ځکه چي په دې دواړو کي د صوت لوړول مقصود وی او د صوت لوړوالی د منادٰی په صورت کي راځي، لیکن که حرف نداء حذف کړل سي، نو هغه منادٰی نه پاتېږي او د منادٰی نه پاتې کېدو په صورت کي د اواز لوړاولی هم نه پاتېږي، او د اواز د نه لوړوالي په صورت کی هغه مستغاث او مندوب نه پاتېږي، نو چي کوم اصل بقصود دی، هغه له مینځه ځي:

و شذّ اصبح لیل: په دې عبارت سره د یوه سوال جواب کوي، سوال دادی، چي اوس موږ یوه قاعده وویله، چي (و یجوز حذف حرف النداء الا مع اسم

الجنس...الخ) او دلته (ليل) كوم چي اسم جنس دی، له دې سره، سره هم په (اصبح ليل) كي ځيني حرف نداء حذف سوی دی، ځكه چي دا په اصل كی (ادخل فی الصّباح ياليلُ)، يا (اوصرفی الصّباح يا ليل) و.
د دې قصه داده، چي ام جندب نومې مېرمن پر امرءالقيس (كوم چي مشهور عربي شاعر و) عاشقه وه، تر واده وروسته لومړی شپه وه، نو له امرءالقيس څخه يو داسي حركت صادر سو، كوم چي د دې ناخوښه و، نو هغه ټوله مينه چي د دې په سينه كی وه، په يوه وار ځيني ووته او على الصباح (تر سهار كېدو) پوري يې له ده څخه د بېلېدو ټېنګ هوډ وكړ، په انتظار كي يو، يو ګړی په مشكل تېرېده، خو په اخير كي ډېره تنګه سوه، نو ويې ويل (اصبح ليلُ، ای ادخل فی الصباح ياليلُ) يعني ای شپې! په تلوار تېره سه او د سهار په وخت كي داخله سه.
دا راز په (وافتد مخنوق) كي هم مخنوق اسم جنس منادٰی دی او حرف نداء ځيني حذف كړل سوی دی، ځكه چي دا په اصل كي (افتد نفسک يا مخنوق) و.
د دې قصه اوشان ورود دادی، چي سليک بن سلكه نوم سړی يوه شپه ستوني ستغ پروت و، چي يو غل راغی، د ده پر غاړه يې زور وكړ، ويې ويل چي (افتدِ مخنوق) يعني ای خفه سوې د خپل ځان فديه اداكړه، چي له مرګه خلاصون ومومي.
دا راز په (اطق كرا) كی هم (كرا) اسم جنس منادٰی ده او حرف نداء ځيني حذف سوی دی، ځكه چي دا په اصل كي (اخفض عنقک يا كروانُ) و.
د دې قصه او شان ورود داسي بيان سوی، چي د جاهليت په زمانه كی يو منتر مشهورو، چي په ذرېعه به يې كروان نومي مرغۍ نېول كېدل، پوره منتر په لاندي ډول و:

اطق كرا اطرق كرا
فانّ النّعامة فی القری
و بغائكم فی ارضنا
مااستنسر امااستنسرا

يعني ای كروان نومي پرندې! نو ته پخپله خپل سر كښته كړه او زما لاسو نو ته راسه، كه داسي ونكړې، نو زما لپاره ستا نېول او ښكار كول څه ستونزمن نه دی،

ځکه چې تر ټا لويې مرغۍ، يعنې شترمرغ موږ ښکار کړی دی، نو ستا وژل هم څه ستونزمنه خبره نه ده، نو دغو کروان نومو مرغيو چې به دا منتر واورېد، نو را جمع به سوې.

غرض دا چې په دې ټولو ځايونو کې اسم جنس کوم چې منادیٰ دی او یا حرف نداء ځيني حذف سوې ده، نو په دې خوله (الا مع اسم الجنس) قاعدې سره مخالفت لازمېږي؟

مصنف رحمة الله عليه د دې ټولو ډېر اسانه جواب ورکړی دی، چې (و شذّ)، چې وروره! دا ټول شاذ دي، شاذ لکه نادر، نادر ليس بشئ.

دوهم جواب موږ دا ورکوو، چې جنابه! دا کومې قاعدې چې بيان سوې، دا د فصحاؤ او بلغاؤ علماؤ د کلام لپاره بيان سوي دي، نو که چېرې پر دې تاسو کوم اعتراض لرئ، نو د دغو حضراتو له کلام څخه يو کلام وړاندي کړئ، نو بيا اعتراض وکړئ، ليکن د مجازي عاشقانو، غلو او جادوګرانو په کلام وړاندي کولو تاسو اعتراض نسئ کولای، ځکه چې د دغو دوو ډلو تر مينځ خو يو ليري مناسبت هم نسته.

### د منادیٰ حذفول

**درېيمه خبره:** د منادیٰ حذفول:

و قد يُحذف ا لمنادٰی لقيام قرينة جوازًا:

چې کله کله منادیٰ هم حذف کېږي، کله چې يې پر حذف کومه قرينه موجوده وی، مثلا (الا ياسجدوا) کوم چې په اصل کي (الا ياقوم اسجدوا) و، نو (قوم) کوم چې منادیٰ و، هغه په جوازي ډول حذف سوی دی، ځکه چې د ده تر حذف وروسته هم (الااسجدوا) د ده پر حذف دلالت کوي، ځکه چې قاعده ده، چې حرف نداء کله هم پر فعل نسي داخلېدای، پر اسم داخلېږي، ليکن دلته چې کله موږ وکتل، نو پر حرف نداء فعل داخل سوی دی او دا دقاعدې خلاف دی، نو له دې څخه معلومه سوه، چې دلته هرومرو يو اسم محذوف دی او په اصل کي منادیٰ هماغه محذوف اسم دی.

## دوه شپېتم (۶۲) درس

### په وجوبي ډول د فعل د حذف كېدو درېيم ځاى، يعنى د ما اضمر عامله بيان

والثالث: ما اضمر عامله علىٰ شريطة التفسير وهو كل اسم بعده فعلٌ او شبهه مشتغلٌ عنه بضميره او متعلقه، لوسلّط عليه هو او مناسبه لنصبه، مثل: زيدًا ضربته و زيدًا مررتُ به و زيدًا ضربتُ غلامَهُ و زيدًا حُبستُ عليه، يُنصب بفعلٍ مضمرٍ يفسّره ما بعده، اى: ضربتُ و جاوزتُ واهنتُ ولابستُ.

**ترجمه:** او درېيم هغه اسم دى، چي عامل يې د تفسير په شرط مقدر سوى وي او هغه (يعني ما اضمرعامله) هغه اسم دى، تر كوم وروسته چي فعل، يا شبه فعل وي او هغه فعل يا شبه فعل دغه اسم ته له اعراب وركولو څخه اعراض كوي، ځكه چي هغه يا خو د دغه اسم ضمېر ته عمل وركوي، يا يې متعلق ته، كه چېري فعل، يا شبه فعل پخپله يا يې مناسب پر كوم فعل ما اضمرعامله داخل سي، نو هغه يقينًا ده ته نصب وركوى، لكه (زيدًا ضربته و زيدًا مررت به و زيدًا ضربتُ غلامَهُ و زيدًا حسبتُ عليه) او نصب وركوي دغه اسم ته د داسي فعل مقدر په ذرېعه د كوم چي مابعد دده تفسېر كوي، يعني (ضربتُ و جاوزتُ واهنتُ و لابستُ).

**تشرېح:** د نن په سبقه كي تر تمهيد وروسته درې خبرې كېږي:

①: د مااضمر عامله علىٰ شرېطة التفسير تعرېف، ②: د مثالونو وضاحت، ③: د ما اضمر عامله اعراب.

**تمهيد:** د مفعول به د بحث په شروع كي مصنف رَحِمَهُ اللهُ ويلي وه، چي (و وجوبًا فى اربعة مواضع) يعني د مفعول فعل په څلورو ځايونو كى حذفول واجب دي، لكه چي له دغو څلورو ځايونو څخه د لومړيو دوو يعنى سماعى او منادىٰ ذكر

خو وسو، اوس دلته د دریم مقام (ما اضمر عامله) بیان کېږی، یعنی چي د مفعول به فعل په دې شرط حذف کړل سي، چي مخکي یې تفسیر را روان وي.

**د ما اضمر عامله علیٰ شریطة التفسیر تعریف**

**لومړی خبره:** د ما اضمر عامله علیٰ شریطة التفسیر تعریف:

و هو کل اسم بعده فعل او شبهه مشتغلٌ عنه بضمیره او متعلقه لو سلّط علیه هو او مناسبه لنصبه، چي ما اضمر عامله هغه اسم دی، تر کوم وروسته چي کوم فعل، یا شبه فعل وي، لېکن فی الحال هغه په مذکوره اسم کي کوم عمل نه کوی، ځکه چي هغه فعل یا شبه فعل یا خو د مذکوره اسم په ضمیر کي عمل کړی وي، یا یې په متعلق کي، لېکن همدا فعل، یا شبه فعل یا دده مناسب فعل دا سي وي، چي که چېري په دوی کي یو هم د ما اضمر عامله په شروع کي راسي، براه راست د هغه عامل جوړېږي، نو په دوی کي هریو دغه خپل معمولَ (مفعول به) جوړوي، **نصب ور کوي**.

**دوهمه خبره:** د مثالونو وضاحت:

له زیدًا ضربته څخه تر زیدًا حبستُ علیه پوري د کافیه ملاصاحب رحمة الله علیه د ما اضمر عامله څلور مثالونه بیانوی، لېکن دومره خبره په یادلرئ، چي د کافیه ملاصاحب رحمة الله علیه په تعریف کي دوه شیان ذکر کړې وه، یعني د فعل او شبه فعل، لېکن مثالونه یې ټول صرف د فعل راوړي دي، د شبه فعل یې کوم مثال نه دی راوړی، نو د هریوه مختصر وضاحت ته غوږ سئ:

①: زیدًا ضربته:

دا په اصل کي (ضربتُ زیدًا ضربته) و، په دې کی (زیدًا) هغه اسم دی، د کوم چي فعل (عامل) حذف کړل سوی او د ده لپاره لګول سوی شرط هم موجود دی، چي تر ده وروسته کوم (ضربتُ) فعل دی، یا د هغه حذف سوي فعل تفسیر کوي او فی الحال یې په (زیدًا) کي عمل ځکه نه دی کړی، چي دا د همدغه زید وطرفته په راجع ضمیر کي عمل کړی دی، لېکن که چېري دغه عامل له ضمیر څخه فارغ سي (زیدًا) په شروع کي راوړل سي، نو دا هغه هم خپل معمول جوړوي، نصب ورکوي، لکه ضربتُ زیْدًا.

په داسي ځای کي د مفعول به فعل حذفول ځکه واجب دی، چي د نه حذف کېدو په صورت کي د مفسّر او مفسَّر دواړو جمع کېدل لازمیږي، کوم چي د فصحاؤ په کلام کي یو لوی عیب شمېرل کېږي.

②: زیدًا مررت به:
دا په اصل کی (جاوزتُ زیدًا مررتُ به) و، نو دلته هم (جاوزت) فعل حذف سوی دی، د (مررت به) په ذریعه یې تفسیر بیان سوی دی او دغه زید ته په راجع ضمیر کي یې عمل کړی دی، اوس که چیري له ده سره مناسب فعل (جاوزتُ) د همدغه ما اضمرعامله یعنی د (زیدًا) په شروع کي راوړل سي، نو دا هغه ته نصب ورکوي، لکه (جاوزتُ زیدًا).
دلته بزاه راست (مررتُ) نسي مسلط کېدای، ځکه چی (مررتُ) به یا له حرف جر سره مسلط کېږي، یا به بېله حرف څخه، که چیري په حرف جر سره مسلط سي، نو هغه د مفعول به تقاضا خو کوي، لیکن هغه ته نصب نسي ورکولای، ځکه هغه خو د همدغې (باء) حرف په وجه مجرور کېږي او که چیري بېله باء څخه مسلط سي، نو بیا (مررتُ) فعل لازمي دی، کوم چي مفعول به ته اړتیا نه لري، نو کله چي په دواړو صورتونو کي ده ته نصب نسي ورکولای، نو په لازمي توګه د دغه فعل مناسب راوړل سو، چي هغه ته نصب ورکړی او هغه (جاوزتُ زیدًا، ای: مررتُ به) دی.

③: زیدًا ضربتُ غلامَهُ:
دا دریم مثال دی، په کوم کی چی وروستنی فعل د مفعول به په متعلق یعني (غلام) کی عمل کوی، دا که چیري پر مخکنی اسم داخل کړل سي، نو دا هغه ته هم نصب ورکوي، مثلا (ضربتُ زیدًا)، لیکن فی الحال پکی عمل ځکه نه کوي، چی دا د هغه په متعلق یعني (غلام) په عمل سره مشغول دی او هغه ته یې نصب ورکړی دی.

④: زیدًا حُبستُ علیه:
دا هم د هغه اسم مثال دی، تر کوم وروستني فعل چي د دغه اسم په ضمیر کی عمل کړی وی او بعینه همدا فعل پر مخکنی اسم نسي مسلط کېدای، ځکه هغه

به یا په (علی) حرف سره مسلط کېږي، یا به بېله (علی) که چېري په (علی) سره مسلط سي، نو دا هغه ته دنصب پر ځای جر ورکوي او که چېري بېله (علی) مسلط کړل سي، نو دا هغه ته د نائب فاعل کېدو له وجې رفع ورکوي، نو دلته هم د ده مناسب او هم معنا فعل (لابستُ) پر ده مسلط کېږی او ده ته نصب ورکوي، لکه (لابستُ زیدًا ای حُبستُ علیه).

## د ما اضمر عامله اعراب

**درېیمه خبره:** د ما اضمر عامله اعراب:

و ینصب بفعلٍ مضمر یفسره مابعده: په دې عبارت کي د ما اضمر عامله اعراب بیانوي، چی دا منصوب کېږی او عامل ناصب دده هغه تقدیری فعل دی، د کوم چی تفسیر وروستنی فعل کړی وي، لکه په لومړي مثال کي فعل مقدر (ضربتُ) او په دوهم کي (جاوزتُ) او په درېیم کي (اهنتُ) او په ځلورم کي (لابستُ) دی.

## دري شپېتم (۶۳) درس

## د ما اضمر عامله اعرابي صورتونه

و یُختار الرفع بالابتداء عند عدم قرینةٍ خلافه او عند وجود اقوی منها کاما مع غیرالطلب و اذا للمفاجأة.

**ترجمه:** او رفع د ابتداء په وجه غوره ده، که یې چېري پر خلاف قرینه نه وي او یا کومه قوي قرینه موجوده وی، لکه (اما) چي کله له جمله انشائیه سره نه وي او چي تر (اذا) مفاجاتیه وروسته وي.

**تشریح:** د نن په سبق کي د ماضمر عامله داعراب په اعتبار سره لومړی حکم بیانېږي، یعنی رفع اولیٰ او نصب جائز دی.

لومړی حکم: رفع اولیٰ او نصب جائز:

د عربو په کلام کي ټول درې ځایونه داسي دی، چیری چي پر اسم رفع ویل غوره او اولیٰ وی، نو مصنف رحمة الله علیه هغه دلته بیانوی، ورته غور سئ:

**درفع د غوروالی لومړی مقام:**

بالابتداء عند عدم قرینة خلافه: لومړی مقام چې کوم اسم مبتداء واقع سوی وي او د ما اضمر عامله له قبیلې څخه هم جوړیدای سي، له دواړو قبیلو څخه پر کیدو یې باقاعده دلائل او قرینې هم موجود وي، لیکن ما اضمر عامله والا قرینه یا خو نسبتًا کمزوري وی، یا تر زیات لا زیات مرفوع ویونکی یې له قرینې سره مساوي وی، نو په داسي ځای کي د ده مرفوع ویل اولیٰ او غوره دي او همدا مطلب دی د (عند عدم قرینة خلافه)، نو ګواکي چې دا عبارت په اصل کي داسي دي: (عند عدم قرینة راجحةٍ خلافه)، لکه (زیدٌ ضربته) دا مرفوع او منصوب دواړه ویل کېدای سي، د مرفوع ویلو په صورت کی (زیدٌ) مبتداء جوړیږي او د منصوب ویلو په صورت کی دا د ما اضمر عامله له قبیلې څخه کیږي، لیکن په منصوب ویلو کي چونکه د (ضربت) فعل حذف لازمیږي او په مرفوع ویلو کي کوم حذف نه لازمیږي، ځکه نو مرفوع ویل اولیٰ او غوره سو.

د رفع د اولویت دوهم مقام:

او عند وجود اقویٰ منها: چي په کومه جمله کي د دغه اسم د مرفوع او منصوب دواړو ویلو قرینې موجودي وي او په دواړو کی د هریوه قرینه وجه د ترجیح هم لری، لیکن په دواړو کي د رفع ترجیح اقویٰ او زیاته راجح وی، نو په داسي ځای کي هم د دغه اسم مرفوع ویل غوره دي.

(کاما مع غیرالطلب واذا للمفاجأة) په دې عبارت کی د دې قاعدې لپاره دوه صورتونه بیانوي:

①: یوه دا چي یو داسي اسم وي، چی په شروع کي یې (اما) وي او تر ده وروسته جمله خبریه وي، انشائیه نه وي، نو داسي اسم مرفوع ویل کیږي، لکه (لقیتُ القوم و أما زیدٌ فاکرمته) وګورئ! دلته (زیدٌ) تر (اما) وروسته راغلی دی، منصوب او مرفوع دواړه ویل کېدای سي او د هریوه لپاره قرینه مصححه او مرجحه دواړې موجودي دي:

**قرینه مصححه**: مثلًا د منصوب ویلو قرینه مصححه یې دا ده، چي دا د ما اضمر عامله له قبیلې څخه ومنل سي، وروستنی فعل یې تفسیر جوړ سي.

**قرینه مرجحه:** او قرینه مرجحه یې داده، چې د منصوب ویلو په صورت کې د معطوف او معطوف علیه ترمینځ مناسبت پیداکېږي، هغه په دې ډول، چې دا دواړې جمله فعلیه جوړېږي او د (اکرمت) فعل عطف پر (لقیت) فعل او د (زیدٌ) اسم عطف پر (القوم) اسم کېږي او د عبارت تقدیر داسي کېږي: (لقیت القومَ و اما اکرمتُ زیدًا فاکرمته)، نو د جمله فعلیه عطف پر جمله فعلیه او د جمله اسمیه عطف پر جمله اسمیه راغی او د مرفوع ویلو لپاره هم دواړه قسمه قرینې موجودي دي:

**قرینه مصححه:** مثلا قرینه مصححه داده، چې (زیدٌ) اسم علم په ابتداء کې واقع سوی دی او تر ده مخکې کوم لفظي عامل نسته، نو دی د مبتداء په جوړولو مرفوع ویل کېږي.

**قرینه مرجحه:** او قرینه مرجحه داده، چې تر (اما) وروسته اکثره وختونه مبتداء راځي، څرنګه چې مبتداء مرفوع وي، ځکه نو دا هم مرفوع کېږي، اوس موږ د دواړو قسمونو قرینو ترمینځ پرتله وکړه، نو د مرفوع ویلو قرینه اقویٰ او غوره معلومه سوه، ځکه چې د منصوب ویلو په صورت کې صرف د معطوف او معطوف علیه ترمینځ مطابقت مطلوبه حاصلېږي، حال دا چې ددې په مقابله کې دده پر عکس کول هم جائز دی، ځکه د عربو په کلام کې د دې تر بسه پوري مثالونه او بېلګې سته او په دې صورت کې د فعل حذف هم راځي، حال دا چې عدم حذف تر حذف اولیٰ او غوره دی.

لېکن د مرفوع ویلو په صورت کې دوه شیان حاصلېږي، یو دا چې تر (اما) وروسته کله هم فعل نه راځي، بلکی اسم راځي، لکه چې په موجوده صورت کې دي او دوهم دا چې په دې صورت کې د هېڅ شی حذفول نه لازمېږي، بلکی په جمله کې د دې ټول اجزاء موجود دي، نو د رفع قرینې اقویٰ سوي، ځکه یې نو مرفوع ویل غوره او خوښ سو، لکه (لقیتُ القومَ و اما زیدٌ فاکرمته).

د رفع د غوراوي درییم مقام:

**و اذا للمفاجاة:** چې یو اسم تر (اذا) مفاجاتیه وروسته واقع وی، نو هم یې منصوب او مرفوع دواړه ویل جائز دي او د دواړو خپلې، خپلې قرینې هم موجود

دي، لیکن په دې صورت کي هم د رفع د قرینې د اقوٰی کیدو له وجې د ده مرفوع ویل غوره او اولی دي، لکه (خرجتُ فاذا زیدٌ یضربه عمرٌو).

ګوره! دلته د (زیدٌ) د منصوب ویلو قرینه مصححه داده، چی دلته چې (زید) د ما اضمرعامله له قبیلې څخه سي، وروستنی (یضربه) فعل یې د تفسیر لپاره جوړ سي.

او قرینه مرجحه یې داده، چی په دې صورت کي د معطوف او معطوف علیه تر مینځ مطابقت مطلوبه حاصلیږي، یعني د جمله فعلیه عطف پر فعلیه او د جمله اسمیه عطف پر جمله اسمیه راغلی دی.

او د رفع لپاره قرینه مصححه داده، چې (زیدٌ) له عوامل لفظیه څخه خالي دی او دوهمه دا چې پر ده (اذا) مفاجأتیه داخله ده، نو په دغو دواړو وجو دَی مرفوع ویل کیږي.

او قرینه مرجحه داده، چی (اذا) مفاجأتیه پر اسم داخلیږي، پر فعل کله هم نه داخلیږي، او دوهمه وجه داده، چی د نصب په صورت کي د فعل حذفول لازمیږي، حال دا چي د مرفوع ویلو په صورت کي هیڅ حذف نهٔ لازمیږي، نو د مرفوع ویلو قرینې اقوٰی سوي، ځکه نو ددغه اسم مرفوع ویل اولیٰ او غوره دي.

## څلورشپیتم (۶۴) درس

### د ما اضمرعامله اعرابي صورتونه

و يُختار النَّصب بالعطف علىٰ جملةٍ فعليةٍ للتناسب، وبعد حرف النفی والاستفهام، واذا الشّرطية وحيث، وفی الأمر والنهی، اذ هی مواقع الفعل وعند خوف لبس المفسَّر بالصّفة، مثل (إنَّا كُلَّ شَیْءٍ خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ) و يستوی الأمران فی مثل: زيدٌ قامَ وعمرًوا اكرمته.

**ترجمه**: او نصب په وجه د عطف پر جمله فعلیه غوره دی، د تناسب د پیداکېدو لپاره او تر حرف نفي او استفهام او (اذا) شرطیه او (حیث) وروسته او په امر اونهی کی، ځکه چی دا د فعل مقامات دی او کله چي د مفسّر له صفت سره د

التباس وېره وي، لکه (إِنَّا كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ) اود : زیدٌ قامَ وعمروًا اکرمته په خبر ترکیب کي دواړه جائز دي.

**تشریح:** د نن په سبقه کي د ماضمرعامله د اعراب په اعتبار سره د دوهم او درېیم حکم بیان کېږي:

**دوهم حکم:** نصب اولیٰ او رفع جائز:

ویختارالنصب بالعطف علیٰ جملة فعلیة: د کافیه ملاصاحب رحمه الله چي کله د ماضمر عامله د اعراب په اعتبار سره لومړی حکم (یعنی د رفع د غوروالی) صورتونه ذکر کړل، نو اوس دهغه دوهم حکم (یعني د نصب د غوروالي اته صورتونه) ذکر کوي:

**لومړی صورت:** ویختارالنصب بالعطف علیٰ جملة فعلیة:

لومړی صورت دا چي په کومه جمله کي ما اضمرعامله اسم واقع وي او هغه پر جمله فعلیه عطف سوی وي، نو په داسي صورت کي هغه په نصب سره ویل غوره او اولیٰ دي، د دې لپاره چي د معطوف او معطوف علیه ترمینځ مناسبت پیداسي، یعني د جمله فعلیه عطف پر جمله فعلیه راسي، لکه (ضربتُ زیدًا وعمروًا اکرمته).

غور وکړه! دلته د رفع لپاره هم قرینه مصححه سته، هغه داسی، چي (عمرو) مبتداء سي، (اکرمته) یې خبر سي.

او قرینه مرجحه هم سته، چی په دې صورت کي سلامتی عن الحذف لازمېږي.

دا راز د نصب لپاره هم قرینه مصححه سته، چی د فعل محذوف لپاره دا مفعول جوړوي، او قرینه مرجحه هم سته، چي په دې صورت کي د جمله فعلیه عطف پر جمله فعلیه راځی، لېکن دا قرینه مرجحه د رفع لپاره تر قرینه افضله او غوره ځکه ده، چي په دې صورت کي د دواړو جملو تر مینځ مناسبت پیداکېږي او دلته مقصود همدا دی، ځکه یې نو وویل (علیٰ جملةٍ فعلیةٍ للتناسب).

په بل عبارت تاسو داسي هم ویلای سئ، چي د عربو په نزد د حذف عمل ډېر خو دی، لېکن د دې په مقابله کي د معطوف او معطوف علیه په فعلیت او اسمیت کي د مخالفت عمل ډېر لږ پیداکېږي، تر دې پوري چي امام رازی رحمه الله خو د

تخالف عمل قبيح بللى دى او دا ښكاره خبره ده، چې سلامت عن القبح تر سلامت عن الحذف غوره و اولیٰ دی، ځكه نو په دې صورت کې نصب اولیٰ او غوره سو.

**دوهم، دريم او څلورم صورت:**

و بعد حرف النفى والاستفهام واذا الشرطية: دوهم، دريم او څلورم صورتونه بيانوى، چې ما اضمرعامله تر حرف نفي، يا حرف استفهام، يا (اذا) شرطيه وروسته واقع سي، نو هم رفع اونصب دواړه جائز دي، لیکن په دواړو کې نصب اولیٰ او غوره دى، ځكه چې په دې دريو سره کې پر هريوه فعل داخليږي، لیکن دلته چې موږ وکتل، نو دا دري سره پر اسم داخل وه، نو په لازمي توګه دا خبره معلومه سوه، چې دلته يو فعل محذوف دى، او د هغه له وجې دغه مذكوره اسم د مفعوليت پر بنسټ منصوب دى، لكه: (ما زيدًا ضربته) دا په اصل کې (ماضربتُ زيدًا) و، (ضربتُ) فعل حذف كړل سو، د دې تفسير په وروسته كى ذكر كيږي، دا راز (ازيدًا ضربته) په اصل کې (اضربتَ زيدًا ضربته) و، او (اذا زيدًا ضربته اضربک) د دې اصل عبارت (اذا ضربتَ زيدًا اضربک) و.

**پنځم صورت:**

ما اضمرعامله كه چيري تر (حيث) وروسته واقع وي، نو هم نصب مختاره دی، ځكه چې (حيث) د شرط معنا ته متضمن ده او حرف شرط پر فعل داخليږى، لكه (حيث زيدًا تجده اكرمه) دا په اصل كى (حيث تجد زيدًا اكرمه) و.

شپږم او اووم صورت:

**و فى الامر والنهى:** شپږم او اووم صورت دادى، چې تر ما اضمرعامله وروسته د امر، يانهي كومه صيغه واقع وي، نو هم د نصب ويل اولیٰ او غوره دي، ځكه كه چېرې د منصوب پر ځاى مرفوع وويل سي، نو په لازمي توګه به د مبتداء كېدو په وجه مرفوع ويل كيږي او دا صحيح نه دى، ځكه مبتداء د ځان لپاره خبر

غواړي، حال دا چي له موږ سره د امر او نهی له صیغو پرته بله کومه کلمه نسته، چي خبریې ورته جوړ کړو او دا دواړې جمله د انشائیه کېدو په وجه خبر نسي جوړېدای، نو دا خبره ثابته سوه، چي دی مبتداء نسي جوړېدای، بلکی دا به د ماضمر عامله پر بنا منصوب ویل کېږي، لکه (زیدًا اضربه و عمروًا لاتضربه) دا په اصل کی (اضرب زیدًا ولاتضرب عمروًا) و.

له دوهم صورت څخه تر اووم صورت پوري د ټولو په هکله مصنف رحمه الله علیه وایې: چي په دغو شپږو صورتونو کي نصب ځکه مختاره او غوره دی، چي (اذ هی مواقع الفعل) یعني په دې ټولو صورتونو کي تر ماضمر عامله مخکي فعل راغلی دی او دهمدغه فعل (عامل ناصب) په وجه ما اضمر عامله والا اسم منصوب کېږي.

پر شپږم او اووم صورت سوال کېږي، چي د دغو د منصوب ویلو چي تاسو کومه وجه ښودلې، له هغې څخه خو معلومېږي، چي منصوب ویل یې صرف اولیٰ او مختاره نه، بلکی واجب دی، ځکه چي مبتداء کېدای نسي، ځکه چي مبتداء خبر غواړي، حال دا چي امر او نهی دده لپاره خبر نسي کېدای، نو کله چي د ده مرفوع ویلو یو صورت و او هغه هم محال دی، نو په لازمي توګه د ده منصوب ویل واجب کېږي؟

د دې جواب دادی، چي بېشکه! ستاسو خبره سمه ده، خو خبره داده، چي د امر او نهي بېله واسطې خبر جوړېدل صحیح نه دی، لېکن چي پکي تاویل وسي، نو بیا یې په خبر جوړولو کوم حرج نسته، مثلا که چېري (زیدٌ اضربه) د (زیدٌ مقول فی حقه اضرب) په تاویل واوړي او (عمروًا لا تضربه) د (عمروٌ مقولٌ فی حقه لا تضرب) په تاویل سي، نو دد وی خبر او د ماضمر عامله مبتداء جوړول مرفوع ویل جائز دي.

د مرفوع ویلو لپاره قرینه مصححه (یعنی تاویل کول) که څه هم موجود دي، لېکن د منصوب ویلو په صورت کي د تاویل ضرورت هم نسته، ځکه نو موږ وویل، چی د ده منصوب ویل اولیٰ او غوره دي.

اتم صورت:

**و عند خوف لبس المفسّر بالصفة:**

اتم مقام چېري چي نصب مختاره دی، هغه داچی د مرفوع ویلو په صورت کي یو ځای د مفسّر له صفت سره التباس لازمېږي، نو له التباس څخه د ځان ساتني لپاره منصوب ویل اولیٰ او مختاره دي، لکه (اِنّا کُلّ شَیْءٍ خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ) وګوره! د (اِنّا کُلّ شَیْءٍ) په ترکیب کي درې احتمالات دي:

①: (ان) مخففه من المثقله حرف دی له حروف مشبه بالفعل څخه، (نا) ضمیر منصوب متصل یې اسم دی، (کل) مضاف، (شئ) مضاف الیه، مضاف سره له مضاف الیه مفعول به کېږي د (خلقنا) محذوف فعل لپاره، (خلقنا) فعل سره له خپل فاعل او مفعول به د (انّ) خبر، (انّ) سره له خپل اسم او خبر جمله فعلیه خبریه سوه.

تر دې وروسته په مذکوره (خلقنا) کي (خلق) فعل، (نا) ضمیرمرفوع متصل یې فاعل، (ها) ضمیر یې مفعول به کوم چی راجع دی د (کل شئ) وطرفته، په (بقدر) کي (باء) حرف جار او (قدرٍ) یې مجرور، جار سره له مجروره متعلق دی تر (خلقنا) فعل پوري، (خلقنا) فعل سره له خپل فاعل او مفعول به جمله مفسّره سوه.

②: (کُلُّ شَیْءٍ) چي مرفوع وویل سي، نو دوه ترکیبونه یې جوړېږي:

یو دا چي (کُلُّ شَیْءٍ) مبتداء سي او (خلقناه بقدر) ټوله جمله یې خبر سي، بیا مبتداء سره له خبره جمله اسمیه خبریه سي د (انّ) لپاره، خبر (انّ) سره له خپل اسم او خبر جمله فعلیه خبریه کېږي.

③: د مرفوع ویلو په صورت کي یې دوهم ترکیب داسي کېږي: (کل) مضاف، (شئ) موصوف او (خلقناه) جمله فعلیه یې صفت، موصوف سره له خپل صفت مضاف الیه، مضاف سره له خپل مضاف الیه مبتداء او (بقدر) جار سره له خپل مجرور سره له متعلق د مبتداء لپاره خبر، مبتداء سره له خپل خبره جمله اسمیه خبریه د (انّ) لپاره خبر، (انّ) سره له خپل خبر جمله فعلیه خبریه کېږي.

اوس د ایت شریف ترجمه ته وګورئ، د آیت صفا او ښه ګرزه د قسم معنا داسي کېږي، چي یقینًا ما هر شی پر خپله اندازه پیدا کړی دی.
که غور وکړل سي، نو په دې کي دوې خبرې بیان سوي دي: یوه دا چي د هر شی پیداکوونکی الله جل جلاله دی او دوهمه دا چي ټول شیان الله جل جلاله په خپله اندازه سره پیدا کړي دي.
اوس که چېرې (کل شئ) منصوب وویل سي، لکه چي په لومړي ترکیب کي و، نو معنی یې هم صحیح کېږي او پکي بیان سوې دوې خبرې هم حاصلېږي او که چېرې مرفوع وویل سي او وروستنۍ جمله یې ټوله خبر جوړه سي، لکه (په دوهم ترکیب کي چي تېر سول)، نو هم یې معنا صحیح کېږي (په دې صورت کي یې معنا داسي کېږي: یقینًا چي کوم شی هم دی، موږ هغه پر خپله اندازه جوړ کړی دی) او په دې کي پورته بیان سوې دوې خبرې هم حاصلېږي.
لېکن د مرفوع ویلو په صورت کي که چېرې (خلقناه) صفت او تر ده وروسته صرف (بقدر) خبر جوړ کړل سي، نو بیا نه خو معنا صحیح کېږي او نه پکي پورته بیان سوې دوې خبرې حاصلېږي، په دې صورت کي معنا داسي جوړېږي، چي یقینًا هر شی کوم چي موږ جوړ کړی دی، هغه په خپله اندازه سره جوړ سوی دی.
په دې معنا کي که څه هم دا خو معلومه سوه، چي د الله جل جلاله هر جوړ سوی شی په اندازه سره دی، لېکن دا نه معلومېږي، چي هر شی الله جل جلاله جوړ کړی دی، نو دا خو داسي سو، لکه معتزله ته چي موږ ووایو، چي ستاسو کومه غلطه عقیده ده، چي هر شی الله جل جلاله نه دی جوړ کړی، بلکي د بعضي شیانو خالق پخپله انسان هم دی، پر هغه دلیل زموږ له لوري واخلئ او هغه دلیل زموږ او زموږ د مسلمانو ورونو پر خلاف بنه استعمال سوی وي (نعوذبالله من ذالک).
خلاصه دا سوه، چي د نصب ویلو په صورت کي هېڅ سوال او اشکال نه پیدا کېږي، بلکي خبره بلکل صفا معلومېږي، خو که چېرې مرفوع وویل سي، نو یو ترکیب که څه هم پکي صحیح دی، لېکن دوهم ترکیب چي معنا یې بلکل غلطېږي، له هغه سره د دې التباس لازمېږي او همدا مطلب دی د مصنف رحمه الله علیه د

قول (و عند خوف لبس المفسّر بالصفة)، يعني كله چي د مفسّر له صفت سره د التباس وېره وي، لكه چي په دوهم تركېب كي چي (خلقناه) جمله تفسيريه ده د مخكني (خلقنا) فعل لپاره او په درېيم تركېب كي همدا (خلقناه) صفت جوړېږي د (شئ) محذوف لپاره، نو بيخي ممكن ده، چي پر قاري ياسامع دا تركېبونه ملتبس سي، ځكه يې نو وويل چي د ده منصوب ويل مختاره او غوره دي، د دې لپاره چي د التباس كومه خطره پاتې نسي.

**درېيم حكم**: چي رفع او نصب دواړه برابر وي:

و يستوى الامران: د (زيدٌ قام ا و عمروا اكرمته) په څېر تركېبونو كي رفع او نصب دواړه په غوره او مختاره كېدو كي سره برابر دي، يعني متكلم واک لري، كوم يو چي غواړي غوره دي كړي.

او له فى مثل زيدقام...الخ څخه مراد هر هغه تركېب دى، چېري چي د ما اضمرعامله عطف پر داسي جمله سوى وي، په كومه كي چي د مبتداء خبر جمله فعليه وي.

د جمله معترضه په توګه داخبره زد كړه، چي جمله پر دوه قسمه ده: جمله كبرٰى او جمله صغرىٰ.

جمله كبرىٰ دا معنا چي يو ځاى د پوره جملې عطف پرپوره جمله سوى وي، جمله صغرٰى دا معنا، چي د كومې جملې عطف د بلې جملې پر يوه جزء سوى وي، نو په مذكوره عبارت كې (عمرو) مرفوع او منصوب دواړه ويل جائز دي، د مرفوع ويلو په صورت كي د وروستنۍ ټولې جملې عطف پر مخكنۍ ټوله جمله يعنى جمله كبرىٰ كېږي، لكه (زيدٌ قام وعمروٌ اكرمته) دلته (زيدٌ) مبتداء او (قام) يې خبر او (عمرٌو) مبتداء او (كرمته) يې خبر دى.

او د منصوب ويلو په صورت كي د وروستنۍ جملې عطف پر مخكنۍ جمله صغرىٰ كېږي، چي محذوف عبارت يې د اسي دى: (زيدٌ قام وا كرمتُ عمروًا اكرمته) دلته (زيدٌ) مبتداء، (قام) معطوف عليه او (اكرمت عمروًا اكرمته)

معطوف، معطوف علیه سره له خپل معطوف د مبتداء لپاره خبر، مبتداء سره له خپل خبره جمله اسمیه خبریه کېږي.

والله اعلم بالصواب

## پنځه شپېتم (۶۵) درس
## د ما اضمر عامله شپږم صورت او څو مستثنیات

و یجب النصب بعد حرف الشرط وحرف التحضیض، مثل: ان زیدًا ضربته ضربک، والا زیدًا ضربته ولیس (ازیدٌ ذهب به) منه فالرفع وکذالک (و کل شئ فعلوه فی الزبر) و نحو (الزانیة والزانی فاجلدوا کل واحد منهما مائة جلدة)، الفاء بمعنی الشرط عندالمبرد، وجملتان عند سیبویه والا فالمختار النصب.

**ترجمه:** او پر داسي اسم نصب واجب دی، کله چي تر حرف شرط، یا حرف تحضیض وروسته راغلی وي، لکه (انِ زیدًا ضربته ضربک او ألا زیدًا ضربته) او نه دی د (ازیدٌ ذُهب به) په څېر ترکیب له دې باب څخه، نو پر ده رفع واجب ده او داراز (وکل شئ فعلوه فی الزبر) هم د ما اضمر عامله له باب څخه نه دی او د (الزانیة والزاني فاجلدوا کل واحد منهما مائة جلدة) په څېر ترکیب کي (فاء) د شرط په معنا ده د امام مبرد په نزد او همدا آیت که دوې مستقلې جملې سي د امام سیبویه په نزد، که نه نو نصب مختاره او غوره دی.

**تشریح:** د نن په سبقه کي صرف دوې خبرې د ی، لومړی مختصره ده، لیکن دوهمه څه تفصیلي ده:

①: د ما اضمر عامله د اعراب شپږم قسم، ②: له اما اضمر عامله څخه د څو صورتونو استثناء.

**لومړی خبره:** د ما اضمرعامله د اعراب شپږم قسم:

و یجب النصب بعد حرف الشرط وحرف التحضیض: په دې عبارت کي د ما اضمرعامله د اعراب شپږم قسم بیانېږي، هغه داسي، چي دوه ځایونه داسي دي، چي ما اضمرعامله منصوب ویل واجب دي:

①: لومړی دا چي ما اضمر عامله تر حرف شرط وروسته راغلی وي، لکه (ان زیدًا ضربته ضربکَ) یعني که چیری ته زید ووهي، نو هغه به تا ووهي.

②: دوهم دا چي ما اضمر عامله تر حرف تحضیض وروسته راغلی وي، لکه (ألا زیدًا ضربته) یعني ته زید ولې نه وهې؟

**فائده:** د حرف تحضیض په هکله موږ دا قاعده ښودلې، چي که چېري د ماضي پر صیغه داخل سي، نو پر ندامت (پښېماني) دلالت کوي، لکه په مذکوره مثال کي او که چېري د مضارع پر صیغه داخل سي، نو د یو کار پر تمنیٰ (ارزو) لرلو دلالت کوي، لکه د الله جل جلاله مبارکه وینا (وَمَالَکم الا تقاتلوا فی سبیل الله) یعني څه وسو ای مؤمنانو! ، چي تاسو د الله جل جلاله په لاره کي جهاد نه کوئ.

په دې دواړو ځایونو کي د ما اضمر عامله منصوب ویل ځکه واجب دی، چي قاعده کلیه ده، چي حرف شرط، کوم چي محض د شرط لپاره وي، تر هغه او تر حرف تحضیض وروسته فعل راځي، اسم کله هم نه راځي، نو چېري چي تر دغو دوو وروسته اسم راغلی وی، نو هرومرو دا فهمېږي، چي تر دغه اسم مخکي هرومرو کوم فعل حذف سوی دی، لکه مصنف رحمه الله علیه چي د دې لپاره مثال راوړی دی (ان زیدًا ضربته ضربکَ) دلته چي محذوف عبارت هم را واخستل سي، نو پوره عبارت داسي کېږي: (ان ضربت زیدًا ضربته ضربکَ) او دوهم مثال یې دا راوړی (ألا زیدًا ضربته) داهم په اصل کي (ألا ضربت زیدًا ضربته) و.

نو په دې د واړو ځایونو کي داخبره بلکل طی (پل) سوې ده، چي دا د ما اضمرعامله له قبیلې څخه کېږي، مبتداء او خبر نسي کېدای، نو د وی منصوب ویل واجب سو.

**دوهمه خبره:** له ما اضمرعامله څخه د څو صورتونو استثناء:

**لومړی صورت:**

ولیس ازیدٌ ذُهبَ به منه: مصنف رحمه الله علیه د دې عبارت په ذریعه د یوه صورت استثناء او د یوه سوال جواب ورکوي، سوال دادی، چي په مخکني درس کي خو دا خبره تېره سوې وه، چي تر حرف نفي او استفهام وروسته که چېري ما

اضمرعامله راسي، نو د ده مرفوع ویل جائز خو دي، لیکن د مرفوع ویلو پر ځای د ده منصوب ویل اولیٰ او غوره دي، لېکن دلته چي کله ترا ستفهام وروسته راغی، نو تاسو وویل، چي (فالرفع لازمٌ) یعني په دې صورت کي مرفوع ویل لازمي دي او منصوب ویل بلکل ویل کېدای نسي؟

د دې جواب دادی، چي دا د ما اضمرعامله له قبیلې څخه نه دی، ځکه چي د ما اضمرعامله په تعریف کي موږ ویلې وه، چي (لوسلط علیه هو او مناسبه لنصبه) حال داچي دلته داسي نسي کېدای، ځکه چي مخکښې خبره خو په دې کي داده، چي (ذُهب) فعل مجهول موږ پر (زیدٌ) نسو داخلولای، ځکه چي هغه فعل لازمي دی او قاعده ده، چي د فعل لازمي مجهول نه راځي او د فعل مجهول د نه راتلو په وجه د ده نائب فاعل هم نسي راتلای.

دوهمه خبره داده، چي که چېري موږ (ذُهب) پر زیدٌ) داخل کړو، د زید عامل یې هم جوړ کړو، نو بیا هم هغه (زید) ته نصب نه ورکوي، بلکي د نائب فاعل کېدو په وجه ده ته رفع ورکوي.

دلته یو سوال کېدای سي، چي سمه ده، موږ به دا ومنو، چي د فعل لازمي مجهول او نائب فاعل نه راځي، نو د دې خو یو حل دا هم دی، چي د ده پر معمول (باء) حرف جر داخله کړل سي، نو د هغه په ذرېعه به فعل لازمي فعل متعدي سي، (کماقرأناه فی شرح مائة عامل)؟

د دې جواب دادی، چي هو کې! د (باء) په ذرېعه فعل لازمي متعدي کېږي، لېکن هغه بیا هم خپل مفعول به ته نصب نسي ورکولای، ځکه چي د ده پر مفعول له مخکي څخه لا (باء) داخله ده، که چېري دغه (با) حذف کړل سي، نو فعل متعدي دوهم ځل لازمي کېږي او که چېري پر خپل ځای پاته سي، نو (باء) ده ته جرورکوي.

خلاصه داچي په درې سره صورتونو کي په کوم صورت کي هم پر ده نصب نسي راتلای، ځکه یې نو مرفوع ویل واجب وبلل سو.

**دوهمه صورت:**

دوهم صورت دا چي په (وكل شئ فعلوه فى الزبر) كي خو (كل) په ظاهره ما اضمرعامله دی، ځكه چي تر ده وروسته يو فعل دی، كوم چي مخكښي اسم ته په راجع ضمير كی عمل كوي، له دې ځخه دا وهم پيداكيدی، چي كه چيري دغه فعل پر (كل شئ) داخل سي، نو دا هغه ته هم نصب وركوي، لېكن مصنف رحمه الله ووېل: چي دا دما اضمرعامله له قبيلې ځخه نه دی، ځكه يې نو مرفوع ويل واجب دي.

له مصنف رحمه الله سره پر خپله مدعی[1] (چی دا د ما اضمر عامله له قبيلې ځخه نه دی) دلېل د ادی، چي كه چيري موږ دا دما اضمرعامله له قبيلې ځخه ومنو، نو عبارت داسي كېږي: (وفعلوا كل شئ فعلوه فى الزبر) په دې صورت كي (كل شئ) مضاف مضاف اليه د (فعلوا) لپاره مفعول به جوړيږي او (فى الزبر) جار سره له مجروره د همدغه (فعلوا) متعلق كېږي، نو د معنی خرابي لازميږي، ځكه چی په دې صورت كي معنا داسي كېږي: (بندګانو هر شی په عملنامه كي كړی دی)، حال دا چي دارالعمل او محل د عمل دنيا ده نه چی عملنامه.

او كه چيري (فى الزبر) د (شئ) لپاره صفت سي، نو د معنا خرابي خو نه لازميږي، لېكن كومه چی مقصودي معنا وه، هغه نه حاصليږی، بلكي د هغې پر خلاف لازميږي، ځكه چي په دې صورت كي معنا داسي كېږي، چي (كوم شی هم په صحيفو كي دی، هغه بندګانو كړی دی)، نو دا معنا كه ځه هم صحيح ده، مثلاً په صحيفو كي واقعي صرف هماغه شيان دي، كوم چي بندګانو كړي دي، لېكن مقصد دلته دادی، چي (وكل شئ مفعولٌ لهم ثابتٌ فى الزبر)، يعنی كوم كار چي بنده كوي، هغه په عملنامه كی لېكل كېږي، او دا مقصد د ما اضمرعامله په صورت كي نسي حاصلېدای، نو دا مبتداء جوړيږي، او مبتداء خو مرفوع وي، نو دا (كلُ شئٍ) هم مرفوع ويل لازم او واجب سو.

**دريم صورت:**

په و نحو (الزانية والزانی الآية) سره مصنف رحمه الله د استثناء دريم صورت بيانوی، چي په ظاهره خو د ما اضمر عامله له قبيلې ځخه دی، لېكن په حقيقت كي داسي نه ده، بلكي مبتداء او خبر واقع وي، نو ويې ويل: (الزانية والزانی

(الآية) د ما اضمر عامله له قبيلې څخه نه دی، ځکه چي د ما اضمرعامله تعريف نه وربانديي صادقيږي، ځکه موږ د ما اضمرعامله په تعريف کي ويلي وه، چي (و هو کل اسم بعده فعل او شبهه مشتغل عنه بضميره او متعلقه)، حال داچي دلته (فاجلدوا) فعل امر نه خو د (الزانية والزانی) په ضمير کی عمل کړی دی او نه يې دده په متعلق کي، نو دا دما اضمر عامله له قبيلې څخه نه سو.

اوس پاتې سوه داخبره، چي دی مرفوع ولې پاتې سوی دی، نو په دې کي د امام مبرد او امام سيبويه رحمهماالله اختلاف دی:

امام مبرد رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ وايي، چی دا مرفوع ځکه پاته سوی، چي (فاجلدوا) فعل امر په کي عمل نسي کولای، ځکه چي (الزانية والزانی) دواړه د اسم فاعل صيغې دي او د دوی په پيل کي (الف لام) په معنا د (الذی) دی او (زانية او زانی) د ده لپاره صله دي، نو معنا يې داسي کيږي: (هغه ميرمن، کومه چي بدکاري وکړي او هغه نارينه، کوم چي بدکاروکړي، نود ذ دوی سزا داده، چي هريو له دوی څخه سل دُرّې ووهل سي، نو په (فاجلدوا) کي (فاء) جزائيه ده او قاعده ده، چی (فاء) جزائيه خپل مدخول له ماقبل سره له يو ځای کيدو را ګرزوي، نو کله چي په (الزانية والزاني) کي (فاجلدوا) عمل نسو کولای او له ده پرته کوم بل عامل ناصب هم نه و، چي دوی ته يې نصب ورکړی وای، نو د ده مرفوع ويل لازم او واجب سو.

او امام سيبويه هم دا مرفوع وايي، خو د مرفوع ويلو وجه يې هماغه نه ده ښودلې، کومه چی امام مبرد رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ ښودلې وه، بلکي هغه وايي، چي (الزانية والزانی) يوه بېله جمله ده او (فاجلدوا کل واحدمنهما مائة جلدة) يوه بېله جمله ده او قاعده ده، چي څرنګه د يوه امام مقتدی د بل جماعت امام صاحب ته لقمه (ګوله) نسي ورکولای، همدا راز د يوې جملې جزأ هم په بله جمله، يا د هغه په کوم جزء کي عمل نسي کولای.

نو (الزانية والزانی) بېله جمله ده، چي د عبارت تقديريې داسي کيږي: (حکم الزانية والزانی فيما يُتلی عليکم) په دې کي (حکم الزانية) مضاف سره له

مضاف الیه معطوف علیه، واو حرف عطف او (الزانی) معطوف، معطوف علیه سره له خپل معطوف جمله اسمیه خبریه سوه.
او (فاجلدوا) صیغه دامر یوه بېله جمله ده، چي د عبارت تقدیر داسي کېږي: (ان ثبت زناهما فاجلدوا کل واحدمنهما مائة جلدة)، نو دا خبره ثابته سوه، چي دا د ما اضمرعامله له قبیلې څخه نه دی، بلکي دواړه بېلې، بېلې جملې دي، نو د هغه هم مرفوع ویل متعین کېږي.
امام مبرد رحمة الله علیه چي کومه وجه بیان کړې وه، هغه لږ غوندی کمزورې ده، ځکه چي د (فاء) مدخول کله کله په خپل ماقبل کي هم عمل کوي، لکه چي د الله جل جلاله وینا ده (وربّک فکبّر و ثیابک فطهر والرجزَ فاهجر) وګوره! دلته درې سره ځایونه هر فعل پر کوم چي (فاء) داخله ده، له هغه سره، سره هم په خپل مخکني اسم کی عمل کړی دی.
دلته سوال کېږي، چی کله د (فاء) مدخول په خپل ماقبل کي عمل کولای سي، نو بیا یې دلته یعني (فاجلدوا) ولې نسي کولای؟
د دې جواب دادی، چی بېشکه! دلته یې هم کولای سي، خو په قراء سبعه رحمهم الله کي یو ه هم دا منصوب نه دی ویلی، بلکی پر مرفوع ویلو یې ټول یوه خوله او متفق دي، ځکه نو دا منصوب نسي ویل کېدای، که نه فی نفسه د ده په منصوب ویلو کی هم کومه خرابي نه لازمېږي.
**و الا فالمختار النصب:** چي که چېري له امام مبرد رحمة الله علیه او امام سیبویه رحمة الله علیه څخه د یوه رأیه هم قبوله نسي او د قراء سبعه وو اتفاق هم ونه منل سي، نو بیا د ده په نزد ما اضمرعامله منصوب ویل مختاره کېږي، لېکن دا خو کېدای نسی، چي قراء سبعه ټوټل او ائمه نحو هم ټوټل دي پر کومه غلطه خبره متفق سي، ځکه چي په حدیث شریف کي راغلي دي: (لاتجتمع امّتی علی الضّلالة) او دوهم حدیث دادی (لم یکن الله لیجمع امتی علی الضلالة) نو د دغو حضراتو اتفاق د بل شی پر ځای د ده پر مرفوع ویلو اولی!

**شپږ شپېتم (۶۶) درس**

**دفعل په وجوبي توګه د حذف کېدو ځلورم مقام یعني د تحذیر بیان**

الرّابع التحذیر: و هو معمولٌ بتقدیراتّق تحذیرًا مما بعده او ذکر المحذّر منه مکرّرًا، مثل: أیاک والأسد وایاک وان تحذفَ، والطریق الطریق، و تقول: ایّاک من الأسد ومن ان تحذف وایاک وان تحذف بتقدیر منْ ولا تقول: ا یّاک الأسد الامتناع تقدیر من.

**ترجمه:** څلورم ځای تحذیر دی او هغه د (اتق) فعل داسې معمول وی، ترکوم وروسته چې د وېرولو لپاره ذکر کېږي، یا محذر منه مکرر ذکر کېږي، لکه (ایّاک والأسد، وایاک و ان تحذف او الطریق الطریق) او تاسو داسې هم ویلای سئ (ایاک من الأسد ومن ان تحذف وایاک ان تحذف) د (منْ) په مقدر منلو سره او ته داسې نسې ویلای (ایاک الأسد)، ځکه چې دلته د (من) مقدر منل ممتنع دي.

**تشریح:** د نن په سبقه کې څلور خبرې دي:

①: د تحذیر لغوی او اصطلاحي معنا، ②: د تحذیر په ځای کې د فعل د حذف کېدو سبب او د حذف وجوبی قرینه، ③: د استعمال په اعتبار د محذرمنه (له چا څخه وېره کېږي) عقلي صورتونه، ④: د مثالونو وضاحت.

### د تحذیر لغوي او اصطلاحي معنا

**لومړۍ خبره:** د تحذیر لغوي او اصطلاحي معنا:

مصنف رحمه الله علیه د مفعول به د فعل (عامل) د وجوبی حذف درې ځایونه بیان کړل، اوس څلورم او اخیري ځای بیانوي او هغه تحذیر دی، دا د تفعیل له باب څخه مصدر دی، لغوی معنا یې د ه (وېرول)، دا خبره په یاد لرئ، چې ددغې معنا (یعني وېرولو) په ضمن کې څلور شیان راځي:

①: وېروونکی، دېته محذِر وایې، ②: وېرول سوی، دېته محذّر وایې، ③: هغه شی، چې وېره ځیني کېږی، دېته محذّر منه وایې، ④: پخپله وېرول، دېته تحذیر وایې، لکه چې د تېرلو مثال (حذّر سعیدٌ بکرًا من الأسد) دی، دلته سعید وېروونکی، بکر وېرول سوی، اسد له چا څخه چې وېره کېږی، او دسعید دبکر وېرول تحذیر دی.

او اصطلاحي معنا ګانې يې مصنف رحمة الله علیه دوې بيان کړي دي:
①: هو معمولٌ بتقدير اتّق تحذيرًا مما بعده، يعنی تحذير هغه اسم منصوب دی، کوم چي د (اتّق، يا بعّد) فعل مقدر داسي معمول وي، کوم چي له خپل مابعد څخه وېرول کېږي، هغه اسم که حقيقي وي، که اسم تأويلي وي.
د تعرېف په دې صورت کي مفعول محذّر او دده مابعد محذّر منه کېږي، لکه د اسم حقيقي مثال (اياک والأسد) او د اسم تاويلی مثال (واياک وان تحذفَ).
②: او ذکر المحذّر منه مکرّرًا، مثل: الطريقَ الطريقَ، يعني تحذير هغه اسم منصوب دی، کوم چي د (اتّق يا بعّد) فعل مقدر داسي معمول وي، کوم چي مکرر راغلی وي، لکه: الطريق، الطريقَ.
د تعرېف په دې صورت کي محذّر منه پخپله همدا معمول کېږي، کوم چی مکرر راغلی دی او محذّر مخاطب کېږي.
دوهمه خبره: د تحذېر په مقام کي د فعل د حذف کېدو سبب او د وجوبي حذف قرينه:
د تحذېر په مقام کي فعل يعني عامل ناصب دو خت دتنګی او فرصت نه لرلو وجې حذف کېږي، ځکه چي د تحذېر استعمال په داسي صورت کي کېږي، چېري چي يو زيان رسوونکی شی رانژدي وي او متکلم وېرېږي، چي که چېري زه په خپل کلام کي فعل ناصب هم ذکر کوم، نو محذّر يعني مخاطب له دغه زيان رسوونکي شی څخه نسي ژغورل کېدای، ځکه نو فعل ناصب حذف کړي، يوازي د محذّر منه په ذکر کولو بسنه وکړي.
او که چېري دغه زيان رسوونکی شی بيخي نژدې وي، نو څرنګه چي په دې صورت کي په نسبت د لومړي صورت وخت ډېر تنګ وي، نو په داسي صورت کي محذّر هم حذف کېږي، يوازي محذّر منه مکرر ذکر کېږي، د دې لپاره چي په تحذېر (وېرولو) کي ښه مبالغه راسي او مخاطب خپل ځان له دغې خطرې وژغوري.
داخو د فعل ناصب د حذف کولو سبب سو، پاتې سوه داخبره، چي په داسي ځای کي د فعل حذفول واجب ولې دي؟ نو د دې وجه داده، چي يو خو په داسي ځای

کي قرينه موجوده وي، او دوهمه وجه داچي په داسي ځای کي د فعل ناصب قائم مقام هم موجود وي، قرينه خو د تحذير مقام دی، کوم چي پر فعل محذوف دلالت کوي او د فعل محذوف قائم مقام مفعول به يعنی محذّر يا محذّر منه دی.

درېيمه خبره: د استعمال په اعتبار د محذرمنه عقلي صورتونه:

وتقول: اياک من الأسد، په دې عبارت کي مصنف رحمه الله د محذرمنه بيانوي، له کومو څخه چي درې جائز او اخيري يې ناجائز بلل سوی دی.

مصنف رحمه الله خو ټوټل شپږ مثالونه راوړی دی، ليکن که چېري په عقلي اعتبار وکتل سي، نو اته صورتونه جوړېږي، ځکه چي محذرمنه به يا اسم حقيقي وي، يا به اسم تاويلي وي، بيا د دغو دواړو استعمال به يا په (من) سره وي، يا به په (واو) سره وي، دا څلور کېږي، بيا به (من) او (واو) مذکور وي، يا به محذوف وي، دا راز دا ټول اته صورتونه کېږي.

په دغو کي پنځه جائز او درې ناجائز دي، يعني د (واو) حذفول په اسم حقيقي او تاويلي دواړو کي ناجائز دی، مثلا (اياک الأسد) او (اياک ان تحذفَ) دواړه ناجائز دي او د (من) حذفول له اسم حقيقي څخه ناجائز دي، لکه (اياک الأسد)، په بل عبارت دا داسي هم ويل کېږي، چي له اسم حقيقي څخه هغه که (من) سره وی، يا په (واو) سره وي، د دواړو حذفول ناجائز دي، دا راز د (واو) حذفول هغه که له اسم حقيقي څخه وي، که له تاويلي څخه وي، دا هم ناجائز دي، له دې پرته باقي پاته پنځه صورتونه دي، کوم چي جائز دي.

**څلورمه خبره:** د مثالونو وضاحت:

**لومړی مثال:** د تحذير تر بيانولو وروسته مصنف رحمه الله مثالونه وړاندي کوي، تر ټولو مخکي مثال يې (اياک والأسد) راوړی دی، دا په اصل کي (اتقک والأسدَ) و، ليکن قاعده داده، چي د فاعل ضمير او د مفعول ضمير چي کله يو ځای سي او مراد يې هم يو ذات وي، نو داسي کول په افعال قلوب کي جائز دي، لکه (علمتُنی فاضلًا)، خو له افعال قلوب پرته بل ځای ناجائز دي، نو چېري چي دا دواړه جمع سي، نو حل يې دا دی، چي د دغو دواړو ضميرونو تر مينځ د (نفسٌ)

کلمه راوړل سي، د ضمير مفعول وطرفته مضاف کړل سي، ددې په ذريعه د دواړو ضميرونو ترمينځ فصل او بېلون وکړل سي او د جوازيو صورت جوړ کړل سي.
د (نفسْ) لفظ تر راوړلو وروسته عبارت داسي کېږي (اتق نفسک من الأسد والأسد من نفسک) د تحذير په مقام کي د واقع کېدو په وجه (اتق) فعل ناصب په وجوبي توګه حذف کړل سو، نو (نفسک من الأسد والأسد من نفسک) پاته سو، بيا چي (نفسْ) لفظ له کومې وجې راوړل سوی و، هغه وجه پاته نسوه، ځکه چي د فعل په حذف سره ضمير فاعل هم پاتې نسو، نو (نفس) هم حذف کړل سو، (ک من الأسد والاسد من نفسک) پاته سو، بيا چي کله فعل پاته نسو، نو دده متعلقات هم حذف کړل سو، نو (ک والأسد) پاته سو، تر دې وروسته کاف ضمير متصل په ضمير منفصل بدل کړل سو، نو (اياک والأسد) پاته سو.

**دوهم مثال:**

مصنف رحمة الله عليه د تحذير د لومړي تعريف دوهم مثال دا راوړی دی (اياک وان تحذفَ) کوم چي په اصل کي (بعّد نفسک من ان تحذف و أن تحذف من نفسک) و، په دې کی هم په پورتنی ذکرسوې طريقه تعليل کولو سره (اياک وان تحذفَ) پاتېږي.

**درېيم مثال:**

الطريق، الطريق: دا دتعريف د قسم ثاني مثال دی، په کوم کی چی محذر منه مکرر ذکر سوی دی، دا په اصل کي (اتّق الطريق الطريق) و، د تحذير په مقام کي د واقع کېدو په وجه فعل ناصب حذف کړل سو، (الطريق الطريق) پاته سو، له دې دواړو څخه لومړی (الطريق) محذر منه دی او دوهم يې تاکيد دی، دا راز (الصبی الصبی) او (الجدار الجدار) هم دی.

**څلورم مثال:**

(و تقول: اياک من الأسد ومن أن تحذف) دا څلورم مثال دی، په کوم سره چي مصنف رحمه الله دا ښيې، لکه څرنګه چي د تحذير د قسم اول په دواړو مثالونو کي په (واو) سره استعمالول جائزدي، دا راز دا په (من) سره استعمالول هم جائز دي.

**پنځم مثال:**

وایاک ان تحذفَ بتقدیر من: د دې مثال په ذریعه د لومړي قسم د نوع ثاني په هکله وایې، چې لکه څرنګه په متن کی موږ دا مثال راوړی دی، یعني بېله (من) څخه، نو هغه لکه څرنګه چې بېله (من) څخه جائز دی، دا راز په (من) سره هم جائز دی، بلکې د دې اصل صورت په (من) سره و، لېکن (من) جاره د تخفیف لپاره حذف کړل سو (ایاک ان تحذف) پاته سو، ځکه چې چېري (من) حرف جاره او (ان) حرف ناصب دواړه یو ځای سي، نو له عربو څخه یې اکثره (من) حذف کوي.

**شپږم مثال:**

ولا تقول ایاک الأسد: دلته د تحذېر د قسم اول په لومړی مثال کي (من) مقدر کول صحیح نه دي، ځکه چی مخکې د درېیمې خبرې په ضمن کی دا خبره تېره سوه، چی له اسم حقیقی څخه هغه که په (من) سره وي، یا په (واو) سره وي، ددواړو حذفول ناجائز دي.

د عدم جواز دوه صورتونه خو داسو، له دوی پرته یو صورت داهم دی، چی د (واو) حذفول هغه که لهٔ اسم تاویلي څخه وي، یا له اسم حقیقي څخه وي، دا هم ناجائز دي، نو د جواز پنځه او د عدم جواز درې صورتونه سول.

## اووه شپېتم (۶۷) درس

## درېیم منصوب یعنی د مفعول فیه بیان

المفعول فیه: هو ما فُعل فیه فعلٌ مذکورٌ من زمانٍ او مکانٍ وشرط نصبه تقدیر (فی) و ظروف الزمان کلها تقبل ذٰلک، وظروف المکان ان کان مبهمًا قبل ذٰلک و الا فلا.

**ترجمه:** مفعول فیه هغه اسم دی، په کوم کي چي مذکور فعل کېږي، هغه اسم که ظرف زمان وي، یا مکان او دده د منصوب کېدو شرط دادی، چي تر ده مخکي (فی) مقدره وي او ظروف زمان که محدود وي، که مبهم دواړه (فی) قبلوي او ظروف مکان که چېري مبهم و، نو (فی) قبلوي او که چېري محدود وي، نو نه یې قبولي.

**تشریح:** د نن په سبقه کي څلور خبرې دي:

①: د مفعول فیه تعریف او قسمونه، ②: د مفعول فیه د منصوب کېدو شرط، ③: د مصنف رحمه الله او جمهورو علماؤ رحمهم الله اختلاف، ④: د فی د تقدیر د جواز او عدم جواز ځایونه.

## د مفعول فیه تعریف او قسمونه یې

**لومړی خبره:** د مفعول فیه تعریف او قسمونه یې:

**وروره!** موږ د منصوباتو بحث کوو، څرنګه چې دوه منصوبات موږ په بشپړه تفصیل سره وویل، اوس مصنف رحمه الله دریم منصوب، یعنی مفعول فیه بیانوي، نو په (هو ما فعل فیه فعل مذکورٌ) سره یې تعریف کوي، چې مفعول فیه هغه اسم منصوب دی، په کوم کي چې مخکنی فعل یعنی د همدغه مفعول فیه عامل واقع سوی وي، هغه که له اسم ظرف څخه وي، یا له ظرف زمان څخه وي. څرنګه چې مفعول فیه د فعل د واقع کېدو له وجې د لوښي په منزله دی، ځکه نو ورته ظرف هم ویل کېږي او ظرف بیا پر دوه قسمه دہ، ظرف زمان او مکان، یعنی که چېري هغه اسم داسي وي، چې د کومې زمانې نوم وي او د همدغې زمانې په هکله په دہ کي څه ښودل سوي وي، نو ورته ظرف زمان وایې او که چېرې د کوم ځای په هکله په دہ کي ښودنه وي، نو ورته ظرف مکان وایې، همدا مطلب دی د مصنف رحمه الله په دې عبارت (من زمانٍ او مکان) سره، نو داسي سو، لکه د مفعول فیه دوه قسمونه چې هم بیان سول.

## د مفعول فیه د منصوب کېدو شرط

**دوهمه خبره:** د مفعول فیه د منصوب کېدو شرط:

و شرط نصبه تقدیر فی: په دې عبارت کي مصنف رحمه الله د مفعول فیه د منصوب کېدو لپاره یو شرط بیانوی، هغه دا چې تر دہ مخکي (فی) مقدره کېږي، لکه (صمتُ شهرًا) دا په اصل کی (صمتُ فی شهر) و، لیکن په مفعول فیه کي که چېري کلمه د (فی) په لفظ کي مذکوره وه، نو هغه منصوب نه کېږي، بلکي هغه د همدې (فی) په وجه مجرور کېږي، لکه (صلیتُ فی المسجدِ) نو ګواکی چې مفعول فیه دوه قسمونه سوه، یو مفعول فیه په تقدیر د (فی) سره،

كومه چي مجروره وي او دوهم قسم چي مفعول فيه د (فى) په ذكر سره وي، كومه چي منصوب وي.

**درېيمه خبره:** د مصنف او جمهورو رحمهم الله اختلاف:

ځرنګه چي مخكي د مفعول فيه دوه قسمونه بيان سوه، يعنى يو مفعول فيه په تقدير د (فى) سره او دوهم مفعول فيه په ذكر د (في) سره، نو د مصنف رحمه الله په نزد دا دواړه د مفعول فيه قسمونه دي، خو د دواړو ترمينځ فرق دادى، چي لومړى قسم منصوب كېږي او دوهم مجرور كېږي، حال دا چي د جمهورو علماؤ په نزد لومړى قسم خو مفعول فيه دى، ليكن دوهم قسم ته مفعول فيه ويل صحيح نه دي، ځكه چي دا په اصل كي د حرف جر په واسطه مفعول به جوړ سوى، نو د دوى په نزد د مفعول فيه د منصوب كېدو لپاره ګواكي چي هېڅ شرط نسته، ځكه چي د دوى په نزد د مفعول فيه يو صورت دى، يعني په تقدير د (فى) سره او يو يې اعراب دى، يعني منصوب كېدل يې.

او د مصنف رحمه الله په نزد دا شرط ځكه ورسره لګول سوى، چي د ده په نزد مفعول فيه پر دوه قسمه ده، منصوب او مجرور، په دوى كي چي د مفعول فيه منصوب لپاره د تقدير د (فى) شرط لګول سوى وى، هغه لومړى قسم جوړېږي او چېري چي (فى) په لفظ كي ذكر سوي وى، نو هغه مجرور كېږي او دوهم قسم جوړېږي.

**څلورمه خبره:** د (فى) د تقدېر د جواز او عدم جواز ځايونه:

وظروف الزمان كلها تقبل ذلک: فاضل مصنف رحمه الله په دې عبارت كي د (فى) د تقدېر د جواز او عدم جواز ځايونه بيانوى، ليكن تر دې مخكي دا خبره په ذهن كي ونيسئ، چي په ظروف زمان او مكان دواړو كي هريو پر دوه، دوه قسمه دى: معلوم او مبهم، د دغو تفصيل ته لږ غوندي غوږ سئ:

**ظروف زمان معلوم:** يعني هغه اسماء چي پر داسي وختونو دلالت كوي، چي پيل او پاى يې دواړه معلوم وي، لكه يومٌ، ليلٌ، اسبوعٌ، شهرٌ وغيره.

ظروف زمان مبهم: يعني هغه اسماء چي پر داسي وختونو دلالت كوي، چي پيل او پاى يې دواړه معلوم نه وي، لكه: وقتٌ، حينًا و دهرٌ وغيره.

**ظروف مکان معلوم:** یعني هغه اسماء کوم چي پر داسي مکان او ځای دلالت کوي، چي حدود یعني ابتداء او انتهاء یې دواړه معلوم وي، لکه: مسجدٌ، مدرسةٌ او بیتٌ وغیره.

**ظروف مکان مبهم:** یعنی هغه اسماء کوم چي پر داسي مکان او ځای دلالت کوي، چي پیلَ او پای یې دواړه معلوم نه وي، د دې تفسیر په مستقله توګه انشاء الله تعالیٰ را روان دی.

تر دې تمهېد وروسته په دې خبره پوه سئ، چی ظروف زمان هغه که معلوم وي، یا مبهم او هغه که معرفه وي، یا نکره، ټول تقدیر د (فی) قبولوي او دا ټول له هماغې وجې منصوب کېږی، لکه: (سِرتُ دهرًا و خرجتُ یومًا)، دا دواړه د نکره مثالونه دي او (سِرتُ حینَ قعودِکَ او خرجتُ یومَ الجمعة) دا د معرفه مثالونه دي او په ټولو کی (فی) مقدره ده او دا ټول هم د همدغه تقدېر د (فی) په وجه سره منصوب دي، د دې پر ځای که چېري (فی) په لفظ کي مذکوره وي، نو دا ټول مجرور کېږي.

**یادونه:** ظرف زمان مبهم ځکه تقدېر د (فی) قبلوی، چي دا د فعل یو جزء وي، ځکه چي د فعل درې جزؤنه وی:

①: اشتقاق من المصدر، ②: نسبت الی الفاعل، ③: نسبت الی الزمان.

او زمانه چونکه ظرف زمان وي او په فعل کي راځي، او کلمه (فی) هم د ظرفیت لپاره راځي، نو ګواکي چي ددغه فعل له دریو اجزاؤ څخه یو جزء جوړېږي او کله چي د فعل جزء جوړ سو، نو د فعل په جزء کېدو کي دا له مفعول مطلق سره مشابه کېږي، نو څرنګه چي د فعل نسبت د مفعول مطلق وطرفته د کوم حرف جر له واسطې پرته کېږي، دا راز د مفعول فیه طرفته هم د فعل نسبت د (فی) مذکور پرته کېږي او څرنګه چي مفعول مطلق منصوب وي، دا راز دا هم منصوب کېږي.

او پاته سو ظرف زمان معلوم نو هغه که څه هم د فعل د مفهوم جزء نه کېږي، لیکن بیا هم له ظروف زمان مبهم سره پر زمانه په دلالت کولو کي له ده سره مشابه دی، ځکه نو هغه هم د (فی) تقدېر قبول کړی دی.

و ظروف المكان ان كان مبهمًا قبل ذلک و الا فلا، له دې ځاى څخه مصنف رحمه الله له مفعول فيه څخه د ظروف مكان حكم بيانوي، هغه دا چي ظروف مكان كه څه هم مبهم وي،هغه كه نكره وي، يا معرفه وي، پكي د (فى) تقدير نه منل كېږي، منصوب ويل يې جائز كېږي، لكه (قُمْتُ امامَ المسجد).

دده د (فى) د تقدير قبلولو وجه داده، چي دى له ظروف زمان مبهم سره په مبهم كېدو كي مشابهت لري، نو لكه هلته چي جائز وه، دلته هم جائز كېږي.

پاته سو ظروف مكان معلوم، نو هغه تقدير د (فى) ځكه نه قبلوي، چي په ده كي (فى) په لفظ كي ذكر سوي وي او له وجې يې هغه مجرور وي، لكه (جلستُ فى الغرفة).

پر دې سربېره په ده كي د (فى) دتقدير د عدم جواز دوهمه وجه دا هم د ه، چي دا له ظرف زمان مبهم سره مشابهت نه لري، خو له ظرف زمان معلوم او ظرف مكان مبهم سره دى مشابهت خو لري، ليكن هغه چونكه پخپله پر كوم بل شى پهٔ محمول كولو سره د (فى) د تقدير قابل كېږي، اوس كه چېري پرده بيا بل شى حمل سي، نو ګواكي چي د يوه شى محمول او محمول عليه او محتاج او محتاج اليه كېدل لازم سو او له يوه پخپله مستعار شى څخه استعاره لازمېږي، كومه چي نامناسبه ده.

## اته شپېتم (۶۸) درس

## دمبهمه اسماؤ تفسير اونوري ضروري خبرې

وفُسّرالمبهم بالجهات الستّ وحمل عليه (عند) و (لدى) وشبههما، لابهامهما، ولفظ (مكان) لكثرته وما بعد (دخلتُ) على ا لاصح وينصب بعامل مضمر وعلى شريطة التفسير.

**ترجمه**: او د مبهم تفسير په جهات سته سره سوى دى او پر دغو ظروف مكان مبهمه باندي د (عند، لدى) او د دې په څېر كلمات (په دوى كي د ابهام په وجه سره ) او لفظ د (مكان) د كثرت استعمال په وجه سره محمول كېږي او تر (دخلتُ) وروسته ا سم هم له صحيح قول سره سم پر دغو ظروف مكان مبهمه محمول كېږي او كله كله دوى ته نصب وركول كېږي د هغه مقدر عامل په وجه

سره، تركوم وروسته چې تفسير نه وي و كله كله د هغه عامل مقدر په وجه سره هم د كوم چې په وروسته كي تفسير را روان وي.

**تشريح:** د نن په سبقه كي درې خبرې دي:

①: د اسماء مبهمه تفسير سره له اسماء محموله، ②: د دخلت په مابعد كي د جمهورو او نورو ځيني علماؤ رحمهم الله اختلاف، ③: د مفعول فيه د عامل ناصب حذفول.

**لومړۍ خبره:** د اسماء مبهمه تفسير او نور اسماء محموله.

و فُسّر المبهم بالجهات الستّ: مخكي د ظرف مكان مبهم د (فى) د تقدير په اعتبار سره حكم بيان سوى و، ليكن دا خو مورِ ته معلومه نسوه، چي اسماء مبهمه څه دي؟

نو په مذكوره عبارت كي د هماغو اسماء مبهمه تفسير بيانوى، نو وايي: چي اكثره متقدمين د اسماء مبهمه تفسير په جهات ستة سره كړى دى، يعنى (الخلف، القدام، الفوق، التحت، اليمين، الشمال)، له دغو پرته نور هغه اسماء كوم چي ددوى په معنا وي، نو هغه هم د دوى په ډول په اسماء مبهمه كي داخليږي، لكه (قَبْلُ) او (قُبُلُ)، كوم چي د (امامَ) په معنا دى او (وراءُ) او (دُبُرُ) كوم چي د (خلفُ) په معنا دي او (يسارُ) كوم چي د (شمالُ) په معنا دى او (عَلُوُ) چي د (فوق) په معنا دى او داراز (سِفلُ) د (تحت) په معنا دى، نو دا ټوټل د (فى) تقدير قبلوي.

و حمل عليه (عند ولدى) وشبههما، لابهامهما و لفظ مكان لكثرته: په دې عبارت سره مصنف رحمه الله د ظروف مكان د مبهمه محمولات بيانوي او ورسره د يوه سوال جواب هم كوي:

سوال دادى، چي جنابه! تا وويل، چي د اسماء مبهمه تفسير د جهات ستة په اسماؤ سره كيږى، حال دا چي (عند اولدى) او د دې په څېر نور اسماء مثلا (دونَ او سوى) وغيره اسماء نه خو په ظروف مكان مبهم كى شمېرل كيږي، ځكه چي دا له جهات ستة څخه نه دي، او نه په ظروف مكان محدود (معلومو) كي، ځكه

چې هغه خو منصوب استعمالیږي، نو تا د اسماء مبهمه تفسیر صرف د جهات سته په نامه سره ولې کړی، له دې پرته په کوم بل شی سره یې وکړه، د دې لپاره چې یکې دادواړه هم داخل سي؟
دې جواب دادی، چې دا اسماء بېشکه له مذکوره اسماء سته څخه خو نه دي، لیکن دوی پر ظروف مکان مبهم حمل کیږي، ځکه چې د ابهام په وصف کې دا او هغه دواړه شریک دي.
ولفظ مکان لکثرته: دلته هم مخکنی سوال واقع کیږي، خو جواب یې دادی، چې بېشکه دا که څه هم په هغو کې داخل نه د ي، لیکن څرنګه چې د کثرت استعمال په وجه د تخفیف تقاضا کوي او تخفیف د (فی) په مقدر منلو کې ډېر دی په نسبت د ذکر کولو، لکه (جلستُ مکانکَ) نو دا هم پر ظرف مکان مبهم په حملولو سره په دوی کې هم (فی) مقدر منل کیږي.
وما بعد دخلتُ علی الاصح: چې (دخلتُ) او ددې په ډول نور افعال مثلا تر (نزلتُ، سکنتُ وغیره) وروسته اسم هم له صحیح قول سره سم د کثرت استعمال په وجه پر ظرف مکان مبهم محمول کیږي او په دي کې هم تقدیر د (فی) جائز کیږي، لکه (دخلتُ الدارَ و نزلتُ البیتَ وسکنتُ القریة) دا خبره په یاد لرئ، چې له (دخلتُ) څخه هر هغه فعل مراد دی، د کوم چې مفعول فیه له مفعول به سره مشابه وي، لکه چې د نزلتُ او سکنتُ مثالونه تېر سول.
**دوهمه خبره:** د جمهورو او د نحوي د ځیني نورو علماؤ اختلاف:
د (مکانٌ) لفظ او تر (دخلتُ) وروسته دواړه د کثرت استعمال په وجه پر ظرف مکان مبهم حمل کیږي، لیکن د دواړو تر مینځ فرق دادی، چې د (مکانٌ) د لفظ مفعول به کېدل متفق علیه دی، خو د (دخلتُ) د مابعد په مفعول به کېدو او نه کېدو کې اختلاف دی، د کوم طرفته چې مصنف رحمه الله علیه په (علی الاصح) سره اشاره کړې ده.
د اختلاف تفصیل په دې ډول دی، چې د ځیني علماؤ په نزد د(دخلتُ) مابعد مفعول به وي، دلیل یې دادی، لکه څرنګه چې متعدي پخپله پوره معنا ښیندلو کې تر ځان وروسته اسم ته محتاج وي، دا راز (دخلتُ) هم په خپله پوره معنا

ورکولو کي ترڅان وروسته اسم ته محتاج وي او محتاج الیه مفعول به کېدای سي، نه چي مفعول فیه.
دوهمه وجه یې داهم ده، چي مفعول به مخکي وي او مفعول فیه وروسته، نو په (دخلتُ الدارَ) کي (الدارَ) مفعول به جوړېږي، نه چي مفعول فیه.
د دې پر خلاف د نحوي د جمهورو علماؤ رحمهم الله په نزد د (دخلتُ) مابعد مفعول فیه وي، دوی پر خپله دعوی درې دلائل وړاندي کړي دي:

**لومړی دلیل:**

تر ټولو مخکي د قاعدې په توګه یو دلیل وړاندي کوي، چي (هر هغه فعل چي مصدر یې د (فعولٌ) پر وزن وي، نو هغه فعل لازمي وي) او د (دخلتُ) فعل مصدر هم (دخولٌ) پر وزن د (فعولٌ) راځي، نو په لازمي توګه (دخلتُ) لازمي فعل سو او د فعل لازمي لپاره نور مفاعیل خو راتلای سي، لیکن مفعول به نسي راتلای.

**دوهم دلیل:**

دوهم دلیل دادی، چي بالفرض که چېري دا مورږ مفعول فیه ونه منو، نو بیا هم تر ده وروسته مفعول به خو نسي جوړېدای، ځکه چي قاعده او اصول دادي، چي پر مفعول به که چېري (فی) داخله سي، نو د هغه معنا یا خو بدلېږي، یا بلکل خرابېږي، لکه په (ضربتُ زیدًا) کي که چېري پر زید (فی) داخله سي، (ضربتُ فی زید) وویل سي، نو هیڅ معنا نه ورکوي، د دې پر خلاف که چېري د (دخلتُ) پر مابعد (فی) داخله سي، نو د معنا تبدیلي او خرابي خو پر لویه لاره پرېږده، نوره یې هم معنا واضح او روښانه کېږي، لکه د (دخلتُ الدارَ) پر ځای (دخلت فی الدار).

**درېیم دلیل:**

درېیم دلیل دا چي د (دخلتُ) په مثل او که په معنا کي ورنژدې افعال دي، د هغو مابعد بالاتفاق مفعول فیه وي، نو د قریب المعنا کېدو په وجه دده مابعد هم مفعول فیه کېږي.

پاته سو د نحوي د ځيني علماؤ وړاندي کړل سوی دلیل، نو دهغه جواب دادی، چي موږ داخبره بلکل منو، چی د مفعول فیه درجه تر مفعول به وروسته وي، لیکن دومره خبره هرومرو سته، چي دا په فعل متعدي کي وي، نه چي په فعل لازمي کي او د (دخلتُ) فعل لازم کېدل موږ پورته ثابت کړ (کما في تقریر الکافیه).

## دمفعول فیه دعامل ناصب د حذف کېدودوه صورتونه

**دریمه خبره:** د مفعول فیه د عامل ناصب د حذف کېدو دوه صورتونه:

وینصبُ بعامل مضمر: له دې ځای څخه مصنف رحمه الله د مفعول فیه د عامل د حذفولو دوه صورتونه بیانوی:

**لومړی صورت:**

لومړی صورت دادی، چی کله کله د مفعول فیه عامل حذف کېږي، بدون شریطة التفسیر، چي د هغه په ذریعهٔ مفعول فیه ته نصب ورکول سي، یعنی د مفعول فیه چی کوم عامل ناصب وي، هغه کله کله حذف کېږی، لیکن تر ده وروسته ددغه حذف سوي فعل هیڅ تفسیر مذکور نه وی، لکه چی یو څوک سوال وکړي، چی (متیٰ سرتَ؟)،په جواب کي یې وویل سي (یومَ الجمعة)، دا په اصل کي (سرتُ یومَ الجمعة) و، نو په شروع کي چي کوم عامل ناصب (سرتُ) دی، هغه حذف کړل سو (یوم الجمعة) وویل سو او تاسو ولیدل، چي د دغه حذف سوي عامل هیڅ تفسیرپه وروسته کي نه دی سوی او بیا هم (یومَ الجمعة) منصوب دی.

وعلی شریطة التفسیر: او کله کله د مفعول فیه عامل خو حذف سوی وي، لیکن په دې شرط، چي په وروسته کي یې تفسیر ذکر سوی وي، لکه چي له (سرتُ یومَ الجمعة) څخه عامل ناصب (سرتُ) حذف کړل سي، تفسیریې په وروسته کي وسي، داسي وویل سي (یومَ الجمعة سرتُ فیه).

## نه شپیتم (۶۹) درس

## دڅلورم منصوب (مفعول له) بیان

المفعول له هو ما فعل لأجله فعلٌ مذكورٌ، مثل: ضربته تأديبًا وقعدتُ عن الحرب جبنًا، خلافًا للزجاج فانه عنده مصدرٌ، وشرط نصبه تقديراللام وانما يجوز حذفها اذا كان فعلًا لفاعل الفعل المعلّل به ومقارنًا له فى الوجود.

**ترجمه:** له منصوباتو څخه مفعول له هم ده، دا هغه اسم دی، چي له وجې يې مذكور فعل سوى وي، لكه په (ضربته تأديبًا) كي (تأديبًا) او په (قعدت عن الحرب جبنًا) كي (جبنًا)، په دې كي د امام زجاج رحمه الله اختلاف دی، ځكه چي داسي اسم دده په نزد په مصدر يعنى مفعول مطلق كي شمېرل كېږي او دده د منصوب كېدو شرط د (لام) مقدر كېدل دي او د دغه (لام) حذفول هغه مهال جائز دي، كله چي دا د معلل به د فعل د فاعل فعل وي او په وجود كي هم د هغه مقارن وي.

**تشريح:** د نن په سبقه كي پنځه خبرې دي:

①: د مفعول له تعريف او د قيدونو فائدې، ②: د نحوي د جمهورو علماؤ او امام زجاج اختلاف، ③: د مفعول له د منصوب كېدو شرط، ④: د كافيه د ملاصاحب رحمه الله او جمهورو نحوي علماؤ اختلاف، ⑤: د لام دحذف د جائز كېدو صورتونه.

## دمفعول له تعريف

**لومړۍ خبره:** د مفعول له تعريف او د قيدونو فائدې:

المفعول له: له منصوباتو څخه څلورم قسم مفعول له دی، د دې تحقيق داسي دی، چي د ده په شروع كي داخلېدونكى (لام) په معنا د (الذى) اسم موصول دی او صله يې پخپله (مفعول) جوړېږي، بيا موصول او صله دواړه صفت جوړېږي د (الاسم) موصوف محذوف لپاره او په (له) كي لام اجليه دی، نو د عبارت تقدير داسي كېږي: (الاسم الذى فُعل الفعل لاجله) يعنى هغه اسم چي له كبله يې مخكنى فعل سوى وي.

او اصطلاحى معنا يې د كافيه ملاصاحب رحمه الله په خپل عبارت كي داسي بيان كړې ده (هوما فُعل لاجله فعل مذكورٌ) يعني مفعول له هغه اسم دی، چي د

حاصلولو لپاره يې تر دغه اسم مخکې فعل سوی وي، لکه (ضربته تأديبًا) په دې کې د ادب د ښودلو لپاره مخکنی فعل (ضرب) سوی دی او په (قعدتّ عن الحرب جبنًا) کې (جبنًا) يعني د بې زړه توب له وجې مخکنی فعل قعدتّ (له جګړې کښیناستل) سوي دی.

**د قيدونو فائدې:**

د فاضل مصنف رحمة الله عليه په عبارت (هوما فُعل لاجله فعل مذکور) کې د (هو) ضمير مرجع (مفعول له) دی، کوم چې معرّف دی او (مافُعل الفعل...الخ) يې تعريف دی، بيا په تعريف کې (ما) جنس ده، کومه چې معرف (يعني مفعول له) او غير معرف (يعني نورو مفاعيلو) ته هم شامل دی، (فعل الفعل لاجله) فصل دی، د ده په وجه نور ټول مفاعيل له تعريف څخه وزي.

**دوهمه خبره:** د نحوي د جمهورو علماؤ او امام زجاج رحمة الله عليه اختلاف:

خلافًا للزجاج: د مفعول له په هکله د نحوي د جمهورو علماؤ مذهب دادی، چې له مفاعيل خمسه څخه باقاعده يو مستقل قسم کېږي، خو امام زجاج رحمة الله عليه وايې، چې دا کوم مستقل قسم نه دی، بلکې په اصل کې دا مفعول مطلق دی، چې اصل عبارت داسې دي: (ادّبته بالضرب تأديبًا) او (جبنت فى القعود عن الحرب جبنًا)، نو په اصل کې (تأديبًا) او (جبنًا) تقدير د عامل يعني فعل محذوف يعني د (ادبته او جبنتُ) لپاره مفعول مطلق جوړېږي.

او دوهم صورت داهم کېدای سي، چې دی سره له مضاف محذوف مفعول مطلق جوړېږي، مثلا د (ضربته تأديبًا) محذوف عبارت داسې دي: (ضربته ضربَ تأديبٍ) او د (قعدت عن الحرب جبنًا) محذوف عبارت داسې دي: (قعدت عن الحرب قعودَ جبنٍ).

لېکن که چېرې وکتل سي، نو علامه زجاج رحمة الله عليه چې دلته کوم تاويل کړی، محذوف عبارت يې را ايستلي دي او بيا يې د مفعول مطلق حکم پر لګولی دی، نو دا يو کمزوري خبره ده، ځکه چې په تاويل کولو سره د يوه قسم له بل قسم جوړولو څخه دا نه لازمېږي، چې لومړی قسم بلکل ختم سي، بعينه دوهم قسم جوړ سي، که نه نو د تاويل دا دروازه که چېرې خلاصه سي او دا صحيح وبلل

سي، نو بیا دغه مأول صورتونه به خپل اصلي صورتونه پرېږدي او دمأول الیه د
صورت طرفته به منتقل کېږي، مثلا د حال او ذولحال مثالونه را واخله (جاءني
سعیدٌ راکبًا) او (زرتُ بکرًا مسرورًا) په دې کي په تاویل کولو عبارت داسې
کېږي: (جاءني سعیدٌ في وقت الرکوب) او (زرتُ بکرًا وقتَ سروره) لیکن له دې
سره، سره دده کوم مفعول فیه نه ویل کېږي، بلکي هماغسي حال او ذوالحال
ورته ویل کېږي.

**فائده:** دامام زجاج رحمه الله نوم ابراهیم بن محمد بن سری بن سهل دی او کنیه
نوم یې ابو اسحاق دی، د زېږېدني نېټه خو یې ده معلومه لېکن د مړینې نېټه یې
د جمادی الاخرٰی (۳۱۰ﻫ، یا ۳۱۶ﻫ) د جمعې په ورځ په بغداد کي تر اتیا (۸۰)
کلونو په شاوخوا زیات عمر وفات سوی، د امام احمدبن حنبل رحمه الله په مذهب و، په
پیل کي یې د شیشه جوړولو کار کاوه، او په عربي کي شیشې ته زجاج ویل
کېږي، له همدې وجې دی د زجاج په لقب مشهور سوی دی، تر دې وروسته یې د
علم زدکولو ته توجه وکړه او په ټولو علوم دینیه په خاصه توګه په عربي کي یې
داسي مهارت حاصل کړ، چي له خپلې زمانې څخه تر اوسه په علوم عربیه کي د
امام حیثیت لري.

## دمفعول له دمنصوب کېدو شرط

**درېیمه خبره:** د مفعول له د منصوب کېدو شرط:

درېیمه خبره، کومه چي مصنف رحمه الله په (وشرط نصبه تقدیراللام) عبارت کي
ویلي دي، هغه دادی، چي د مفعول له د منصوب کېدو شرط دادی، چي تر ده
مخکي (لام) مقدر وي، لکه (ضربته تأدیبًا)، لېکن که چېري (لام) مذکور وي،
نو بیا مفعول له منصوب نه کېږي، بلکي د همدغه (لام) حرف جر له وجې مجرور
کېږي، لکه (ضربته للتأدیب).

**څلورمه خبره:** د مصنف او د نحوي د جمهورو علماؤ رحمهم الله ترمینځ اختلاف:

د مفعول له د منصوب کېدو لپاره د مصنف رحمه الله په ذکر سوي شرط سره دې
طرفته اشاره ده، چي د ده په نزد د مفعول له هم د مفعول فیه په ډول دوه قسمونه

دي: يو مفعول له په تقدير د لام سره او دوهم مفعول له د لام په ذکر سره، لومړی قسم منصوب او دوهم مجرور بحرف الجر کېږي، نو د تقدير لام د شرط لګول د مفعول فيه دصحت لپاره شرط نه بلکي د ده صحت د نصب لپاره شرط دی، نو د مصنف رحمه الله په نزد دا دواړه قسمونه د مفعول له کېږي، نو د دې لپاره چي پر ده د مفعول له تعريف هم صادقېږي او لفظًا منصوب هم دی او دوهم قسم د دې لپاره، چي پر ده هم د مفعول له تعريف صادق سي او لفظًا که څه هم منصوب نه دی، لېکن محلا منصوب دی.

او حال دا چي د نحوي د جمهورو علماؤ رحمهم الله په نزد لومړی صورت خو د مفعول له دی او يکي د لام مقدر کېد شرط د نصب د صحت لپاره نه بلکی د مفعول له د صحت لپاره دی، ځکه چي کله د ده مفعول کېدل ثابت سي، نو د ده منصوب کېدل پخپله ثابتېږي، پاته سو دوهم صورت نو هغه ددوی په نزد مفعول له نه کېږي، بلکي د حرف جر په واسطه سره مفعول به کېږي.

**پنځمه خبره:** د لام د حذف د جائز کېدو صورتونه:

وانما يجوز حذفها...الخ: په دې عبارت کي فاضل مصنف رحمه الله تر مفعول له مخکي د لام د تقدير لپاره درې شرطونه بيانوي:

①: لومړی شرط دا دی، چي مفعول له مصدر وی او د اعراضو له قبېلې څخه وي، د اعيانو له قبېلې څخه نه وي، لکه (ضربته تاديبًا) او چېري چي دا شرط نه وي، نو هلته لام نه حذف کېږي، لکه (جئتک للسمن) دلته (السمن) نه خو مصدر دی او نه د اعراضو له قبېلې څخه دی.

②: اذا کان فعلًا لفاعل الفعل المعلل به: دوهم شرط دا دی، چي د مفعول له او معلل به فعل فاعل يو وي، لکه (ضربته تأديبًا) له معلل به فعل څخه مراد هغه فعل دی، د کوم علت چي په وروسته کي د راتلونکي مفعول له په ذريعه ښودل کېږي، لکه په مذکور مثال کي (ضرب) فعل معلل به دی او د (تأديبًا) په ذريعه د ده علت بيان سوی دی او د(ضربَ) او د (تأديبًا) فاعل يو دی، ځکه چي وهونکی او ادب ورزدکوونکی يو سړی دی.

چیري چي د دواړو فاعل بېل، بېل وي، نو هلته لام نه مقدر کېږي، لکه (جئتک لمجیئک ایای) دلته د فعل معلل به (جئتک) فاعل متکلم او د مفعول له (لمجیئک) فاعل مخاطب دی.

③: و مقارنًا له فی الوجود: درېیم شرط یې دا بیان کړی، چي د فعل مذکور او مفعول له دواړو زمانه یوه وي، لکه (ضربته تأدیبًا) دلته وهونکی او ادب ور زدکوونکی دواړه په یوه زمانه کي دي، داسي نسي کېدای، چي د وهونکی عمل خو اوس وي او د ادب ورزدکولو لپاره وروسته بیا کوم بل عمل کېږي.

چېري چي د دواړو زمانه یوه نه وی، نو هلته د لام حذفول جائز نه دي، لکه: (اکرمتک الیومَ لو عدی بذلک امسِ) یعنی نن ما ستا عزت وکړ، د دې لپاره چي ما پرون له تا سره ددې وعده کړې وه، وګورئ! دلته لومړی دوه شرطونه خو سته، لېکن درېیم نسته، ځکه نو لام حذف کړل سوی نه دی.

د درېو سره شرطونو خلاصه داده، چي مفعول له که چېري مصدر نه وي، یا دده او دده دعامل زمانه یوه نه وی، یا د دواړو فاعل یو نه وي، نو له ده څخه دلام حذفول جائز نه دي.

**یادونه:** مصنف رحمة الله علیه په خپل عبارت کي د (حذفها) کلمه راوړې ده، خو مراد یې ځیني (تقدیرها) دی، ځکه چي د حذف او تقدیر ترمینځ ډېر فرق سته.

## اویایم (۷۰) درس

## د پنځم منصوب (مفعول معه) بیان

المفعول معه هو مذکورٌ بعدالواو لمصاحبة معمول فعل لفظًا او معنًی، فان کان الفعل لفظًا وجاز العطف فالوجهان، مثل: جئتُ انا وزیدٌ و زیدًا والا تعین النصب، مثل: جئتُ وزیدًا، وان کان معنًی و جازالعطف تعین العطف نحو: ما لزیدٍ وعمرٍو؟ والا تعین النصب، مثل: مالکَ و زیدًا؟ و ماشأنک وعمرًوا؟، لأنّ المعنی ما تصنع؟.

**ترجمه:** مفعول معه هغه اسم دی، کوم چي تر واو وروسته ذکر سوی وي، چي معلومه سي، چي هغه د فعل له معمول سره ملګری دی، هغه فعل که لفظي وي،

یا معنوي، نو که چېري فعل لفظي وي او عطف جائز وي، نو پکی دواړه صورتونه جائز دي، لکه: (جئت انا وزیدٌ و زیدًا) او که چېري داسي نه وي، نو نصب متعین کېږي، لکه (جئتُ و زیدًا) او که چېري فعل معنوي وي او عطف جائز وی، نو عطف متعین کېږي، لکه (مالزید وعمرو) او که داسي نه وي، نو نصب متعین کېږي، لکه (مالک وزیدًا وما شأنک وعمروًا)، ځکه چی دده معنا (ماتصنع) ده.

**تشریح:** د نن په سبق کي صرف دوې خبرې دي:

①: د مفعول معه تعریف د قیدونو فائدې، ②: د مفعول معه صورتونه او د هر یوه نښې.

## د مفعول معه تعریف

**لومړۍ خبره:** د مفعول معه تعریف او د قیدونو فائدې:

المفعول معه: د دې تحقیق دادی، چي په (المفعول) کي (الف لام) په معنا د (الذی) دی، (مفعولٌ) صیغه د صفت ده او (معه) یې نائب فاعل، صیغه د صفت سره له خپل نائب فاعل صله کېږي د موصول لپاره، موصول سره له خپلې صله د (الاسم) موصوف محذوف لپاره صفت کېږي، موصوف سره له خپل صفت مبتداء کېږي، نو په دې اعتبار سره د عبارت تقدیر داسي کېږي (الاسم الذی فُعِلَ فعلٌ لمصاحبته).

او اصطلاحي معنا پخپله مصنف رحمه الله په خپل عبارت کي بیان کړې ده، چي (هو مذکورٌ بعدالواو لمصاحبة معمول فعل لفظًا او معنًی) یعنی مفعول معه هغه اسم دی، چي تر واو وروسته په معنی د مع واقع سوي وي او مقصد یې تر داسي واو وروسته په ذکر کولو د مخکني فعل عامل (هغه که لفظي وي، یا معنوي) د ده له معمول سره ملګرتیا (یعني یو له بل سره په فاعلیت، یا مفعولیت کي شریک کېدل) وي، لکه (جاء البردُ والجبات)، دلته فعل لفظي (جاءَ) عامل دی او (البرد) یې معمول یعني فاعل دی او (واو) د (مع) په معنی دی دی تر ده وروسته په (الجبات) فاعلیت کي د (البرد) فاعل مصاحب او

ملګري دی، دا راز په (استوی الماءُ والخشبةُ) کي هم (الماء او الخشبة) د فاعليت په معنا کي شريک دي او د مفعول مثال په (كفاکَ وزيدًا درهمٌ) کي د (كفاکَ) كاف او (زيدًا) دا دواړه د مفعوليت په معنا کي شريک دي.

دا راز د فعل معنوي مثال (مالک وزيدًا) دا په اصل کي (ماتصنع وزيدًا) و، نو دلته هم په (تصنع) کي دننه (انتَ) ضمير فاعل او (زيدًا) دواړه د فاعليت په معنا کي شريک دي.

**فائده**: فعل پر دوه قسمه دی، لفظي او معنوي، لفظي فعل هغه دی، کوم چي په باقاعده ډول په لفظ کي مذکور وي، د فعل علامې پکي موجودي وي او فعل معنوي هغه کلمه ده، کومه چي نه خو په لفظ کي وي، او نه په تقدير کي، بلکی د کلام له اندازاو خبرو، اترو څخه معلومېږي، لکه په (مالک وزيدًا) کي چي تېر سوه، چي له (مالک) څخه (ماتصنع) فعل راوزي، ځکه چي چېري جار مجرور او حرف استفهام راسي، نو هغه پر فعل دلالت کوي، ځکه همدا جار مجرور د مخکني فعل معنا وروستني اسم ته د رسېدو لپاره راځي، او حرف استفهام هم اکثره وخت پر فعل داخلېږي، نو د دغو وجوهاتو پر بنا دلته (تصنع) فعل راوزي.

**: دمفعول معه صورتونه او د هر يوه علامې**

**دوهمه خبره**: د مفعول معه صورتونه او د هريوه علامې:

له (فان كان الفعل) څخه واخله تر اخيره پوري، يعني تر (لأن المعنى ماتصنع) پوري په عبارت کي مصنف رحمه الله عليه څلور صورتونه بيانوي، له كومو څخه چي په دريو صورتونو کي تر (واو) وروسته مفعول معه جوړېږي، په دوو صورتونو کي په وجوبي توګه او په يوه کي په جوازي توګه.

**لومړی صورت**:

فان كان ا لفعل لفظًا وجاز العطف فالوجهان: په دې عبارت کي لومړی صورت دا بيانېږي، چي د مفعول معه فعل عامل كه چېري لفظي وي او تر (واو) وروسته پر مخکني اسم (يعني د فعل پر معمول) عطف هم جائز وي، يعني له عطف څخه کوم مانع نه وي، نو دا پر دوه ډوله ويل جائز دی، لومړی دا چي دا د

مفعول معه پر بنا منصوب وويل سي، لکه (جئت انا وزيدًا) او دوهم دا چي پر مخکني اسم عطف سي، لکه (جئت انا وزيدٌ) په دې صورت کي د فاعليت پر بنا مرفوع ويل کېږي.
دلته د عطف د جواز وجه داده، چي مخکي (تُ) ضمېر متکلم د مرفوع متصل تاکيدله (انا) ضمېر منصوب منفصل سره راغلی دی، کوم چي د عطف د جواز لپاره ضروري دی.

**دوهم صورت:**

و الّا تعين ا لنصب: دوهم صورت يې دا بيان کړی، چي که چېري تر (واو) وروسته د (واو) پر ماقبل عطف جائزنه و، يعني يو مانع موجود و، نو په داسي صورت کي هغه يوازي په يوه طرېقه سره ويل کېدای سي؛ يعني د مفعول معه پر بنا منصوب ويل کېږي، لکه (جئتُ وزيدًا) په دې صورت کي د عطف د جواز وجه داده، چي دلته د (تُ) ضمېر مرفوع متصل تاکيد په کوم ضمېر مرفوع منفصل سره نه دی سوی، کوم چي د عطف د جواز لپاره شرط دی.

**درېيم صورت:**

وان کان معنی وجازالعطف تعين العطف، درېيم صورت مصنف رحمه الله دا بيانوي، چي که چېري د مفعول معه عامل فعل معنوي و او تر (واو) وروسته د مخکني اسم يعني د فعل معنوي پر معمول عطف جائز و، يعني کوم مانع موجود نه و، نو دده عطف متعين کېږي، لکه (مالزيدٍ وعمرو) وجه يې داده، چي فعل معنوي يو پټ او کمزوری عامل دی، حال دا چي په مقابله کي يې (لام) حرف جرلفظي او قوي عامل دی، نو د قوي عامل په شتون کی کمزوري عامل ته عمل ورکول ښائسته نه ښکاري، نو تر (واو) وروسته اسم پر (لزيدٍ) عطف کړل سو، مجرور وويل سو.

**څلورم صورت:**

والّا تعين النصب: که چېري عامل فعل معنوي و، لېکن د کوم مانع له وجې پر ماقبل دده عطف کول صحيح نه وه، نو دا د مفعول معه کېدو پر بنا منصوب ويل

كېږي، لكه (مالك وزيدًا) په دې كي عامل كه څه هم معنوي او كمزوري دى، لېكن دده په مقابله كي كوم بل عامل نسته، نو ده ته عمل وركول سو.
دلته د عطف د عدم جواز وجه داده، چي دا يوه قاعده ده، چي پر مجرور د يو شي عطف كول هغه مهال صحيح كېږي، چي پر معطوف د هغه حرف جر اعاده وسي، كوم چي پر مجرور داخل دى، لېكن دلته په (مالك وزيدًا) كي پر (لك) خو حرف جر داخل دى، ليكن پر (زيدٌ) كوم حرف جر داخل نه دى، نو عطف ناجائز سو، دا د مجرور بحرف الجر مثال و او د مجرور بالمضاف مثال دادى (ماشأنك وعمروًا)، دلته كه چېري (عمروًا) پر ماقبل عطف كول غواړي، نو د ده په معطوف عليه كي دوه احتمالونه دي، يو دا چي (شأن) پر مضاف عطف سي او دوهم دا چي پر (كاف) ضمېر مخاطف مضاف اليه عطف سي او دا دواړه غلط دي، ځكه چي كه چېري پر (شان) مضاف عطف سي، نو د مقصود خلاف لازمېږي، يعني معنا خرابېږي، ځكه چي زموږ مقصود دواړو شان معلومول دي، حال دا چي په دې صورت كي معنا داسي كېږي، چي ستا شان څرنګه دى او د عمر ذات څرنګه دى.
او كه چېري پر (كاف) ضمېر خطاف عطف سي، نو هم ناجائز دى، ځكه چي پورته موږ دا قاعده بيان كړه، چي پر مجرور عطف هغه مهال جائز وي، كله چي پر معطوف هم دغه حرف جر اعاده كړل سي، لېكن دلته عامل جار (شأن) مضاف دى، لېكن مخكي دده هېڅ اعاده نه ده سوې، نو دا خبره ثابته سوه، چي عطف ناجائز دى، نو د مفعول معه كېدو پر بنا (عمروًا) منصوب ويل كېږي.
لأنّ المعنى ما تصنع؟ په دې عبارت سره مصنف رحمه الله په مذكوره مثالونو كي د فعل پر معنوى كېدو دلېل وړاندي كوي، لكه چي وايي: د (مالک و زيدًا) معنا ده (ماتصنع وزيدًا) او د (مالعمرو وزيد) معنا ده (مايصنع عمروٌ وزيدٌ).
پر دې يو سوال كېداى سي، چي كله په لومړنيو مثالونو كي هم فعل معنوي دى، ځكه چي هغه خو هم د (تصنع) په معنا دى او دلته په اخري مثال كي هم فعل

معنوي دی، نو څه وجه ده، چې تاسو (ماتصنع) يوازي له (ماشأنک) سره خاص کړ؟

ددې جواب دادی، چې په لومړنيو مثالونو کي خو داسي قرينې وي، چې پر فعل يې دلالت کاوه، ځکه چې په دغو دواړو کي جار مجرور وو او جارمجرو د ځان لپاره متعلق ضرور غواړي، نو د دوی د متعلق غوښتل پر مقدر فعل دلالت کوي، په خلاف د اخيري مثال، چې په دې کي داسي شی نسته، چې ددوو فعلونو پر موجودګی دلالت وکړي.

**فائده:** انشاء الله تعالیٰ تاسو به په جامي کي ووایاست، چې د مفعول معه په عامل کي د نحوي د علماؤ څو اقوال دي، لکه چې لومړی قول د شيخ عبدالقادر رحمه الله دی، چې (واو) په‌معنا د (مع) پخپله په مفعول معه کي عامل دی.

دوهم قول د امام اخفش رحمه الله دی، هغه وايې، چې عامل خو مخکنی فعل وی، لېکن هغه په مفعول معه کي عمل نه کوي، بلکه هغه په (واو) بمعنی (مع) کي عمل کوي، لېکن د عمل ظهور په اسم کي نسي کېدای، بلکي په وروسته اسم يعنی مفعول معه کی کېدای سي، ځکه د عمل ظهور په اسم کي کېږي، چې د (الا) اعراب پر وروستني اسم يعنی مستثنیٰ راځي.

او درېيم قول د نحوي د جمهورو علماؤ رحمهم الله دی، هغوی وايې، چې په مفعول معه کي عامل هماغه مخکنی فعل دی، لېکن په واسطه د (واو) په معنا د (مع) دی.

## يو اوياېم (۷۱) درس

## د شپږم منصوب (حال بيان)

الحال ما يبين هيئة الفاعل اوالمفعول به لفظًا او معنًى، نحو: ضربتُ زيدًا قائمًا و زيدٌ فى الدار قائمًا وهذا زيدٌ قائمًا وعاملها الفعل او شبهه او معناه.

**ترجمه:** حال هغه اسم د، کوم چې د فاعل، يا مفعول به حالت بيانوي، هغه فاعل، يا مفعول که لفظي وي، يا معنوي، لکه: (ضربتُ زيدًا قائمًا، وزيدًا قائمًا